# مجموعة الفتاوى
# للمجالس الفقهية

ترتيب وتحقيق :
حافظ مولوي عبدالولي صاحب
ومفتي عبدالرشيدسعيد صاحب

تحت اشراف :
شيخ الحديث والتفسير الحاج مولاناعبدالحكيم الحقاني مدظله العالي

ناشر :
مكتبه دارالعلوم الشرعية

دكتاب نوم............................................................................. مجموعة الفتاوى للمجالس الفقهية
ترتيب وتحقيق.................... حافظ مولوي عبد الولي صاحب ومفتي عبد الرشيد سعيد صاحب
تحت اشراف........... شيخ الحديث والتفسير الحاج مولانا عبد الحكيم الحقاني مد ظله العالي
ناشر: ...................................................................................................مكتبه دار العلوم الشرعية
چاپ.............................................................................................................................. اول
دچاپ شمېر ....................................................................................................... ۱۱۰۰
دچاپ كال ........................................................................................................ ۱۴۴۰

**مطبوعات مكتبه دار العلوم الشرعية**

**الزادالشرعي** في توضيح الجامع الترمذي: تأليف الشيخ مولانا عبد الحكيم الحقاني صاحب
**زادالمحافل** في شرح الشمائل: تأليف الشيخ مولانا عبد الحكيم الحقاني صاحب
**مجموعة الرسائل**: تأليف الشيخ مولانا عبد الحكيم الحقاني صاحب
**المناسك الشرعية**: تأليف مفتي عبد الرشيد سعيد صاحب
**مجموعة الفتاوى** للمجالس الفقهية : ترتيب وتحقيق حافظ مولوي عبدالولي صاحب وابو الاحسان مفتي عبد الرشيد سعيد صاحب اعضاء دار الافتاء دار العلوم الشرعية

## دافغانستان داسلامي امارت دزعيم فضيلة الشيخ أمير المؤمنين شيخ الحديث والتفسير هبة الله اخند زاده صاحب حفظه الله تعالى تقريظ

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى

امابعد : فقد قال الله تبارک وتعالى في محكم كتابه: وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنْذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ . التوبة (١٢٢) وقد قيل للآية وجه آخر وهو أن المؤمنين لما سمعوا مانزل في المتخلفين سارعوا الى النفير رغبة ورهبة وانقطعوا عن التفقه فأمروا أن ينفر من كل فرقة طائفة الى الجهاد ويبقى اعقابهم يتفقهون حتى لاينقطع الفقه الذي هو الجهاد الاكبر لأن الجدال بالحجة هوالاصل والمقصود من البعثة فالضمير في ليتفقهوا ولينذروا لبواقى الفرق بعد طوائف النافرة للغزو وفي رجعوا للطوائف اى ولينذر البواقي قومهم النافرين اذا رجعوا اليهم بما حصلوا في أيام غيبتهم من العلوم ( تفسير ابي السعود ) .

وقال النبي صلى الله عليه وسلم : من يرد الله به خيرا يفقهه في الدين . رواه البخاري ، قال الامام مالک من تفقه ولم يتصوف فقد تفسق ومن تصوف ولم يتفقه فقد تزندق ومن جمع بينهما فقد تحقق ( مرقاة المفاتيح ) قال ابن وهب نظر مالک الى العطاف بن خالد فقال بلغني أنكم تأخذون من هذا فقلت بلى. فقال: ما كنا نأخذ الحديث إلا من الفقهاء ( موطأ مالك ) وكذلک قال الفقهاء وهم اعلم بمعاني الحديث ( الترمذي ) .

دپورته دلائلو شريفوو څخه دا ثابته سوه چي علم الفقه دكمال اوتكميل علم دی ځكه چي په دين كي تفقه او پوهه پر علم الفقه باندي موقوفه ده اودنورو انسانانو

تکمیل هم پر علم الفقه باندي موقوف دی اودعلم الفقه تحصیل جهاد اکبر هم بلل سوی دی او دالله جل جلاله دخیر اراده هم دفقهاؤ په حق کي ده ولي اوصوفي جوړېدل هم پر علم الفقه موقوف دي محدث او شیخ الحدیث جوړېدل او داحادیثو په معنی باندي پوهېدل هم پر علم الفقه باندي موقوف دي دعلم الحدیث اخذ اوزدکړه به دفقهاؤ کرامو څخه کیږي اودغه کوم فقهي مجالس چي دي دغه خیر دمجالسو دي ځکه چي نبي صلی الله علیه وسلم په دوو مجلسو دخیرکي دغه دفقهي مجلس خوښ کړی دی او پکښي شریک سوی دی.

(کما في الدارمي عن عبدالله بن عمرو أن رسول الله صلى الله عليه وسلم مرّ بمجلسين في مسجده فقال كلاهما على خير وأحدهما أفضل من صاحبه أما هؤلاء فيدعون الله ويرغبون اليه فإن شاء أعطاهم وإن شاء منعهم وأما هؤلاء فيتعلمون الفقه والعلم ويعلّمون الجاهل فهم أفضل و إنما بعثت معلّما قال ثم جلس فيهم ( ج ۲ ص ۲۷۵ )

اوبل دمذهب او تقلید دبقاء اوتحفظ دپاره هم دغه عمده اوښه لاره ده حضرت امامنا الاعظم ابوحنیفة رحمه الله تعالی هم فقهي مجلس درلودی چي هر اصل داصولو څخه دمذهب حنفي به یې دفقهي مجلس تر تصویب وروسته ثبتوی اودهري واقعې تر واقع کېدو وروسته به یې دعلماء کرامو سره مجلس پر دائروی چي همدا سبب سو چي نسبت نورو مذاهبوته دامام صاحب رحمه الله تعالی مذهب ډېرمقبول سو نوکه دامام صاحب رحمه الله تعالی پر طرز اوطریقه موږ هم خپل مسائل دفقهي مجلس تر تصویب وروسته جامعې ته پېش کړو په

دې کې شک نسته چې دزيات مقبوليت او اعتبار او اعتماد وړ به وګرځيږي په نسبت د هغه چا ومسائلو ته چې په تفرد او يوازي ځان يې وجامعې ته پيشوي.

کما في مقدمة ردالمحتار فکان إذا وقعت واقعة شاورهم وناظرهم وجاورهم وسألهم، فيسمع ما عندهم من الاخبار والاثار ويقول ما عنده ويناظرهم شهرا أو أکثر حتی يستقر آخر الاقوال فيثبته أبو يوسف، حتی أثبت الاصول علی هذا المنهاج شوری، لا أنه تفرد بذلك کغيره من الائمة اه .

د پورته دلائلو شريفو څخه فضيلت اوهم ضرورت د فقهي مجلس د هر عالم د پاره ثابت سو په هرصورت يې پرېښوول په کار نه دی يابه دده دعلم څخه څوک استفاده وکړي يابه دی دبل عالم دعلم څخه استفاده وکړي اونن چې امت مسلمه دسختو حالاتو څخه تېرېدونکی دی او داسلام ضد قوتونوپه ټول توان سره کوشش شروع کړی دی چې خلګ دزر او زور او تزوير په ذريعه داسې لارو ته دعوت کړي چې هغه داسلام او انساني کرامت سره په ټکر کې دي اوغواړي چې داسلامي فکر خلاف غربي تمدن او فکر ته رواج ورکړي اوغربي تهذيب او تګلاره دانسانيت دکاميابۍ لاره خلګوته معرفي کړي ﴿يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ﴾ (سورة الصف الاية ۸) اوپه دنياکې دعياشي زندګۍ تېرول دانسانانو دژوند مقصد معرفي کړي او دآخرت فکر ورڅخه ورک کړي مرګ اودمرګ څخه وروسته زندګي دفکره ورڅخه وباسي دحلالو اوحرامو

دمستحب اومکروه دصحیح اوفاسد امتیاز او جلاوالی دمینځه یوسي فاسد اونارروا معاملاتوته ترویج ورکړي بد اخلاقي دنوو عصري وسائلو په مټ نشرکوي دا هرڅه ددنیاوي خواهشاتو پوره کولو دپاره اودداسي علم اوزده کړي طرفته دخلګو سوق اودعوت کیږي چي هغه په حقیقت کي سوق اودعوت وجهل اوناپوهی ته دی چي هغه صرف دمعیشت دنیوي علم دی چي محصلین او فارغین یې سوا ددنیوي معیشت څخه بل فکر نه لري اودآخرت څخه بېخي ناخبره وي ( يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ(سورة الروم الاية ٧) {ذَلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِنَ الْعِلْمِ} ( سورة النجم: ٣٠) دتفرق او اختلاف اودبې اعتمادی فضاء دمسلمانانو په مینځ کي جوړوي اوغواړي چي مسلمانان په خپل مینځي مقابلو باندي کمزوري کړي چي ددوی تر حاکمیت لاندي وي اوهغه اسلامي وررولي او اتفاق یې ختم کړي کوم چي دالله جل جلاله حکم دی {إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْأَرْضِ وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا} [القصص: ٤] اودمسلمانانو دخپل دین څخه دناخبری په وجه دموقع څخه بده استفاده کوي شپه او ورځ یې منفي تبلیغات داسلام او مسلمانانو په ضد روان کړي دي چي له امله یې بعض مسلمانان دکم علمی دوجهي په تزلزل کي راوستلي دي اوبعض یې دومره متأثر کړي دي چي پرخپلو علماؤ یې بې اعتماده کړي دي {وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ } [التوبة: ٤٧] نو دفقهي مجالسو جوړول او دامت پر حال باندي غورکول او داصلاح دپاره

يې لاري پيداکول او اسلامي پوهاوی وخلګوته ورکول او دکفارو او دکفر خوښونکو په مقابل کي علمي جهاد کول ( إن من أعظم الجهاد كلمة عدل عند سلطان جائر . رواه الترمذي) نوکه علماء ځانونه ونه ښندي داسلام دپاره نو اسلام به ولاړ سي ( ماسمعت كلمة منذ وقعت في هذا الأمر أقوى من كلمة أعرابي كلمني بها في رحبة طوق يا أحمد إن يقتلوك الحق مت شهيدا و إن عشت عشت حميدا فقوى قلبي . مسند احمد) اودتحريفاتو اوتبدليانو اودجاهلانه فتواو مخنيوی کول اودخلګو پرعمومي ضروري مسائلو ددين هغه که دعقائد متعلق وي که دعباداتو که داخلاقو که دحقوقو متعلق وي دکتاب الله اوسنت رسول الله صلی الله عليه وسلم او دفقهي شريفي په رڼاکي بحث اوڅېړنه کول او دهر صنف نارينه وي که زنانه وي لوی وي که کوچنی وي ځوان وي که سپين ږيری وي فقيروي که غني وي حاکم وي که محکوم وي ظالم وي که مظلوم وي شرعي مسؤليت او ذمه واري په شرعي دلائلو اودمعتمدو کتابونو په حواله مشخص اومعلومول هغه که دمعاملاتو که دسياستونو متعلق وي که دموارثو اوحقوقو اومظالمو متعلق وي تر پوره تحقيق اوتدقيق وروسته يې په مسجدونو او اجتماع ګانو کي دتقريرونو په ذريعه وخلګوته بيانول دکتابت اونويشتې اوچاپ په ذريعه يې بيا آفاقو او اطرافو او آينده نسلونو ته رسول دامکان ترحده دجامعې هر فرد ته رسول دهيڅا دملامتياڅخه بېره نه کول دعلماؤ دپاره ډېر مهم دي اوپه دې سره

به امت مسلمه ته ډېره نفعه اوفائده ورسيږي {وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِينَ { الذاريات٥٥ } اوداجهاد دفقهي مجالسودلاري په ښه طريقه سرته رسيږي ځکه يوخوبه قوت پيداسي اوبل په اجتماعي حيثيت کي چي کوم تحفظ او امن دخطاء څخه سته هغه په انفرادي حيثيت کي نسته اوبل دتفرق او اختلاف او ديوپربل دبې اعتمادی مخه به هم ونيول سي خصوصا په موجوده دور کښي چي ناکاره خلګ کوشش کوي چي يوعالم پربل عالم يومرشد پربل مرشد يوطالب پر بل طالب يو ورور پر بل ورور زوی پر پلار او پلار پر زوی بې اعتماده کړي که دغسي مجلسونه او اجتماع ګاني افهام اوتفهيم په خپلو منځونو کي موجود وي بيابه نه بې اتفاقي وي اونه به بې اعتمادي وي {وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا} [آل عمران: ١٠٣] {يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ } [الحجرات: ٦] ( وقال رسول الله صلي عليه وسلم إن الله لايجمع امتي علي ضلالة ويد الله علي الجماعة . رواه الترمذي ) اوبل به ددغه مجالسو په ذريعه دعلم الدين خصوصا دعلم الفقه عظمت دخلګو په ذهنونو کي راسي اوخلګ به وعلم الدين ته ترغيب سي ( وكتب عمر بن عبد العزيز الى أبي بكر بن حزم : وليفشوا العلم وليجلسوا . رواه البخاري ) اوغمخوردني په علم الفقه اوهم نور پر باعث کول ښايي چي وسي دپورته دلائلو په وجه اوپه دې وجه چي دادجملې څخه دنصيحت لله وكتابه ورسوله صلى الله عليه وسلم وللأئمة والمسلمين

والمسلمات دی ځکه مراد داحاديثو مبارکوو په فقه پېژندل کيږي اودکتاب الله مراد په احاديثو پېژندل کيږي کما في الترمذي ( وكذلك قال الفقهاء وهم اعلم بمعاني الحديث باب ما جاء في غسل الميت ) او دادين دی لکه په حديث کي دنبي کريم صلی الله عليه وسلم چي راغلي دي ( عن تميم الداري أن النبي صلى الله عليه وسلم الدين النصيحة قلنا لمن قال لله ولكتابه ولرسوله ولأئمة المسلمين وعامتهم . رواه مسلم ) اونن سباچي همتونه کمزوري سوي دي دکتابونو دمطالعو اوتحقيقونو څخه دشرعي مسائلو نودا دفقهي مجالسوخدمت چي په خلاصه ډول دافتاء داصولو موافق دمعتبرو او معتمدو کتابونو په حواله دمستفتي په جواب کي ياحالاتو ته په کتلو دمسلمانانو دضرورت وړ ديني مسائل جمع کوي اوبيا دکتاب په شکل کي نشر کيږي داددين اسلام دبقاء دپاره يو عظيم خدمت دی الله جل جلاله دي يې دائم او قائم ولري چاچي يې احياء کړې ده اوڅوک چي يې فعلا پالنه کوي او رواج ورکوي اوڅوک چي عضويت پکښي لري اوڅوک چي يې دمسائلو په چاپ اوترتيب کي حصه اخلي اوڅوک چي يې په نشر اواشاعت کښي برخه اخلي ټولو ته دي الله جل جلاله جنت الفردوس ورکړي آمين يارب العالمين که نور نه وي دادخير دمجلس څخه خوبه برخمن سي تعلق اومحبت به يې دنيکانو اوصالحينو سره وي چي داهم غټه لاسته راوړنه ده که دبل اصلاح ونه کړي خپله خوبه اصلاح سي ددغه نيکانو اوښو خلکو په ليست کي به يې الله جل

جلاله شامل كړي ځكه ( المرء مع من احب . الحديث ) احب الصالحين ولست منهم لعل الله يرزقني صلاحا نسئل الله تعالى ان ينفعنا بهذه المجالس كما نرجو وينفع سائر المسلمين كما نرجو وان يجزل لنا المثوبات وان يعيذنا من المخالفات انه مجيب الدعوات جزيل العطيات لا حول ولا قوة الا بالله وحسبي الله ونعم الوكيل نعم المولى ونعم النصير وله الحمد في الاولى والاخرة وبه التوفيق والهداية.

حقير فقير هيبت الله شوال المكرم

١٤٣٩هـ



# مقدمة

الحمدلله الّذي شرّف العلمآء بوراثة

الرُسُل والأنبـيآء،وعلّمهم سُبلَ المجاهدين والأمرآء ، ووفّقهم لخدمة المسلمين والشّريعة الغرّآء ، والصّلوة والسّلام على إمام المجاهدين والأوليآء ، معلّم الفقه ورئيس القانون الدولة الإسلاميّة فى مدينة الفضلآء ، وعلى أله وأصحابه الّذين هم هداة أهل الرياضة والكُمَلآء ،وعلى الأئمّة الأربعة ، سيّماً على أبى حنيفة النعمان رحمه الله الّذي منّ على آخر الأمّة بالإجتهاد ، وتربيّة الكُبرآء ، وعلى مَنْ تبعهم بإحسان إلى يوم الجزآء .

أمابعد :قال الله تبارك وتعالى:فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ. النحل : ٤٣

وقال رسول الله«مَنْ يُرِدِاللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ وَإِنَّمَاأَنَاقَاسِمٌ وَيُعْطِي اللَّهُ ــ الحديث » . متفق عليه

ژباړه: چي كله حق تعالى جل جلاله يو چاته دخير اراده وكړي نوهغه ته په دين باندي پوهه ورنصيب كړي، اوبېشكه زه تقسيم كونكي يم اوحق تعالى جل جلاله وركول كوي.

داسلامي فقهي ارزښت او اړتیادروښانه ورځي په شان دهیچا څخه پټ نه دي، ځکه چي هرانسان دیوه مسلمان په حیث دخپل ژوند په هره شیبه کي داسلامي فقهي اوشریعت په رڼاکي خپله تګلاره ټاکي.

نو لله الحمد په همدغه سبب دصحابه کرامو دزماني څخه تر نن زمانې پوري دیني علماء کرامو په خپل پوره کوشش سره وخت په وخت چاپه ژبه چاپه قلم او چاپه دواړو سره ددغه شرعي فقهي قانون خدمت کړی دی او همدغه خبره يې دځان ذمه داري بللې چي مسلمانانو ته داسلامي فقهي احکام واضح کړي چي په همدې سلسله کي دأفغانستان اسلامي امارت مشرتابه له نامساعده شرائطو او پېچلو حالاتو سره سره دا قصد وکړي چي هم په هیوادکي دننه او هم دهیواد څخه دباندي دعلماءکرامو فقهي مجالس جوړکړي چي دعامو مسلمانانو مشکلات داسلامي فقهي قانون په احاطه کي دننه حل سي اودعلمي ترویج منافع لا ډیر زیات سي، اودا پېچلې ګرانه اودرنه دنده يې دأفغانستان اسلامي امارت د« دعوت او ارشاد » وریاست ته وسپارل .

چي وروسته د« دعوت او ارشاد ریاست» خپل ددغه دندي دپوره کولودپاره خپل کوشش ته دوام ورکړي چي په نتیجه کي يې لله الحمد هم په هیوادکي دننه اوهم دهیوادڅخه دباندي ددیني علماء کرامو متعدد فقهي مجلسونه مېنځ ته راغلل اوعامو مسلمانانو ته يې وخت په وخت دمختلفو پوښتنو په باره کي شرعي فتواوي صادري کړې ، اوبیاتردغه وروسته د« دعوت او ارشاد ریاست» ددغه فقهي مجالسو حل کړي مسئلې سره راجمع او دمشرتابه دمحترم مقام په لارښودنه يې دأفغانستان داسلامي امارت «دمحاکمو دعالي

اداري» ومقام ته ددي دپاره وسپارلې چي ددغه مسائلو ښه پوره تحقيق وكړي او ترتحقيق وروسته يې ديو كتاب په شكل كي ترتيب كړي.

تردغه وروسته د «محاكمو دعالي اداري» رئيس مفكر اسلام مجاهد كبير مشهور او جيد استاذ قاضي القضاة محترم (شيخ القرآن والحديث الحاج مولانا عبد الحكيم حقاني صاحب حفظه الله تعالى) ددغه خدمت د ترسره كولو دپاره ددار العلوم الشرعية ددار الافتاء څو تنه اعضاء مقرر كړل او ترخپل نظارت لاندي يې ودغه هيئت ته دنده وسپارل چي په خپل پوره كوشش سره ددغه راغلو مسائلو تحقيق او تدقيق او نظر ثاني وكړي، او دهرباب او فصل ترعنوان لاندي راغلي مسائل سره جلا او ديو منظم كتاب په شكل كي يې پرבابونو او فصلونو باندي تقسيم كړي ترڅو د آينده نسلونو دپاره د استفادې وړ او مرجع وګرځي.

او دمحاكمو دعالي اداري دمشرتابه لخوا ونوموړي هيئت ته لارښودنه وسول چي دفقهي مجالسو دهري استفتاء دپاره چي په كوم وعصري او نويو فتاوا او جواب وركول سوي وي، دهغو پرځاي دي ترخپل طاقته پوري كوشش وكړي چي دمذهب په دري (۳) پخوانيو زړو عمده مشهوره كتابونو كي دهغې جزئيې دپاره ښكاره عبارات پيدا كړل سي ددې دپاره چي كتاب په ښه قوي شان سره معتمد وګرځي، او په دغه كتاب كي دي دهري فتوى په حواله كي دهغه دروكتابونو څخه ديوه كتاب عبارت وليكل سي او دهغه نورو دوو (۲) كتابونو حواله دي په كذا في «فلان» ورسره وليكل سي ددې دپاره چي نوموړي كتاب ملالت او اوږدوالي پيدا نه كړي.

**دموظف هيئت لوازمات اوکړنلاره**

موظف هيئت دورسپارل سوي دندي اړوند دفقهي مجالسو فتـواوي اواستفتاوي په غوراو دقيق نظرسره وڅېړلې، اوپه عمده توګه څوشيانوته متوجه سول :

۱- کوم سوالونه اوجوابونه چي دمختلفوفقهي مجالسوڅخه مکرر ترلاسه سوي وه هغه يې ټول سره يوځاي کړل، داچي کتاب اوږد نه سي نودهغومکررو سوالونو اوجوابونوڅخه يې په يوه باندي اکتفاء وکړل اوهغه يويې دکتاب متن وګرځوی، اوهغه مکرريې ورڅخه حذف اوليري کړل.

۲- کوم سوال اويادهغه جواب که به چيري ترضرورت اوږد معلوم سو، نو په هغه سوال اوجواب کښې به يې ترميم وکړی او په ډېرمختصرکوتاه او واضح الدلالت عبارت يې هغه سوال اوجواب راوړي دي، هغه زائد الفاظ به يې ورڅخه حذف کړل.

۳- که به چيري ويوسوال ته په جديد(نوو اردو فارسي ياپښتو کتابونو ) سره جواب ورکول سوی وو نودهغه سوال دپاره يې دپخوانيو زړو معتمدو درو ( ۳ ) کتابونو(لکه ردالمحتار، البحرالرائق، اوفتح القدير، اوداسي نور ) حوالې پيداکړې، داځکه چي د فتاوی أهميت نورهم دعلماءکرامو اوکتونکو په زړو کي ځای ومومي.

اوموظف هيئت و کتل چي صريحي عبارت په دغه دريوکتابونوکي ددغه جزئي دپاره دچادي مثلاً که به ډير ښه واضح عبارت ددغه جزئي دپاره دردالمحتار وو، اودغه عبارتونه به په البحرالرائق اوفتح القديرکي هم وه، نوموظف هيئت ددغه جزئي مسئلې ددليل اوثبوت دپاره دردالمحتارعبارت

ذکرکړی دی ، او دهغه نورو دوو کتابونو لکه البحر الرائق او فتح القدير، حوالې يې د « کذا في البحر، وکذا في فتح القدير» په عنوان ذکرکړي دي، او که به ديوې خاصي مسئلې په باره کي دمذهب دعمده کتابونو څخه د دروکتابونو عبارت نه سو پيدا ايبابه يې د دوو کتابونو په حواله هغه مسئله وليکل او ډېر لږ داسي مسئلې په کتاب کي وجودلري چي دښکاره حوالې دنه پيدا کېدلو په سبب سره ديوه کتاب په حواله باندي په داسي طريقه سره ليکل سوي دي چي فلان کتاب داسي وايي همدا طريقه په ټوله کتاب کي جريان لري.

**۴**- که به چيري دفقهي مجالسو څخه يوه فقهي مجلس ويو سوال ته دفقهاء کرامو په يوضعيف اويامرجوح قول سره فتوی ورکړې وه، نو دهيئت اعضاؤ داخپله ذمه واري وګڼل چي درسم المفتي دقانون مطابق دهغه ضعيف اويا مرجوح قول په بدل کي دپخوانيو زړو معتمدو درو( ۳ )کتابونو صحيح او راجح قول پيدا کړي او دهغه سوال جواب په مفتی به قول سره وکړي.

**۵**-کچيري په يو مسئله کي اختلاف وي او ديو قول ښکاره ترجيح نه معلوميږي نو په هغه مسئله کي يې دغه اختلاف ته اشاره کړې ده او داحتياط خبره يې معلومه کړې ده.

**۶**- نوموړي هيئت دفقهي مجالسو وفتواوو ته دکتاب بڼه ورکړل، مثلاً دکتاب الطهارة مسئلې يې دکتاب الطهارة ترعنوان لاندي سره راجمع کړې او دکتاب الصلاة مسائل يې دکتاب الصلاة ترعنوان لاندي سره راجمع کړې، همدارنګه دهرکتاب مسائل يې دخپل باب او فصل ترعنوان لاندي سره يوځای کړې.

۷- دفقهي مجالسو استفتاوي او فتواوي اکثره پرډيرو جزئياتو باندي حاوي او مشتملي وې، خو موظف هيئت دهرباب متعلق مسائل سره جلا او خپل دباب متعلق يې ذکر کړي دي، دا چي پر کتونکو باندي اساني راسي.

۸ - دفقهي مجالسو استفتاوي او فتواوي که به چيري په بله ژبه وې لکه عربي، فارسي، او اردو، نو هغه يې ټولـه په پښتو ژبه کړي دي، دا ځکه چي فتاوی په پښتو ژبه کي ده.

۹- په نوموړي فتاوی کي موظف هيئت يوازي دفقهي مجالسو په راغلو فتواوو او استفتاوو باندي اکتفاء نه ده کړې، بلکه دهر کتاب، باب، فصل، ضروري اړخونه يې څېړلي، که به چيري دمطلب اړوند يو بله ضروري مسئله په نظر راغله، نو دکتاب دنفعي دډېروالي دپاره يې دهغې مسئلې زيادت يې هم کړی دی.

۱۰- فوق الذکر هيئت دفقهي مجالسو دفتواوو څخه ټوله هغه غيرو قوعي فرضي او پرتوهم ولاړي فتواوي حذف کړې، ددې دپاره چي نوموړې فتاوی خپل أهميت دلاسه ورنه کړي.

۱۱- کله چي به دفتاوی دليکلو په وخت کي دفتاوی څخه يوڅه فتواوي وليکل سوې، نو دغه فتواوي به مختلفو جيدو علماء کرامو ته ورکول سوې، چي دسوال او جواب تطبيق، او پر جواب باندي دخپل حوالې ښکاره دلالت، او دسوال پر جزئياتو باندي دجواب احتواء ترنظر تېره کړي چي کومه انساني سهوه خو به مېنځ ته نه وي راغلې، همدا سلسله دټوله کتاب ده.

۱۲- اوهمدغه شان به ددغه مسائلو څخه څه مسائل دأفغانستان اسلامي امارت دمرکزي دارالافتآء ومحترمو أعضاءکرامو ته دلا ښه تحقیق اوتدقیق اونظرثاني دکره کولو دپاره وړاندي سوې.

اوهمدغه شان ددغه مسائلو څخه څه مسائل دمحاکمو دعالي اداري رئیس جناب محترم شیخ صاحب ته دلا ښه نظر کولو دپاره وسپارل سوې اوهمدغه شان دکتاب په ځینو مشکلو مسائلو کي به دمحترم شیخ صاحب سره خصوصي مشوره کېدل ، اوتردغه وروسته به دغه مسائل په کتاب کي دفتوا اواستفتاء په شکل ولیکل سوې، دادی چي اوس فتاوی ستاسو داستفادې وړ وګرځېدل.

الله تعالی جل جلاله دي ددغه دیني خدمت ټولو معاوینینو ته ددنیا او آخرت کامیابي اوخپل رضا ورنصیب کړي .

آمین ثم آمین یارب العالمین والصلاة والسلام علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین

# مجموعة الفتاوى

# کـــتاب الطـــهارة

## باب الـــوضـــوء

## الفـــصل الاول في الـفرائـــض

## (اول فصل داوداسه دفرضونوپه بیان کي دی)

### ۱- داوداسه فرضونه

**الإستفتاء**: داوداسه فرضونه څودي ؟

**الفتوى بعون الله تعالی حامدا ومصليا** :

داوداسه فرضونه څلوردي:

۱- دټول مخ پرېولل.

۲- دواړه لاسونه سره دڅنګلو پرېولل.

۳- دسرپرڅلورمه حصه باندي مسح کول.

۴- دواړي پښې دبجلکو سره پرېولل.[1]

## ۲- دمخ، لاسونو اوپښوپرېولل څوواره فرض دي

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دمخ، لاسونو، پښوپرېولل څوواره فرض دي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دمخ، لاسونو، پښوپرېولل يويو وار فرض دي.[2]

## ۳- په اوداسه اوغسل کي دسترګوددننه حصې پرېولل

**الإستفتاء:** په اوداسه اوغسل کي دسترګوددننه حصې پرېولل لازم دي اوکه نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

---

[1] في ملتقى الابحر : ففرض الوضوء غسل الاعضاء الثلاثة ومسح الرأس . ( ج ۱ ص ۱۹ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۶۹ كتاب الطهارة مطلب في حديث الوضوء على الوضوء نور على نور ، والهندية ج ۱ ص ۳ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء )

[2] في ملتقى الابحر : ففرض الوضوء غسل الاعضاء الثلاثة .

وفي مجمع الانهر : ( غسل الاعضاء الثلاثة ) مرة يعني الوجه واليدين والرجلين . ( ج ۱ ص ۱۹ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۷۱ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام ، والهندية ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء )

په اوداسه اوغسل کي دسترګوددننه حصې پرېولل لازم نه دي،نوکه سترګي پټي کړي تاوان نه کوي خو که سترګي ډيري ټينګي پټي کړي،بيا ځيني فقهاء کرام فرمايي چي روا نه دي.(۱)

**۴ - په اوداسه اوغسل کي دښځي دپزي اوغوږسوريو ته اوبه داخلول**

**الإستفتاء:** که ديوې ښځي پزه ياغوږونه سوري وي اوهغه سوريو خيري نيولي وي نو دغه ښځه به په اوداسه اوغسل کي څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دمخ اوسردپرېوللوپه وخت کي دغه سوريوته پخپله اوبه داخلېدلې بياهيڅ مشکل نسته.

اوکه خپله اوبه نه داخلېدلې بيادي په ګوته سره ددغه ځای دمونبولو کوشش وکړي.

اوکه په دغه طريقه هم اوبه نه داخلېدلې نوبياپه دغه سوريوکي دلرګي اوياهم بل شي وهل لازم نه دي.(۱)

---

(۱) في الهندية : وإيصال الماء إلى داخل العينين ليس بواجب ولا سنة ولا يتكلف في الإغماض والفتح حتى يصل الماء إلى الأشفار وجوانب العينين كذا في الظهيرية وعن الفقيه أحمد بن إبراهيم إن غسل وجهه وغمض عينيه تغميضا شديدا لايجوز . (ج ۱ ص ۴ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الأول في فرائض الوضوء ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۷ كتاب الطهارة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۷۲ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام )

**۵ - په اوداسه کي دږيري پرېولل، يادوېښتانوبېخوته اوبه رسول**

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دږيري پرېولل، يالاندي پوست ته اوبه رسول څه حکم لري؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا:**

که ږيره خفيفه وه يعني دږيري لاندي پوست معلومېدی نوددغه ږيري لاندي پوست ته اوبه رسول په اوداسه کي فرض دي.

اوکه ږيره کثيفه (گڼه) وه بيايې ولاندي پوست ته اوبه رسول فرض نه دي، بلکه ددغه ږيري دلاندي هغي حصې پرېولل فرض دي چي دزني تر اندازې کښته نه وي.

اودږيري کومه حصه چي دزني تر اندازې کښته وي، دهغې حصې نه پرېولل فرض دي اونه مسح کول فرض دي. [۲]

---

[۱] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو لم يكن بثقب أذنه قرط فدخل الماء فيه أي الثقب عند مروره على أذنه أجزاه كسرة وأذن دخلهما الماء وإلا يدخل أدخله ولو بإصبعه ولا يتكلف بخشب ونحوه . ( ج ۱ ص ۱۱۴ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۱۴ كتاب الطهارة باب الغسل الفصل الأول في فرائض الغسل ، والبحر ج ۱ ص ۸۸ كتاب الطهارة )

[۲] في مراقي الفلاح : يجب" يعني يفترض "غسل ظاهر اللحية الكثة" وهي التي لا ترى بشرتها "في أصح ما يفتى به" من التصاحيح في حكمها لقيامها مقام البشرة بتحول الفرض إليها ورجعوا عما قيل من الاكتفاء بثلثها أو ربعها أو مسح كلها ونحوه "ويجب" يعني يفترض "إيصال الماء إلى بشرة اللحية الخفيفة" في المختار لبقاء المواجهة بها وعدم عسر غسلها وقيل يسقط لانعدام كمال المواجهة

**۶- په اوداسه او غسل کي دغټو برېتونو بېخوته اوبه رسول**

**الإستفتاء**: که ديو چا برېتونه دومره لوی وي، چي دو ښنتانو بېخوته يې اوبه نه رسيږي نو اودس او غسل يې صحيح کيږي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

که دغه برېتونه دومره لوی وي چي دشونډانو څخه يې اوبه منع کولې نو خلالول يې لازم دی چي شونډانو ته اوبه ورسيږي.

او که داسي نه وي بلکه يوازي ددغه و ښنتانو بېخوته اوبه نه رسېدې نو بيا يې اودس صحيح دی او غسل يې صحيح نه دی خامخا به په غسل کي دو ښنتانو بېخوته اوبه رسوي.[1]

---

بالنبات "ولا يجب إيصال الماء إلى المسترسل من الشعر عن دائرة الوجه . ( ص ۴۹ كتاب الطهارة فصل في تمام احكام الوضوء ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۷۴ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام ، والبحر ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة )

[1] في الهندية : وإذا كان شارب المتوضئ طويلا ولا يصل الماء تحته عند الوضوء جاز وعليه الفتوى بخلاف الغسل . ( ج ۱ ص ۴ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الأول في فرائض الوضوء ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۷۵ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام )

وفي ردالمحتار : ويستثنى منه ما إذا كان الشارب طويلا يستر حمرة الشفتين لما في السراجية من أن تخليل الشارب الساتر حمرة الشفتين واجب اه لأنه يمنع ظاهر وصول الماء إلى جميع الشفة أو

### ۷ - په اوداسه کي دپرې سوي لاس اوپښې دپرېوللو حکم

**الإستفتاء :** که دیو چالاس یا پښه پرې وي نو اودس به څنګه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا :**

که ددغه لاس، یاپښې هغه حصه ټوله پرې سوې وه چي په اوداسه کي يې پرېولل فرض دي، بيا پرېولل نه غواړي، اوکه دغه حصه چي پرېولل يې فرض دي يوڅه پاته وه نو بيادهمدغي پاته حصې پرېولل فرض دي. [1]

### ۸ - په اوداسه اوغسل کي دزائدي ګوتي اوچمبې د پرېوللوحکم

**الإستفتاء :** که دیو چا په لاس یا پښه پوري زائده ګوته یا چمبه موښتې وي، دغه په اوداسه اوغسل کي پرېولل غواړي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا :**

---

بعضها ولا سيما إن كان كثيفا، وتخليله محقق لوصول الماء إلى جميعها . ( ج ١ ص ٧٥ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام )

[1] في المحيط : ولو قطعت رجله من الكعب وبقي النصف من الكعب يفرض عليه غسل ما بقي من الكعب وموضع القطع، وكذلك هذا الحكم في المرفق في اليد إذا قطع اليد من المرفق وبقي نصف المرفق يفرض عليه غسل ما بقي من المرفق وموضع القطع وإن كان القطع فوق الكعب وفوق المرفق لم يجب غسل موضع القطع . ( ج ١ ص ٣٤ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء ، كذا في البحر ج ١ ص ٢٩ كتاب الطهارة ، والهندية ج ١ ص ٥ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء )

که دغه ګوته، یاچمبه دلاس، یادپښې پرهغه حصه باندي وي چي په اوداسه کي يې پرېولل فرض وي نودغه زائد اندام پرېولل هم فرض دي.

اوکه پردغه ځای باندي نه وي خويوڅه حصه يې له هغه ځای سره برابره وي چي پرېولل يې په اوداسه اوغسل کي فرض وي نوبيادغه حصې پريولل فرض دي.

اوکه يې دهغه ځای سره هيڅ حصه نه وي برابره چي پرېولل يې په اوداسه کي فرض دي بيادغه زائدي ګوتي اوچمبې پرېولل فرض نه دي مستحب دي.[1]

## ۹ - په اوداسه کي دزائد لاس اوپښې دپرېوللو حکم

**الإستفتاء**: که يوڅوک زائدلاس، ياپښه ولري نوپه اوداسه کي دغه لاس، ياپښه پرېمنځل غواړي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

که دغه شخص په دغه دواړولاسونو اوپښوباندي نيول کولای سي نو په اوداسه کي ددواړو پرېولل پرفرض دي.

---

[1] في الدر المختار على هامش رد المحتار : ولو خلق له يدان ورجلان، فلو يبطش بهما غسلهما، ولو بإحداهما فهي الأصلية فيغسلها، وكذا الزائدة إن نبتت من محل الفرض، كأصبع وكف زائدين وإلّا فما حاذى منهما محل الفرض غسله وما لا فلا، لكن يندب . ( ج ١ ص ٧۶ كتاب الطهارة مطلب في السنة وتعريفها ، كذا في البحر ج ١ ص ٢٩ كتاب الطهارة )

اوكه په يوه سره نيول كولاى سي نو بيا دهغه يوه پرېولل فرض دي ،دا بل كه داسي وي چي ددغه سم لاس يا پښې پرهغه حصه باندي راپورته سوى وي چي په اوداسه كي دهغه حصې پرېولل فرض وي نو په دغه صورت كي ددغه زائد پرېولل هم فرض دي.

اوكه دغه زائدلاس يا پښه دلاس يا پښې پرهغه حصه نه وي راپورته سوي چي په اوداسه كي دهغې حصې پرېولل فرض وي، نو بيا كه دغه زائدلاس يا پښه له دغه اصلي لاس، يا پښې سره موښتى وي نو پرېولل يې فرض دي.

اوكه موښتى نه وي ، نوكه يو څه حصه يې له هغه ځاى سره برابره وي چي په اوداسه كي يې پرېولل فرض وي نو بيا يې هم پرېولل فرض دي.

اوكه يې دهغه ځاى سره هيڅ حصه برابره نه وي چي پرېولل يې په اوداسه كي فرض ي نو بيا ددغه زائداندام پرېولل فرض نه دي بلكه مستحب دي.[1]

## ۱۰ - په اوداسه كي دتنګي ګوتمۍ كښلو ،ليري كولو حكم

**الإستفتاء:** كه ديوچاداسي تنګه ګوتمۍ په ګوته وي چي اوبه منع كوي نو په اوداسه كي دغه ګوتمۍ كښل يا ليري كول غواړي اوكه نه ؟

---

[1] في رد المحتار : والظاهر أنه يعتبر البطش أولاً، فإن بطش بهما وجب غسلهما وإلّا فإن كانتا تامّتين متصلتين وجب غسلهما، وإن كانتا منفصلتين لا يجب إلّا غسل الأصلية التي يبطش بها . ( ج ۱ ص ۷۶ كتاب الطهارة مطلب في السنة وتعريفها ، كذا انظرالحوالة السابقة بلا فصل )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دګوتي كومه حصه چي تردغه ګوتمۍ لاندي ده په اوداسه اوغسل كي دغه حصې ته اوبه رسول فرض دي، نواوس په هرډول چي كېداي سي دغې حصې ته به اوبه رسوي، كه ګوتمۍ كاږي، كه يې ښوروي.[1]

## ۱۱ - د نوكانود خيري سره داودس اوغسل كولو حكم

**الإستفتاء:** ديوچاپه نوكانوكي چي خيري وي نو اودس اوغسل يې څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د نوكانود خيري سره اودس اوغسل صحيح دي، فرق نه لري كه دغه كس دكلي هستوګن (اوسېدونكى) وي، كه دښار.[2]

---

[1] في مجمع الانهر : وتحريك خاتمه الواسع، وإن كان ضيقا يجب نزعه أو تحريكه . ( ج ۱ ص ۳۰ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۹۳ كتاب الطهارة مطلب الفرض افضل من النفل الا في مسائل ، والتاتارخانية ج ۱ ص ۲۰۰ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ۱۷ )

[2] في مراقي الفلاح : ولايمنع الدرن" أى وسخ الأظفار سواء القروي والمصري في ا لأصح فيصح الغسل مع وجوده . ( ص ۴۹ كتاب الطهارة فصل في تمام احكام الوضوء ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۳ كتاب الطهارات )

## ۱۲-په نوکانو کي دموجود ختي اوړ وسره داودس اوغسل حکم

**الإستفتاء** : ديوچاپه نوکانوکي که ختي يا اوړه موجود وي نواودس اوغسل ورسره صحيح کيږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا** :

که په نوکانوکي ختي يااوړه موجودوي په دغه مسئله کي دعاموفقهاء کرامو په نزد راجح قول دادی چي له دغوشيانو سره اودس اوغسل صحيح دی خوځيني فقهاء کرام لکه؛ العلامة الطحطاوي فرمايي: چي نوموړي علماء کرام چي فرمايي چي راجح قول دادی چي دغه ختي او اوړه اوداسه او غسل ته تاوان نه کوي ددغه فقهاء کرامو مراد هغه ختي او اوړه دي چي لږ اولانده وي اوکه ختي يا اوړه ډېروي يا وچ وي نوددغه ختو او اوړو ليري کول لازم دي اودس اوغسل نه ورسره صحيح کيږي.

نو احتياط دادى چي كه ديو چاپه نوكانوكي ډيري ختې يا اوړه موجود وي ، يا ختې او اوړه لږ وي خووچ وي نو دغه كس بايد دغه ختې او اوړه دنوكانو څخه ليري كړي چي اودس او غسل يې په اتفاق سره صحيح سي. [1]

## ۱۳ - دنوكانو د رنګ سره اودس او غسل كول

**الإستفتاء:** كه ښځه پرنوكانو باندي رنګ ناخون استعمال كړي نو اودس او غسل يې څه حكم لري ؟

---

[1] في البحر: وإذا كان في أظفاره درن أوطين أوعجين أوالمرأة تضع الحناء جاز في القروي والمدني، وهو صحيح وعليه الفتوى .( ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۱۳ )

وفي الهندية : سئل أبو القاسم عن وافر الظفر الذي يبقى في أظفاره الدرن أو الذي يعمل عمل الطين أو المرأة التي صبغت أصبعها بالحناء، أو الصرام، أو الصباغ قال كل ذلك سواء يجزيهم وضوءهم إذ لا يستطاع الامتناع عنه إلا بحرج والفتوى على الجواز من غير فصل بين المدني والقروي. كذا في الذخيرة وكذا الخباز إذا كان وافر الأظفار. ( ج ۱ ص ۴ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء )

وفي مراقي الفلاح : "وشرط صحته" أي الوضوء " ثلاثة ... و" الثالث "زوال مايمنع وصول الماء إلى الجسد" لحرمة الحائل "كشمع وشحم .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "كشمع وشحم" وعجين وطين وماذكره بعضهم من عدم منع الطين والعجين محمول على القليل الرطب . ( ص ۴۹/٤٨ كتاب الطهارة فصل في احكام الوضوء )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

لکه څرنگه چي معلومه ده چي دغه رنګ ناخون داوسنۍ زمانې شی دی نوپه دغه وجه سره دمذهب دفقهاءکرامو په کتابونوکي دغه مسئله په جزئي ډول سره نه ده ذکرسوې، اودموجوده دور ( زمانې ) ځیني علماء کرام فرمايي: چي ددغه رنګ ناخون سره اودس اوغسل نه صحیح کیږي لکه په احسن الفتاوی ج ۲ ص ۲۲ کي چي دغه مسئله ذکرده، اوځیني نورعلماء کرام بیافرمايي: چي ددغه رنګ ناخون سره اودس اوغسل صحیح دی لکه په فتاوی فریدیة ج ۲ ص ۵۲ کي چي دغه مسئله ذکرده.

نوبایدووایوچي احتیاط دادی ددغه رنګ ناخون له استعمال څخه ځان وساتل سي چي اودس اوغسل په اتفاق سره صحیح سي.

خوکه بیاهم یوه ښځه دغه رنګ ناخون استعمال کړي نودفقهاء کرامو کلام ته په کتلوسره بایدووایو چي که دغه ښځه په اساني سره هغه اوبه، یابل داسي شی پیداکولای سي چي دغه رنګ ناخون په اساني سره په لیري کیږي نواودس اوغسل نه دی ورسره روا ، دغه رنګ به خامخالیري کوي لکه صاحب داحسن الفتاوی چي وایي ځکه؛ ددغه رنګ په لیري کولوکي نه څه حرج اوتکلیف سته اونه هم ضرر سته.

اوکه دغه اوبه یابل داسي شی نه سي پیداکولای چي دغه رنګ ناخون په اساني سره په لیري سي، اوپه لیري کولوکي تکلیف، یاضرر وي نوبیا اودس

اوغسل ورسره صحيح دي، لکه صاحب دفتاوی فريديه چي وايي ځکه ددغه په ليري کولو کي حرج (تکليف) دی او حرج په دين کي معاف دی.[1]

## ۱۴- دسر دفرض مسح اندازه

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دسر دڅومره حصې مسح فرض ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دسر دڅلورمي حصې مسح کول فرض دي.[2]

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : (ويجب) أي يفرض (غسل) كل ما يمكن من البدن بلا حرج . ( ج ۱ ص ۱۱۲ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ) .

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) لا يمنع (ما على ظفر صباغ و) لا (طعام بين أسنانه) أو في سنه المجوف به يفتى. وقيل إن صلبا منع، وهو الأصح . ( ج ۱ ص ۱۱۴ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ، كذا في البحر ج ۱ ص ۸۸ كتاب الطهارة )

وفي ردالمحتار : (قوله: وهو الأصح) صرح به في شرح المنية وقال لامتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة والحرج ا هـ. ولا يخفى أن هذا التصحيح لا ينافي ما قبله فافهم.

[2] في الهندية : والمفروض في مسح الرأس مقدار الناصية. كذا في الهداية والمختار في مقدار الناصية ربع الرأس . ( ج ۱ ص ۵ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۲۱ كتاب الطهارة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۷۳ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام )

## ۱۵ - په اوداسه کې دسر دکومې څلورمې حصې مسح فرض ده

**الإستفتاء**: په اوداسه کې چې دسردڅلورمې حصې مسح کول فرض دي، آیاخامخابه دمخ د خوا څلورمه حصه وي اوکه دهرطرف څخه پرڅلورمه حصه مسح صحیح ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دافرض نه ده چې دغه څلورمه حصه به خامخادمخ دطرف څخه وي بلکه دهرطرف څلورمه حصه چې مسح کړل سي فرض په اداکیږي. [۱]

## ۱۶ - په اوداسه کې دسر دمسح پرځای دسر پرېولل

**الإستفتاء**: که یوڅوک په اوداسه کې سرپرېولي ایادغه دسر په پرېوللو سره دسر دمسح فرض اداکیږي اوکه دسر مسح بل وار جلا فرض ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دسرمسح بل وارفرض نه ده دغه دسر په پرېوللوسره دسر دمسح فرض اداکیږي خو دغه طریقه مکروه ده. [۱]

---

[۱] في الهندية : وفي الحجة ولو لم يمسح مقدم رأسه ولكن مسح مؤخره أو يمينه أو يساره أو وسطه يجوز . ( ج ۱ ص ۶ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الأول في فرائض الوضوء كذا في التاتارخانية ج ۱ ص ۲۰۱ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ۲۲ )

## ۱۷ - دسر دمسح دپاره نوي اوبه رااخيستل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دسر دمسح دپاره نوي اوبه رااخيستل لازم دي اوکه هغه لوندوالی کافي دی چي پرلاس باندي پاته وي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په لاس سره ديو اندام مسح وکړل سي لکه پرلاس باندي زخم وي پرهغه زخم مســـح وکړي نوتردغه مسح وروســـته چي کوم لوندوالی پرلاس پاته وي په دغه لوندوالي سره دسر مسح کول صحيح نه دي.

اوهمدارنګه که لاس پريوه بل لانده اندام باندي راکش کړل سي، په دغه لوندوالي سره هم دسرمسح نه صحيح کيږي.

اوکه په لاس سره يواندام پرېولل سي ، اوددغه پرېوللو وروسته پرلاس باندي لوندوالی پاته سي نوپه دې کي دعامو فقهاء کرامو رايه داده چي په دغه لوندوالي سره دسرمسح صحيح ده.

---

(۱) في الهندية : وإذا غسل الرأس مع الوجه أجزأه عن المسح ولكن يكره؛ لأنه خلاف ما أمر به . ( ج ۱ ص ۶ كتاب الطهارة الباب الأول في الوضوء الفصل الأول في فرائض الوضوء ، كذا في المحيط البرهاني ج ۱ ص ۴۴ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء )

اوځه فقهاء کرام بیافرمایي: چي په دغه لوندوالي سره دسر مسح کول نه صحیح کیږي، نو احتیاط دادی چي دسر دمسح لپاره نوي اوبه راواخیستل سي چي اودس یې په اتفاق سره صحیح وبلل سي. [1]

## ۱۸ - په اوداسه کي دپښو چاودوته اوبه داخلول

**الإستفتاء :** که دیوچا پښې چاودلي وي، په اوداسه کي دغه چاودو ته اوبه داخلول فرض دي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا :**

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ومسح ربع الرأس مرة) فوق الأذنين ولو بإصابة مطر أو بلل باق بعد غسل على المشهور لا بعد مسح .

وفي ردالمحتار : (قوله: أو بلل باق إلخ) هذا إذا لم يأخذه من عضو آخر مقدسي، فلو أخذه من عضو آخر لم يجز مطلقا بحر: أي سواء كان ذلك العضو مغسولا أو ممسوحا درر . (قوله: على المشهور) مقابله قول الحاكم بالمنع، وخطأه عامة المشايخ، وانتصر له المحقق ابن الكمال وقال الصحيح ما قاله الحاكم، فقد نص الكرخي في جامعه الكبير على الرواية عن أبي حنيفة وأبي يوسف أنه إذا مسح رأسه بفضل غسل ذراعيه لم يجز إلا بماء جديد؛ لأنه قد تطهر به مرة اه وأقره في النهر . ( ج ۱ ص ۷۳ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام ، كذا في مراقي الفلاح ص ۴۷ كتاب الطهارة فصل في احكام الوضوء ، والتاتارخانية ج ۱ ص ۲۰۳ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ۳۴ / ۳۷ )

که دغه چاودوته اوبو تاوان نه رسوی نودغه چاودوته اوبه داخلول فرض دي ، اوکه اوبو تاوان ورته رسوی نوبیادي پردغه چاودو باندي مسح وکړي اوکه مسح هم تاوان ورته کوی نوبیادي دغه چاودي دغسي پریږدي. [۱]

## ۱۹ - په اوداسه اوغسل کي دزخمي اوسوځلي بدن پرېولل

**الإستفتاء:** که دیو انسان بدن سوځلی یازخمي وي، پرېولل تاوان ورته کوي نودبې اودسې اوجنابت په حالت کي به څه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا:**

که دغه انسان بې اودسه سي، نوکه په څلورو اندامو کي چي هغه مخ، لاسونه ، سراوپښې دي تر دوه ډېر داسي وي چي اوبه تاوان ورته رسوي نوتیمم به وهي.

اوکه دوه یاتردوه کم داسي وي چي اوبه تاوان ورته کوي نوبیابه دغه روغ اندامونه پرېولي، اوهغه زخمي اندامونه که داسي وي چي مسح تاوان نه ورته کوي نو مسح به پر وکړي اوکه مسح تاوان ورته کوي نو دپټۍ په ډول یوشی دي پر وتړي، مسح دي پر وکړي ، اوکه داسي شی نه وي اویاشی وي خونه تړل

---

[۱] في االدرالمختار على هامش ردالمحتار : في اعضائه شقاق غسله ان قدر والا مسحه والا تركه . ( ج ۱ ص ۷۵ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام ، كذا في الدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ۱ ص ۷۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والهندية ج ۱ ص ۵ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء )

کېدی، یاشی تړل کېدی خوپردغه شي باندي مسح تاوان کوی نوپه دغه درې سره حالاتو کې دغه ځایونه نه پرېولل غواړي اونه هم مسح کول غواړي.

اوکه پردغه انسان باندي غسل لازم سي دمثال په توګه جنب سي نوبیاکه دده دبدن ترنیمایې ډېره حصه زخمي وي نوتیمم دي ووهي.

اوکه یې دبدن ترنیمایي ډېره حصه روغه وه، لږحصه یې زخمي وه، نوبیابه دغه روغه حصه پرېولي اوهغه زخمي حصه که داسي وي چې مسح تاوان نه ورته کوي نوپردغه حصه به مسح وکړي اوکه دغه حصې ته مسح تاوان کوي، نوبیادي دپټۍ غوندي یوشی پر وتړي اومسح دي پر وکړي، اوکه داسي شی نه وي، یاشی وي خو تړل یې نه کیږي، یاشی تړل کیږي خو پرهغه شي مسح تاوان کوي، نوپه دغه ټولو حالاتو کې دغه حصه نه پرېولل غواړي اونه هم مسح کول غواړي.

اوکه یې دبدن پوره نیمایي حصه زخمي وي اونیمایي حصه یې روغه وي، په دغه صورت کې اختلاف دی، خوډېر راجح قول دادی چې دغه صورت داسي حکم لري لکه دهغه صورت چې دبدن لږحصه یې زخمي وي اوډېره حصه یې روغه وي، یعني دغه نیمه روغه حصه به پرېولي اوهغه زخمي حصه که داسي وه چې مسح تاوان نه ورته کوي، نوپردغه حصه باندي به مسح وکړي، اوکه دغه حصې ته مسح تاوان کوی نوبیابه پردغه حصه باندي دپټۍ غوندي یوشی وتړي اوپرهغه به مسح وکړي، اوکه داسي شی نه وي، یاشی وي خوتړل یې نه کیږي

اوياشی تړل کيږي خوپردغه شي باندي مسح تاوان کوي، نوپه دغه درې سره حالاتو کي دغه حصه نه پربولل غواړي اونه هم مسح کول غواړي.[۱]

---

[۱] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : (تيمم لو) كان (أكثره) أي أكثر أعضاء الوضوء عددا وفي الغسل مساحة (مجروحا) أو به جدري اعتبارا للأكثر (وبعكسه يغسل) الصحيح ويمسح الجريح (و) الأصح؛ لأنه (أحوط) فكان أولى. = راتلونکی مخ

وفي ردالمحتار : وقد اختلفوا في حد الكثرة؛ فمنهم من اعتبرها في نفس العضو، حتى لو كان أكثر كل عضو من الأعضاء الواجب غسلها جريحا تيمم وإن كان صحيحا يغسل. وقيل في عدد الأعضاء حتى لو كان رأسه ووجهه ويداه مجروحة دون رجليه مثلا تيمم، وفي العكس لا. اهـ درر البحار. قال في البحر: وفي الحقائق المختار الثاني، ولا يخفى أن الخلاف في الوضوء؛ أما في الغسل فالظاهر اعتبار أكثر البدن مساحة. اهـ. وما استظهره أقره عليه أخوه في النهر ونقله نوح أفندي عن العلامة قاسم فلذا جزم به الشارح ... (قوله ويمسح الجريح) أي إن لم يضره وإلا عصبها بخرقة ومسح فوقها خانية وغيرها ومفاده كما قال ط أنه يلزمه شد الخرقة إن لم تكن موضوعة ... (قوله ولا رواية في الغسل) أي لا رواية في صورة المساواة عن أئمتنا الثلاثة، وإنما فيها اختلاف المشايخ؛ فقيل تيمم كما لو كان الأكثر جريحا؛ لأن غسل البعض طهارة ناقصة والتيمم طهارة كاملة، وقيل يغسل الصحيح ويمسح الجريح كعكس الأولى؛ لأن الغسل طهارة حقيقية بخلاف التيمم. واختلف الترجيح والتصحيح كما في الحلية، ورجح في البحر تصحيح الثاني بأنه أحوط وتبعه في المتن.( ج ۱ ص ۱۸۸ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين ،كذا في البحر ج ۱ ص ۲۸۴ كتاب الطهارة باب التيمم )
وفي البدائع : ولا خلاف في أنه إذا كان المسح على الجبائر يضره أنه يسقط عنه المسح؛ لأن الغسل يسقط بالعذر، فالمسح أولى . ( ج ۱ ص ۹۰ كتاب الطهارة مطلب شرط جواز المسح )

**۲۰ - داوداسه په اندامونو کي شکمن سي چي څه به وچ پاته سوي وي**

**الإستفتاء:** که یو چاته په اوداسه کي داشک پیداسو چي څه اندامونه به یې وچ پاته سوي وي نو څه به کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه شک داوداسه په مینځ کي ورته پیداسو ، اوس که دغه شک دده عادت نه وي بلکه یووخت ورته پېښېدی نو دغه مشکوک ځای به بیرته پرېولي اوکه دغه شک دده عادت وي یعني ډېر ډېر ورته پېښېدی، نودغه ځای بیا پرېولل نه غواړي.

اوکه دغه شک تراوداسه وروسته ورته پیداسي ، نوبیاکه داسي وي چي دغه شک ډېر ډېر ورته پېښېدی نودغه مشکوک ځای پرېولل نه غواړي، اوکه دغه شک ډېرډېر نه ورته پېښېدی، نوپه دغه کي دوه قوله دي ، یوقول دادی چي دغه شکمن ځای پرېولل نه غواړي، دوهم قول دادی چي پرېولل غواړي ، که یې

په دغه اوداسه سره لمونځ کړی وي نو دغه لمونځ هم راګرځول غواړي، او احتیاط په دغه دوهم قول کي معلومیږي، نو باید په دغه دوهم قول باندي عمل وسي. [1]

## ۲۱- تر بولو کولو وروسته سمدستي اودس تازه کول

**الإستفتاء:** که یوڅوک بولي وکړي او تر بولو وروسته متصل اودس تازه کړي دغه څه حکم لري؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

---

[1] في ردالمحتار : شك في بعض وضوئه وهوأول شك غسل ما شك فيه، وإن وقع له كثيرا لم يلتفت إليه؛ وهذا إذا شك في خلال وضوئه، فلو بعد الفراغ منه لم يلتفت إليه اه لكن سئل العلامة قاسم في فتاويه عمن شك وهو في صلاته أنه على وضوء أم لا فأجاب بأنه إن كان أول ما عرض له أعاد الوضوء والصلاة وإلا مضى في صلاته . ( ج۱ ص ۵۵۸ كتاب الصلاة اخر باب سجود السهو )

وفي الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وشک في بعض وضوئه اعادماشک فيه لوفي خلاله ولم يكن الشک عادة له والا لا . ( ج ۱ ص ۱۱۱ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ، كذا في البزازية على هامش الهندية ج ۴ ص ۱۳ كتاب الطهارة نوع في الشک ، والتاتارخانية ج ۱ ص ۲۶۷ كتاب الطهارة فصل في بيان مايوجب الوضوء المسئلة ( ۳۴۳ )

وفي البدائع : والمراد من قوله أول ما شك أن الشك في مثله لم يصر عادة له لا أنه لم يبتل به قط وإن كان يعرض له ذلك كثيرا لم يلتفت إليه لأن ذلك وسوسة والسبيل في الوسوسة قطعها . ( ج ۱ ص ۱۴۰ كتاب الطهارة قبيل مطلب مس المصحف )

داوداسه دصحت لپاره دا لازمه ده چي تر بولو کولو وروسته به دومره وخت انتظارکوي چي زړه يې ښه مطمئن (بې غمه) سي چي نور بولي دربډلي دي، اوکه تراطمنان دمخه اودس وکړي دغه اودس يې صحيح نه دی.[1]

---

[1] في مراقي الفلاح : وشرط صحته" أي الوضوء "ثلاثة" الأول ... "و" الثاني "انقطاع ما ينافيه من حيض ونفاس" لتمام العادة "و" انقطاع "حدث" حال التوضؤ . ( ص ٤٩ كتاب الطهارة فصل في احكام الوضوء ).

وفي درر الحكام شرح غرر الاحكام : (ويجب الاستبراء بالمشي أو التنحنح أو النوم) أي الاضطجاع على شقه الأيسر حتى يستقر قلبه على انقطاع العود كذا في الظهيرية (وقيل يكتفي بمسح الذكر واجتذابه ثلاث مرات) ، والصحيح أن طباع الناس وعاداتهم مختلفة . ( ج ١ ص ٤٩ كتاب الطهارة باب الاستنجاء فصل سن الاستنجاء ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٥٣ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب في الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء )

# الفصل الثاني في سنن الوضوء

## ( دوهم فصل داودس دسنتوپه بيان کي دی )

### ۲۲ - داوداسه دپاره نيت کول

**الإستفتاء:** داوداسه دپاره نيت کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه مسئله کي بايدوواېوچي په اصل کي دلته دوې خبري دي:

اوله خبره داده چي په دغه اوداسه سره يوازي لمونځ رواسي، صرف دلمانځه شرط پرځای سي، دلته نيت لازم نه دی، سنت دی ، نوکه يوڅوک دګرمۍ په وجه مخ ، لاسونه، پښې پرېولي اوسر پرېولي، ياپر سر لوندلاس تېر کړي نودغه اودس بېل عبادت نه بلل کيږي، بېل ثواب نه لري خولمونځ په صحيح کيږي.

دوهمه خبره داده چي دغه اودس بېل عبادت وګڼل سي، مستقل ثواب پرمرتب سي، ددغه خبري دپاره نيت لازم دی، که نيت نه وي دمثال په توګه يوڅوک دګرمۍ په سبب مخ، لاسونه ، پښې پرېولي اوسرپرېولي ياپرسر لاس تېر کړي ، نودغه اودس ځانته بېل عبادت نه دی ، مستقل ثواب نه لري.[1]

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : البداية بالنية أي نية عبادة لا تصح إلا بالطهارة كوضوء أو رفع حدث أو امتثال أمر وصرحوا أنها بدونها ليس بعبادة . ( ج ۱ ص ۷۸ كتاب الطهارة مطلب الفرق بين النية والقصد والعزم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۲ كتاب الطهارة ، وفتح القدير ج ۱ ص ۲۸ كتاب الطهارة )

## ۲۳ - داوداسه په شروع کي دلاسونو پرېولل

**الإستفتاء:** داوداسه په شروع کي دلاسونو پرېولل څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که لاسونه پاک وي نوداوداسه په شروع کي يې پرېولل سنت دي اوکه لاسونه ناپاک وي نوداوداسه په شروع کي يې پرېولل ضروري دي.[1]

## ۲۴ - دخولې اوپزې دپرېوللوحکم اوطريقه

**الإستفتاء:** په اودسه کي دخولې اوپزې پرېولل څه حکم لري اوڅرنګه طريقه يې ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دخولې اوپزې پرېولل سنت دي.

اوطريقه يې داده چي دهريوه لپاره به درې درې واره په راسته لاس سره اوبه رااخلي خو دپزې پاکول به په چپه لاس سره کوي.[2]

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و البداءة بغسل اليدين الطاهرتين ثلاثا.

وفي ردالمحتار : (قوله: الطاهرتين) أما غسل النجستين فواجب . ( ج ۱ ص ۸۱ كتاب الطهارة مطلب سائر بمعنى باقي لا بمعنى جميع ،كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۵۱ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وغسل الفم) ... (بمياه) ثلاثة (والأنف) ببلوغ الماء المارن (بمياه) وهما سنتان مؤكدتان ... وفعلهما باليمنى.

وفي ردالمحتار : (قوله: وفعلهما باليمنى) أي ويمخط ويستنثر باليسرى، كما في المنية والمعراج. ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة مطلب في منافع السواک ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۵۵ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، والهندية ج ۱ ص ۹ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات )

## ۲۵-په اوداسه کي د مسواک وهلو حکم

**الإستفتاء:** په اوداسه کي مسواک وهل سنت دي او که مستحب دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي مسواک وهل سنت دي. [۱]

## ۲۶-په اوداسه کي دمسواک وهلو وخت

**الإستفتاء:** په اوداسه کي چي مسواک وهل سنت دي دغه په کوم وخت کي سنت دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داکثر علماؤ پرقول باندي په اوداسه کي دخولې دپرېوللو په وخت کي مسواک وهل سنت دي. [۲]

## ۲۷-مسواک بايدد کوم قسم لرګي څخه وي

**الإستفتاء:** مسواک به دکوم قسم لرګي څخه وي ؟

---

[۱] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والسواك سنة مؤكدة . ( ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء )

[۲] في البحر : واختلف في وقته ففي النهاية وفتح القدير أنه عند المضمضة وفي البدائع والمجتبى قبل الوضوء والأكثر على الأول، وهو الأولى؛ لأنه الأكمل في الإنقاء . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم ، ومراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۵۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

تر ټولوښه خبره داده چي مسواک د اراک یازیتون دلرګي څخه وي .اوکه دغه لرګی نه پیدا کېدی نوبیا دي په بل داسي لرګي سره مسواک ووهي چي خولي ته تاوان نه رسوي اوښه خبره داده چي تریخ لرګی وي، په داسي لرګي سره چي خولي ته تاوان رسوي مسواک وهل مکروه دي.[1]

## ۲۸ - دمسواک لرګی به څنګه اوڅومره وي

**الإستفتاء:** دمسواک لرګی به څنګه اوڅومره وي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دمسواک لرګی به سیده وي ، زخي ونه لري ،په اول کي به یوه لویشت اوږدوالی ولري، که وروسته دسمولو په وجه کوچنی سي پروانه لري.

---

[1] في الدرالمختار علی هامش ردالمحتار : ويكره بمؤذ. ( ج ۱ ص ۸۵ کتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک).

وفي ردالمحتار: (قوله: ويكره بمؤذ) قال في الحلية: وقال غير واحد من العلماء كراهته بقضبان الرمان والريحان اه. وفي شرح الهداية للعيني: روى الحارث في مسنده عن ضمير بن حبيب قال: «نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن السواك بعود الريحان، وقال: إنه يحرك عرق الجذام» وفي النهر: ويستاك بكل عود إلا الرمان والقصب. وأفضله الأراك ثم الزيتون. روى الطبراني «نعم السواك الزيتون من شجرة مباركة، وهو سواكي وسواك الأنبياء من قبلي» . (ج ۱ ص ۸۵ کتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک، كذا في مراقي الفلاح ص۵۳ کتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء)

وفي الهندية : وينبغي أن يكون السواك من أشجار مرة . ( ج ۱ ص ۷ کتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ،كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲ کتاب الطهارة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۲۵ کتاب الطهارة )

تریوه لویشت به اوږد نه وي او پنډوالی به یې دخچې ګوتي په اندازه وي.[1]

## ۲۹ - دمسواک دنیولو طریقه

**الإستفتاء:** دمسواک دنیولو طریقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دمسواک دنیولو طریقه داده چي دراسته لاس بټه ګوته به دمسواک تر سر لاندي کړي او خچې ګوته به دمسواک تر پای لاندي کړي او دمابین درې ګوتي به پر مسواک سربېره کښېږدي ،او دلرګي په شان به یې په موټ کي نه نیسي ځکه فقهاء کرام فرمایي چي دغه دبواسیرو دمرض سبب ګرزي.[2]

---

(1) في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) ندب إمساكه (بيمناه) وكونه لينا، مستويا بلا عقد، في غلظ الخنصر وطول شبر ... ولا يزاد على الشبر، وإلا فالشيطان يركب عليه . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواك ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۵۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

وفي ردالمحتار : (قوله: وطول شبر) الظاهر أنه في ابتداء استعماله، فلا يضر نقصه بعد ذلك بالقطع منه لتسويته .

(2) في الهندية : ويندب إمساكه بيمينه بأن جعل الخنصر أسفله والإبهام أسفل رأسه وباقي الأصابع فوقه . ( ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا يقبضه فإنه يورث الباسور . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواك ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة ، ومراقي الفلاح ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء) .= راتلونکی مخ

### ۳۰ - دمسواک وهلو طریقه

**الإستفتاء:** دمسواک دوهلو طریقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دمسواک دوهلو طريقه داده چي اول به دلوړي زامي دراسته طرف پر غاښونومسواک ووهي، بيابه دچپه طرف پرغاښونومسواک ووهي.

بيابه دلاندي زامي اول دراسته طرف پر غاښونو مسواک ووهي،وروسته دي دچپه طرف پر غاښونو مسواک ووهي.

اوهم به دغاښونو پرښکاره طرف باندي مسواک ووهي، هم به يې پردننه طرف باندي ،اوهمدراز به دزامي دغاښونو پر سرونو باندي مسواک ووهي.

اوهمداسي دي دخولي دننه طرف ته پر لوړ تالو باندي اولاندي طرف ته پر ژبه باندي به مسواک ووهي.

اودابه هم په پام کي وي چي پرغاښونوباندي به مسواک په داسي طريقه سره وهي چي دمخ دغاښونو دطرف څخه به يې شروع کړي، دزامي دغاښونو وخواته.

اولنډلنډ دغاښونود سر دطرف څخه د ورېٔ خواته به يې نه وهي. [1]

---

وفي تاج العروس : (والباسور: علة م) ، أعجمي، وقال الجوهري: هي علة تحدث في المقعدة، نسأل الله العافية عنها، وعن كل داء. (ج البواسير) . ( ج ۱۰ ص ۱۷۶ باب الراء فصل الباء الموحدة مع الراء )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ويستاك عرضا لا طولا . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواك ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة ، والدر المنتقى على هامش مجمع الانهر ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة. ) . = راتلونکی مخ

## ۳۱ - په اوداسه کي به مسواک څو واره استعمالوي

**الإستفتاء:** په اوداسه کي به مسواک څو واره استعمالوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

فقهاء کرام فرمايي: چي په اوداسه کي دمسواک کمه اندازه داده چي درې واره استعمال سي اوپه هر وار کي به په اوبو سره لوند کړي.

خو په ردالمحتار کي فرمايي: چي په اصل کي دمسواک دسنت دحاصلولو لپاره يوه ټاکلې اندازه نسته، بلکه سنت دادی چي مسواک دی ترهغه وخته پوري استعمال کړي چي زړه يې دغاښونو پرپاکوالي اودخولې د بدبويي پرختم کېدلو باندي مطمئن (ببغمه)سي خو که دغه اطمينان تردرې واره دمخه حاصل سو نو مستحب دادی چي درې واره پوره کړي.

نودلته به ووايو چي دردالمحتار ددغه خبري مقصود دادی چي فقهاء کرام چي د درې واره خبره کوي دهغه مقصد دادی چي دمستحب استعمال کمه اندازه

---

وفي ردالمحتار : (قوله:: ويستاك عرضا لا طولا) أي لأنه يجرح لحم الأسنان. وقال الغزنوي: طولا وعرضا. والأكثر على الأول بحر، لكن وفق في الحلية بأنه يستاك عرضا في الأسنان وطولا في اللسان جمعا بين الأحاديث، ثم نقل عن الغزنوي أنه يستاك بالمداراة خارج الأسنان وداخلها أعلاها وأسفلها ورءوس الأضراس وبين كل سنين . وفي البحر : ويبدأ بالأسنان العليا من الجانب الأيمن ثم الأيسر ثم السفلى كذلك . ( ج ۱ ص ۴۳ كتاب الطهارة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، والطحطاوي على الدرالمختار ج ۱ ص ۷۰ كتاب الطهارة )

دري واره ده . [۱]

## ۳۲ - تر مسواک وهلو وروسته دمسواک زبېښل

**الإستفتاء:** تر مسواک وهلو وروسته دمسواک زبېښل څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

تر مسواک وهلو وروسته به مسواک نه زبېښي ؛ ځکه دغه دسترګو دکمزورۍ اودوسوسې دپيدا کېدلو سبب ګرزي.

خو دمسواک داول استعمال په وخت کي هغه ناړي تېرول پکار دي چي وينه نه وي ورسره ګډه ځکه؛ دغه ناړي دمرګ څخه ماسوا نور دهر مرض شفاء ده . [۲]

---

[۱] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وأقله ثلاث في الأعالي وثلاث في الأسافل (بمياه) ثلاثة . ( ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة ، وحاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۱۰ كتاب الطهارة .)

وفي ردالمحتار : (قوله: وأقله إلخ) أقول: قال في المعراج: ولا تقدير فيه، بل يستاك إلى أن يطمئن قلبه بزوال النكهة واصفرار السن، والمستحب فيه ثلاث بثلاث مياه. اه والظاهر أن المراد لا تقدير فيه من حيث تحصيل السنة، وإنما تحصل باطمئنان القلب فلو حصل بأقل من ثلاث فالمستحب إكمالها . ( ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا يمصه فإنه يورث العمى. وفي ردالمحتار : (قوله: ولا يمصه) بضم الميم كيخص، وأما بلع الريق بلا مص، ففي الحلية قال الحكيم الترمذي وابلع ريقك أول ما تستاك؛ فإنه ينفع الجذام والبرص وكل داء سوى الموت، ولا تبلع بعده شيئا فإنه يورث الوسوسة، يرويه زياد بن علاقة .( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک )

وفي مجمع الانهر : ولا تمص فانه يورث العمى . ( ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة ) = راتلونکی مخ

## ۳۳ - تراوداسه وروسته دمسواک پرېولل

**الإستفتاء:** تراوداسه وروسته مسواک پرېولل غواړي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

تراوداسه وروسته به مسواک پرېولي ځکه؛ فقهاء کرام فرمايي: چي که يې پرې نه ولي نوبيا يې شيطان استعمالوي. [1]

## ۳۴ - تراوداسه وروسته دمسواک دايښوولو طريقه

**الإستفتاء:** مسواک به تراستعمال وروسته پرڅه طريقه باندي ايږدي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مسواک به تر استعمال وروسته دغوږ شاته لکه دکاتب قلم داسي کښېږدي، يابه يې دلنګوټې په وله کي کښېږدي، يابه يې ددېوال په څېر (رقم) يوه شي ته جګ ودروي، خوپر مځکه باندي به يې نه غورځوي؛ ځکه ددغه څخه دجنون اولېونتوب ېېره سته. [2]

---

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : ولا يمصه لأنه يورث العمى ويكره بمؤذ ويحرم بذي سم ويبتلع الريق الصافي من الدم فإنه نافع من الجذام والبرص ومن كل داء سوى الموت . ( ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ثم يغسله وإلا فيستاك الشيطان به . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۵۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا يضعه بل ينصبه، وإلا فخطر الجنون .=راتلونکی مخ

## ۳۵ - دپروتي په وخت مسواک وهل

**الإستفتاء:** که يو څوک پر اړخ پروت وي، مسواک وهي دغه څه حکم لري؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه عمل مکروه دی. [۱]

## ۳۶ - يو چاته چي همېشه مسواک وهل تاوان کوي

**الإستفتاء:** که يو چاته دائمي (همېشه)مسواک ديو عذر په وجه تاوان کوي دغه شخص به څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په الطحطاوي کي فرمايي چي دغه شخص به په دومره اندازه سره مسواک وهي چي تاوان نه ورته کوي اوتر دغه زيات دده دپاره مستحب نه دی . [۲]

---

وفي ردالمحتار : (قوله: ولا يضعه إلخ) أي لا يلقيه عرضا بل ينصبه طولا. قال القهستاني: وموضع سواكه صلى الله عليه وسلم من أذنه موضع القلم من أذن الكاتب وأسوكة أصحابه خلف آذانهم، كما قال الحكيم الترمذي، وكان بعضهم يضعه في طي عمامته . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک )

وفي حاشية الشرنبلالي على درر الحكام شرح غرر الاحكام : ولا يوضع منبسطا على الارض بل قائما . ( ج ۱ ص ۱۰ كتاب الطهارة )

[۱] في الهندية : ويكره أن يستاك مضطجعا . ( ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۳ كتاب الطهارة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة )

[۲] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : ولا يستحب لمن يؤذيه المواظبة عليه بل يفعله أحيانا . ( ص ۵۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

## ۳۷ - دښځي دپاره ژاولي دمسواک پرځای استعمالول

**الإستفتاء:** دښځي دپاره ژاولي ژوول دمسواک پرځای دريږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دښځي دپاره ژاولي ژوول دمسواک پرځای دريږي، دمسواک ثواب لري خوهغه وخت چي دمسواک په نيت باندي يې استعمال کړي اودالازمه نه ده چي داوداسه په شروع کي به ژاولي استعمالوي. [1]

## ۳۸ - که دچاغاښونه وتلي وي ، يامسواک نه وي

**الإستفتاء:** که ديوچا غاښونه وتلي وي اويا مسواک نه وي نودغه به ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه شخص به دمسواک پرځای باندي په ګوته سره ياپه يوزبږ ټوکر سره غاښونه ياوري، وموښي دعذر په وجه باندي دغه ګوته اوټوکر دمسواک پر ځای باندي دريږي. [2]

---

[1] في مراقي الفلاح : ويقوم العلك مقامه للنساء لرقة بشرتهن.

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "ويقوم العلك مقامه للنساء" من المعلوم أنه لا يحصل الثواب لهن إلا بالنية ثم الظاهر أنهن لا يؤمرن بالعلك في ابتداء الوضوء كالسواك للرجال ويحرر. ( ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۸۵ مطلب في منافع السواک )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وعند فقده أو فقد أسنانه تقوم الخرقة الخشنة أو الأصبع مقامه . ( ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة قبيل مطلب في منافع السواک ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۳ كتاب الطهارة ).= راتلونکی مخ

## ۳۹ - داوداسه څخه ماسوابل وخت مسواک وهل

**الإستفتاء:** مسواک یوازي داوداسه په وخت کي استعمالیږي اوکه بل وخت هم سنت یامستحب بلل کیږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

مسواک په اوداسه کي سنت دی لکه چي مخکي ذکرسول، خوداوداسه څخه ماسوا په نورو ځایونوکي هم مستحب دی لکه لمانځه ته دولاړېدلوپه وخت کي خودهغه چادپاره چي دمسواک په وجه یې خوله وینې نه کوي، یادغاښونو دپاکوالي دپاره، یادخولې دبدبویي دختمولودپاره ، یادقرآن کریم دتلاوت دپاره، یاکورته دداخلېدلو په وخت کي، یادخلګو ومجلس ته دورتګ په وخت کي او یادخوب څخه دراپورته کېدلو پروخت. [1]

---

وفي مراقي الفلاح : وفضله يحصل ولو كان الاستياك بالأصبع أو خرقة خشنة عند فقده أي السواك أو فقد أسنانه أو ضرر بفمه لقوله عليه السلام يجزئ من السواك الأصابع وقال علي رضي الله عنه التشويص بالمسبحة والإبهام سواك . ( ص ٥٣ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

[1] في مراقي الفلاح : ويستحب لتغير الفم والقيام من النوم وإلى الصلاة ودخول البيت واجتماع الناس وقراءة القرآن والحديث لقول الإمام إنه من سنن الدين وقال عليه الصلاة والسلام: "السواك مطهرة للفم مرضاة للرب" فيستوي فيه جميع الأحوال . ( ص ٥٣ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٨٤ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم ، )

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "وإلى الصلاة" محل الاستحباب في ذلك إذا أمن خروج الدم وإلا فلا . ( ص ٥٣ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ).

وفي فتح القدير : ويستحب في خمسة مواضع: اصفرار السن، وتغير الرائحة، والقيام من النوم، والقيام إلى الصلاة، وعند الوضوء والاستقراء يفيد غيرها، وفيما ذكرنا أول ما يدخل البيت . ( ج ١ ص ٢٢ كتاب الطهارة )

## ۴۰ -په اوداسه کي دږيري دخلالولو حکم اوطريقه

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دږيري خلالول څه حکم لري ،طريقه يې څنګه ده؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دږيري خلالول سنت دي.

اوطريقه يې داده چي دمخ تر درې واره پرېوللو وروسته به په لاس باندي اوبه راواخلي اودلاندي خوا څخه به يې پر ږيره باندي توی کړي اوبيابه په ګوتو باندي ږيره په داسي طريقه سره خلال کړي چي دلاس ورغوی به دباندي طرف ته کړي اودلاس شا به دغاړي طرف ته کړي يعني لاس به واړوي ، اوپه ردالمحتار کي فرمايي چي دغه دږيري خلالول به په راسته لاس سره وکړي. [1]

---

[1] في مراقي الفلاح : و يسن في الأصح تخليل اللحية الكثة وهو قول أبي يوسف لرواية أبي داود عن أنس أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يخلل لحيته والتخليل تفريق الشعر من جهة الأسفل إلى فوق ويكون بعد غسل الوجه ثلاثا "بكف ماء من أسفلها" لأن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا توضأ أخذ كفا من ماء تحت حنكه فخلل به لحيته وقال بهذا أمرني ربي عز وجل وأبو حنيفة ومحمد يفضلانه لعدم المواظبة ولأنه لإكمال الفرض وداخلها ليس محلا له بخلاف تخليل الأصابع ورجح في المبسوط قول أبي يوسف لرواية أنس رضي الله عنه.

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "من جهة الأسفل إلى فوق" ويكون الكف إلى عنقه كما في القهستاني وابن أمير حاج وغيرهما أي حال وضع الماء ويجعل ظهر كفه إلى عنقه حال التخليل كما في الحموي وإذا علمت ما ذكر فلا وجه للإعتراض على المؤلف في قوله من جهة الأسفل . ( ص ٥٥ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٨٦ كتاب الطهارة مطلب في منافع السواک )

وفي ردالمحتار : ثم اعلم ان هذا التخليل باليد اليمنى . ( ج ١ ص ٨٧ كتاب الطهارة مطلب في منافع السواک )

## ۴۱ - په اوداسه کي دږيري دخلالولو سنت وخت

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دږيري خلالول څه وخت سنت دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دږيري خلالول دمخ تردرې واره پرېوللووروسته سنت دي.[١]

## ۴۲ - په اوداسه کي دټول سر مسح کولو حکم

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دټول سرمسح کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دټول سر مسح کول سنت دي.[٢]

## ۴۳ - په اوداسه کي دټول سر دمسح کولو طريقه

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دټول سردمسح کولو طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دټول سردمسح کولودپاره فقهاء کرامو دوې طريقې ذکر کړي دي:

---

[١] في الهندية : (ومنها تخليل اللحية) ذكر قاضي خان في شرح الجامع الصغير تخليل اللحية بعد التثليث سنة في قول أبي يوسف وبه أخذ كذا في الزاهدي وفي المبسوط وهو الأصح . ( ج ١ ص ٧ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، كذا في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار ج ١ ص ٨٦ كتاب الطهارة مطلب في منافع السواك )

[٢] في الهندية : (ومنها) مسح كل الرأس مرة . ( ج ١ ص ٧ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء كذا في تبيين الحقائق ج ١ ص ٣٢ والمبسوط للسرخسي ج ١ ص ٧٧ كتاب الصلاة )

۱- یوه طریقه داده چي دواړه لاسونه لانده کړي اوبیا ددواړو لاسونوګوتي مخ په مخ سره ونیسي اوبیابه ددواړولاسونودرې درې ګوتي دسردمخ پر طرف کښیږدي، او ورغوي اوبټي ګوتي اودشهادت ګوتي به لیري کړي ، بیابه لاسونه دڅټ خواته کش کړي دسر ترپایه پوري، بیابه دهغه خواڅخه دواړه ورغوي دسرپرپاته حصه (بغلونو)راکش کړي، وروسته به دشهادت په ګوتوسره دغوږونو دننه حصه مسح کړي اوپه بټوګوتو به دغوږونو دباندي حصه مسح کړي.

۲- دوهمه طریقه داده چي ددواړولاسونو ورغوي اوټولي ګوتي دسر دمخ پر طرف کښیږدي اوبیایې دڅټ طرف ته کش کړي او بیالاسونه دسر څخه پورته نه کړي داغسي یې دغوږونو طرف ته راکش اوپه هغه زړه طریقه سره دغوږونو مسح وکړي ، اوپه ردالمحتار کي دغه دوهمه طریقه ښه طریقه بلل سوېده.

خوداخبره یادساتل پکاردي چي دغه دوهمه طریقه هغه وخت ښه طریقه ده چي دغوږونوترمسح کولودمخه لاسونه دسرڅخه پورته نه کړي بلکه دغسي یې تر غوږونو پوري راکش کړي اوکه لاسونه دسرڅخه پورته کړي نودغه زوړ لوندوالی مستعمل بلل کیږي، بیابه دغوږونو مسح په نورو اوبوسره کوي، که نوري اوبه نه راواخلي نودغه شخص دغوږونو دمسح پرېښوونکی بلل کیږي؛ ځکه په دغه مخکني مستعمل لوندوالي سره دغوږونومسح نه صحیح کیږي.

نوپه همدغه وجه ویلای سوچي په اوسنۍ زمانه کي عمومادخلګودپاره هغه اوله طریقه ښه طریقه ده ځکه ډېرخلګ دغوږونوترمسح کولودمخه لاسونه پورته کوي اوبیاپه دغه زاړه مستعمل لوندوالي سره غوږونه مسح کوي، نوکه

دغه خلګ په دغه دوهمه طريقه سره عمل وکړي، دغوږودمسح پرېښوونکي به وبلل سي. [۱]

## ۴۴ - په اوداسه کي دغوږونومسح

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دغوږونومسح کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دغوږونو مسح سنت ده. [۲]

## ۴۵ - په اوداسه کي دغوږونو دمسح طريقه

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دغوږونودمسح کولو طريقه څرنګه ده ؟

---

[۱] في العناية مع فتح القدير : وصفة الاستيعاب أن يبل يديه ويضع بطون ثلاث أصابع من كل كف على مقدم الرأس، ويعزل السبابتين والإبهامين ويجافي الكفين ويجرهما إلى مؤخر الرأس، ثم يمسح الفودين بالكفين ويجرهما إلى مقدم الرأس . ( ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة ، كذا في الكفاية مع فتح القدير ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة ، وخلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۲۶ كتاب الطهارة الفصل الرابع في المسح على الرأس )

وفي ردالمحتار : قال الزيلعي وتكلموا في كيفية المسح. والأظهر أن يضع كفيه وأصابعه على مقدم رأسه ويمدهما إلى القفا على وجه يستوعب جميع الرأس ثم يمسح أذنيه بأصبعيه. اهـ. وما قيل من أنه يجافي المسبحتين والإبهامين ليمسح بهما الأذنين والكفين ليمسح بهما جانبي الرأس خشية الاستعمال، فقال في الفتح: لا أصل له في السنة؛ لأن الاستعمال لا يثبت قبل الانفصال، والأذنان من الرأس . ( ج ۱ ص ۸۹ كتاب الطهارة مطلب في تصريف قولهم معزيا ) .

وفي تقريرات الرافعي : قوله ( ثم يمسح اذنيه باصبعيه ) اى بلا رفعهما عن الرأس .

[۲] في خلاصة الفتاوى : وامامسح الاذنين فسنة . ( ج ۱ ص ۲۶ كتاب الطهارة الفصل الرابع في المسح على الرأس ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، والبحر ج ۱ ص ۵۳ كتاب الطهارة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دغوږونو دمسح طريقه داده چي دشهادت په ګوتوسره به دغوږونو دننه حصه مسح کړي اوپه بټو ګوتو سره به دغوږونو دشاخوامسح کړي، دواړي خچې (کوچنۍ) ګوتي به دغوږو نو په سوريوکي دننه کړي بيابه يې وښوروي.[1]

## ۴۶ - دغوږونو دمسح دپاره نوي اوبه را اخيستل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دغوږونو دمســح دپاره نوي اوبه غواړي اوکه دسر دمســح په اوبو سره هم صحيح کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دسر تر مسح کولو وروسته دلاس لوندوالی وچ سي په دغه وخت کي دغوږونو دمسح دپاره نوي اوبه غواړي.

اوکه دسر ترمسح کولو وروسته دغوږونو ترمسح کولو دمخه دسر څخه لاسونه پورته کړي په دغه وخت کي هم دغوږونو دمسح لپاره نوي اوبه غواړي؛ ځکه دغه مخکنی لوند والی مستعمل وبلل سو، لکه دسر دمسح په طريقه کي چي دا خبره تېرسوه.

اوکه دسر ترمسح کولو وروسته لاسونه پورته نه کړي نوښه خبره داده چي دغوږو دمسح دپاره نوي اوبه راواخلي اوکه نوي اوبه نه راواخلي او لاسونه دسر

---

[1] في البحر: (قوله وأذنيه بمائه) أي بماء الرأس وفي المجتبى يمسحهما بالسبابتين داخلهما وبالإبهامين خارجهما، وهو المختار كذا في المعراج وعن الحلواني وشيخ الإسلام يدخل الخنصر في أذنيه ويحركهما .( ج ١ ص ٥٣ كتاب الطهارة ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٥٧ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، وحاشية الشلبي على تبيين الحقائق ج ١ ص ٤٠ كتاب الطهارة )

ترمسح کولو وروسته داغسي ترغوږو پوري راکش کړي نو دغه دسر دمسح په پاته لوندوالي سره هم دغوږونو مسح صحیح کیږي. [١]

### ۴۷ -دلاسونو اوپښو دګوتو دخلالولو حکم

**الإستفتاء :** په اوداسه کي دلاسونو او پښو دګوتو خلالول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دلاسونو او پښو دګوتو خلالول سنت دي. [٢]

---

[١] في مراقي الفلاح : و يسن مسح الأذنين ولو بماء الرأس لأنه صلى الله عليه وسلم غرف غرفة فمسح بها رأسه وأذنيه فإن أخذ لهما ماءا جديدا مع بقاء البلة كان حسنا .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "مع بقاء البلة" أما مع فنائها بأن رفع العمامة بهما فلا يكون مقيما للسنة إلا بالتجديد . ( ص ٥٧ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٨٩ / ٩٠ كتاب الطهارة مطلب في تصريف قولهم معزيا ، والبحر ج ١ ص ٥٣ / ٥۴ كتاب الطهارة )

وفي ردالمحتار: وقد يقال: لا بد من الأخذ مطلقا لأنه بمس العمامة يحصل الانفصال فيحكم على البلة بالاستعمال، وعلى هذا ينبغي أن يقال: لو مسح رأسه بيده ثم رفعهما قبل مسح الأذنين فلا بد من أخذ ماء جديد ولو كانت البلة باقية، تأمل . ( ج ١ ص ٩٠ كتاب الطهارة مطلب في تصريف قولهم معزيا ، كذا في مجمع الانهر ج ١ص ٢٨ كتاب الطهارة ، وتبيين الحقائق ج ١ص ٨٩ كتاب الطهارة)

[٢] في الهندية : ومنها تخليل الأصابع . ( ج ١ ص ٧ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، كذا في البحر ج ١ ص ۴٥ كتاب الطهارة ، ومراقي الفلاح ص ٥۶ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

## ۴۸ - دلاسونو او پښو دګوتو دخلالولو طریقه

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دلاسونو او پښو دګوتو دخلالولو طریقه څرنګه ده؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دلاسونو دګوتو دخلالولوطریقه داده چي دلاسونو تردرې واره پرېوللو وروسته به دهر لاس ګوتي دهغه بل لاس دګوتو په مینځ کي داخلي کړي.

اودپښودګوتو دخلالولو طریقه داده چي دهري پښې تردرې واره پرېوللو وروسته به دچپه لاس په خچې (کوچنۍ) ګوته سره ددغه پښې دخچې (کوچنۍ) ګوتي څخه خلالول شروع کړي اوپربته ګوته به يې ختم کړي. [1]

## ۴۹ - په اوداسه کي دمخ لاسونواوپښو درې واره پرېولل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دمخ،لاسونو،پښو درې واره پرېولل څه حکم لري؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي دمخ ،لاسونو ،پښو دهريوه درې واره پرېولل سنت دي. [2]

---

[1] في الهندية : والأولى في اليدين التشبيك وفي الرجلين أن يخلل بخنصر يده اليسرى خنصر رجله اليمنى ويختم بخنصر رجله اليسرى. كذا في النهر الفائق ويدخل الأصبع من أسفل . ( ج ١ ص ٧ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثاني في سنن الوضوء ، كذا في درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٨٧ كتاب الطهارة مطلب في منافع السواک )

[2] في مراقي الفلاح : ويسن تثليث الغسل : ( ص ۵۶ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في البحر ج ١ ص ۴۶ كتاب الطهارة ، ومجمع الانهر ج ١ ص ٢٧ كتاب الطهارة )

**٥٠ - په اودس کي دپاته سوي اندام پرېوللو يا اودس راګرځولو حکم**

**الإستفتاء**:که يوچا اودس وکړي وروســـته بياورپيادسو چي يواندام راڅخه پاته سوی دی نواوس يوازي ددغه پاته اندام پرېولل پرلازم دی اوکه دټول اودس راګرځول ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

يوازي ددغه اندام پرېولل پرلازم دي دټول اوداسه راګرځول پرلازم نه دي؛ ځکه په اوداسه کي داندامونوپه مينځ کي ترتيب اوپرله پسې والی سنت دی فرض نه دی.[1]

---

[1] في الهداية : والترتيب في الوضوء سنة عندنا . ( ج ١ ص ٣٣ كتاب الطهارة ، كذا في الهندية ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الأول في الوضوء قبيل الفصل الثالث في المستحبات ، ومراقي الفلاح ص ٥٨ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء )

# الفصل الثالث في المستحبات

## ( دريم فصل داوداسه دمستحباتوپه بیان کي دی )

### ۵۱ - په اوداسه کي دقبلې طرف ته مخ ګرځول

**الإستفتاء:** داوداسه په وخت کي به انسان کوم طرف ته مخ کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داوداسه په وخت کي مستحبه طريقه داده چي دقبلې شريفي طرف ته مخ کړي.[1]

### ۵۲ - داوداسه په وخت کي پر لوړ ځای کښېنستل

**الإستفتاء:** داوداسه په وخت کي پرځنګه ځای باندي کښېناستل په کار دي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داوداسه په وخت کي مستحب دادی چي پر يو لوړ ځای باندي کښيني چي دمستعملو اوبو څخه ځان وساتي.[2]

---

[1] في مراقي الفلاح : فآداب الوضوء ... واستقبال القبلة في غير حالة الاستنجاء . ( ص ٦٠ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، كذا في الهندية ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ، والتاتارخانية ج ١ ص ٢٢٨ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ١٢٦ )

[2] في مراقي الفلاح : فآداب الوضوء الجلوس في مكان مرتفع تحرزا عن الغسالة . ( ص ٦٠ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، كذا في دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ١٢

## ۵۳ - په پاک ځای کي اودس کول

**الإستفتاء:** اودس به په څرنګه ځای کي کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مستحبه خبره داده چي په پاک ځای کي اودس وکړل سي ځکه داوداسه اوبه محترمي اوبه دي. (۱)

## ۵۴ - داواسه په وخت کي دپراخي ګوتمۍ ښورول

**الإستفتاء:** که ديو چاغټه ( ازاده ) ګوتمۍ په ګوته وي دغه په اوداسه کي ښورول غواړي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مستحب داده چي دغه ګوتمۍ وښوروي. (۲)

## ۵۵ - په اوداسه کي دلاسونو اوپښو دپربوللو ښه طريقه

**الاستفتاء :** په اودس کي دلاسونو اودپښو دپريوللو ښه طريقه کومه ده ؟

---

كتاب الطهارة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٩۴ كتاب الطهارة مطلب في مباحث الاستعانة في الوضوء بالغير )

(۱) في الهندية : والتوضؤ في موضع طاهر لأن لماء الوضوء حرمة. ( ج ١ ص ٩ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ، كذا في البحر ج ١ ص ۵٨ كتاب الطهارة ، وردالمحتار ج ١ ص ٩٢ كتاب الطهارة مطلب في تتميم مندوبات الوضوء)

(۲) في مراقي الفلاح : وتحريك خاتمه الواسع للمبالغة في الغسل . ( ص ۶١ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٩٣ مطلب الفرض افضل من النفل الا في مسائل ، وشرح المنية ص ٣۴ ومن الآداب ان يستاک )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اودس کي ښه طريقه داده چي پر لاسو او پښو دګوتو دطرف څخه اوبه توی کړي.[۱]

## ۵۶- په اوداسه کي مخ لاسونه اوپښې ترخپلي اندازې ډېر پرېولل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي مخ، لاسونه اوپښې ترخپلي اندازې ډېر پرېولل څه حکم لري لکه لاسونه ترڅنګلو لوړ هم پرېولي پښې تربجلکو پورته پرېولي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه مستحب عمل دی ددې دپاره چي دهغه فرضي اندازې پرېولل يقيني سي.[۲]

## ۵۷- په اوداسه کي درقبې مسح

**الإستفتاء:** درقبې مسح سنت ده اوکه مستحب ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

درقبې مسح پرصحيح قول باندي مستحب ده خودلاسونو دشا په طرف

---

[۱] في مراقي الفلاح : و يسن البداءة بالغسل من رؤوس الأصابع في اليدين والرجلين لأن الله تعالى جعل المرافق والكعبين غاية الغسل فتكون منتهى الفعل كما فعله النبي صلى الله عليه وسلم . ( ص ۵۹ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۸ كتاب الطهارة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۹۱ كتاب الطهارة مطلب في تصريف قولهم معزيا )

[۲] في الهندية : ويجاوز حد الوجه واليدين والرجلين ليستيقن بغسل الحدود . ( ج ۱ ص ۹ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ، كذا في شرح المنية ص ۳۷ ومن الآداب ان يستاک ، والبحر ج ۱ ص ۵۷ كتاب الطهارة )

باندي به يې مسح كوي. [١]

## ۵۸ - په اوداسه كي دكرنكي دمسح حكم

**الإستفتاء:** په اوداسه كي د حلقوم (كرنكي) مسح كول څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه كي د حلقوم (كرنكي) مسح كول بدعت دي. [٢]

## ۵۹ - داوداسه داندامودپرېوللواومسح كولوپروخت مستحب دعاوي

**الإستفتاء:** په اوداسه كي داندامونو دپرېوللو اومسح كولو په وخت كي كومي دعاوي مستحب دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه كي داندامونو دپرېوللو اومسح كولو په وخت كي ښه خبره داده چي دغه لاندي دعاوي ووايي اوتردغه هري دعاء وروسته دي درود شريف

---

[١] في ردالمحتار : (قوله ومسح الرقبة ) هوالصحيح وقيل انه سنة . ( ج ١ ص ٩٢ كتاب الطهارة مطلب في تتميم مندوبات الوضوء ، كذا في المبسوط ج ١ ص ٨١ ، و الهندية ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الثالث في المستحبات )

وفي الهندية : والثاني مسح الرقبة وهو بظهر اليدين وأما مسح الحلقوم فبدعة . ( ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٦ كتاب الطهارة ، ودرر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة )

[٢] في الهندية : والثاني مسح الرقبة وهو بظهر اليدين وأما مسح الحلقوم فبدعة . ( ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٦ كتاب الطهارة ، ودرر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة )

وو ايي اوكه دچادغه تولي دعاوي په ياد نه وي ، بيادي دهراندام سره دشهادت كلمه وو ايي ځكه بعض فقهاء كرامو دغه طريقه هم ذكر كړې ده :

١- دلاسونو دپرېوللو په وخت كي به بسم الله وو ايي.

٢- دخولې دپرېوللو په وخت كي به دغه دعاء وو ايي: ( **بسم الله اللّٰهُمَّ أَعِنِّي عَلَى تِلَاوَةِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ** ).

٣- دپزې دپرېوللو پرمهال به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ أَرِحْنِيْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَلَا تُرِحْنِيْ رَائِحَةَ النَّارِ** ).

۴- دمخ دپرېوللو پرمهال به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ بَيِّضْ وَجْهِيْ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ** ).

۵- دراسته لاس دپرېوللو پرمهال به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ أَعْطِنِيْ كِتَابِيْ بِيَمِيْنِيْ وَحَاسِبْنِيْ حِسَابًا يَسِيْرًا** ).

۶- دچپه لاس دپرېوللو پرمهال به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ لَا تُعْطِنِيْ كِتَابِيْ بِشِمَالِيْ وَلَا مِنْ وَّرَاءِ ظَهْرِيْ** ).

٧- دسر دمسح په وخت كي به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ أَظِلَّنِيْ تَحْتَ عَرْشِكَ يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلُّ عَرْشِكَ** ).

٨- دغوږو دمسح په وخت كي به دغه دعاء وو ايي :( **بسم الله اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنْ الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ** ).

٩- دڅټ دمسح په وخت کي به دغه دعاء ووايي :( **بسم الله اللّهُمَّ أَعْتِقْ رَقَبَتِيْ مِنْ النَّارِ** ).

١٠- دراسته پښې دپرېوللو په وخت کي به دغه دعاء ووايي :( **بسم الله اللّهُمَّ ثَبِّتْ قَدَمِي عَلَى الصِّرَاطِ يَوْمَ تَزِلُّ الْأَقْدَامُ** ).

١١- دچپه پښې دپرېوللو په وخت کي به دغه دعاء ووايي :( **بسم الله اللّهُمَّ اجْعَلْ ذَنْبِيْ مَغْفُورًا وَسَعْيِ مَشْكُورًا، وَتِجَارَتِيْ لَنْ تَبُورَ** ).[١]

---

[١] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والتسمية كما مر عند غسل كل عضو وكذا الممسوح والدعاء بالوارد عنده أي عند كل عضو .

وفي ردالمحتار : (قوله: والدعاء بالوارد) فيقول بعد التسمية عند المضمضة: اللهم أعني على تلاوة القرآن وذكرك وشكرك وحسن عبادتك، وعند الاستنشاق: اللهم أرحني رائحة الجنة ولا ترحني رائحة النار، وعند غسل الوجه: اللهم بيض وجهي يوم تبيض وجوه وتسود وجوه، وعند غسل يده اليمنى: اللهم أعطني كتابي بيميني وحاسبني حسابا يسيرا، وعند غسل اليسرى: اللهم لا تعطني كتابي بشمالي ولا من وراء ظهري، وعند مسح رأسه: اللهم أظلني تحت عرشك يوم لا ظل إلا ظل عرشك، وعند مسح أذنيه: اللهم اجعلني من الذين يستمعون القول فيتبعون أحسنه، وعند مسح عنقه: اللهم أعتق رقبتي من النار، وعند غسل رجله اليمنى: اللهم ثبت قدمي على الصراط يوم تزل الأقدام، وعند غسل رجله اليسرى: اللهم اجعل ذنبي مغفورا وسعي مشكورا، وتجارتي لن تبور، كما في الإمداد والدرر وغيرهما، وثم روايات أخر ذكرها في الحلية وغيرها وسيأتي أنه يصلي على النبي صلى الله عليه وسلم بعد غسل كل عضو، فصار مجموع ما يذكر عند كل عضو التسمية والشهادة والدعاء والصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم لكن قال صاحب الهداية في مختارات النوازل: ويسمي عند غسل كل عضو أو يدعو بالدعاء المأثور فيه أو يذكر كلمة الشهادة أو يصلي على النبي صلى الله عليه وسلم

## ۶۰ - تراوداسه وروسته پاته اوبه چښل

**الإستفتاء:** تراوداسه وروسته داوداسه څخه پاته اوبه چښل څه حکم لري؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

داوداسه پاته اوبه چښل مستحب دي، په ناسته ، اوپه ولاړه دواړو طريقو سره يي چښل روادي. [1]

## ۶۱ - تراوداسه وروسته مستحب دعاء

**الإستفتاء:** تراوداسه کولو وروسته کومه دعاء ويل مستحب دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه باره کي فقهاء کرامو مختلفي دعاوي رانقل کړي دي، نوپه دغه دعاوو کي چي هره دعاء ووايې ښه خبره ده،خومستحب داده چي ددغه دعاپه وخت کي مخامخ قبلې شريفي ته ودريږي ، يوڅه دهغه دعاوو دادي:

---

فأتى في الجميع بأو، ولكن رأيت في الحلية عن المختارات ويدعو بالواو وبأو في البواقي فليراجع . ( ج ۱ ص ۹۴ مطلب في مباحث الاستعانة في الوضوء بالغير ، مثله في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۶۰ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، والهندية ج ۱ ص ۹ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات )

[1] في مراقي الفلاح : وأن يشرب من فضل الوضوء قائما أو قاعدا لأنه صلى الله عليه وسلم شرب قائما من فضل وضوئه وماء زمزم وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "لا يشربن أحدكم قائما فمن نسي فليستقيء" . ( ص ۶۱ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۹۵ كتاب الطهارة مطلب في مباحث الشرب قائما )

**١-سُبْحَانَكَ اللّهُمَّ وَبِحَمَدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ .**

**٢-اللّهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنْ التَّوَّابِينَ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ الْمُتَطَهِّرِيْنَ.**

**٣-أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.**

**٤-أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ ورسوله.**[1]

---

(١) في الهندية : وأن تقول بعد الفراغ من الوضوء سبحانك اللهم وبحمدك أشهد أن لا إله إلا أنت أستغفرك وأتوب إليك وأشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا عبده ورسوله ... وأن يقول بعد الفراغ من الوضوء أو في خلال الوضوء: اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين . ( ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الثالث في المستحبات ).

وفي مراقي الفلاح : "والإتيان بالشهادتين بعده" قائما مستقبلا لقوله صلى الله عليه وسلم: "ما منكم من أحد يتوضأ فيسبغ الوضوء ثم يقول أشهد أن لا إله إلا الله وأن محمدا عبده ورسوله وفي رواية أشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له وأشهد أن محمدا عبده ورسوله إلا فتحت له أبواب الجنة الثمانية يدخلها من أي باب شاء" وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: "من قال إذا توضأ سبحانك اللهم وبحمدك أشهد أن لا إله إلا أنت أستغفرك وأتوب إليك طبع بطابع ثم جعل تحت العرش حتى يؤتى بصاحبها يوم القيامة . ( ص ٦١ كتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ )

# الفصل الرابع في المکروهات

## ( څلورم فصل داوداسه دمکروهاتوپه بيان کي دی )

### ٦٢ - په بيت الخلاء کي داودس تازه کولوپر وخت ددعاء ويلوحکم

**الإستفتاء:** په اوسني وخت کي ډېر خلګ په بيت الخلاء کي اودس تازه کوي ايادغه خلګ به په دغه ځای کي داوداسه پراندامونوباندي هغه مستحب دعاوي وايي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په بيت الخلاء کي به داودس تازه کولوپروخت مستحب دعاوي نه وايي.[1]

### ٦٣ - ببله عذره په چپه لاس خولې اوپزي ته اوبه رااخيستل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي ببله عذره خولې اوپزي ته په چپه لاس باندي اوبه رااخيستل څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي ببله عذره خولې اوپزي ته په چپه لاس باندي اوبه رااخيستل

---

[1] في ردالمحتار : ولو توضأ في الخلاء لعذر هل يأتي بالبسملة ونحوها من أدعيته مراعاة لسنة الوضوء أو يترکها مراعاة للمحل؟ والذي يظهر الثاني لتصريحهم بتقديم النهي على الأمر تأمل . ( ج ١ ص ٢٥٢ کتاب الطهارة باب الانجاس مطلب القول مرجح على الفعل ).

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : وترک المکروه مقدم على فعل السنة . ( ص ٣٦٧ کتاب الصلاة باب ادراک الفريضة ، کذا في البحر ج ٢ ص ١٣٠ کتاب الصلاة باب ادراک الفريضة ، وحاشية الشلبي على تبيين الحقائق ج ١ ص ٤٥٢ کتاب الصلاة باب ادراک الفريضة )

مکروه دی.[١]

## ۶۴ - ببله عذره په راسته لاس سره پزه پاکول

**الإستفتاء:** په اوداسه کي ببله عذره په راسته لاس سره پزه پاکول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي ببله عذره په راسته لاس سره پزه پاکول مکروه دي.[٢]

## ۶۵ - په اوداسه کي پر اندامونو باندي په زوره اوبه اچول

**الإستفتاء:** په اوداسه کي پر مخ، يابل اندام باندي په زوره اوبه اچولڅه حکم لري؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي پر مخ، اوبل اندام باندي په زوره اوبه اچول مکروه دي.[٣]

---

[١] في الهندية : والمضمضة والاستنشاق باليسار والامتخاط باليمين من غير عذر . ( ج ١ ص ٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الرابع في المكروهات ، كذا في التاتارخانية ج ١ ص ٢٣٠ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ١٣٣ )

[٢] في الهندية : والامتخاط باليمين من غيرعذر . ( ج ١ ص٨ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الرابع في المكروهات ، كذا في التاتارخانية ج ١ ص ٢٣٠ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ١٣٣ ) ، وفتح القدير ج ١ ص ٣٢ كتاب الطهارة قبيل فصل في نواقض الوضوء)

[٣] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ومكروهه لطم الوجه او غيره بالماء تنزيها .

وفي ردالمحتار : (قوله: تنزيها) لما قدمنا عن الفتح من أن تركه أدب. قال في الحلية لأنه يوجب انتضاح الماء المستعمل على ثيابه وتركه أولى، وأيضا هو خلاف التؤدة والوقار، فالنهي عنه نهي أدب

## ۶۶- داوداسه پروخت ددنیاخبري کول

**الإستفتاء:** په اوداسه کي ددنیاخبري کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ببله عذره په اوداسه کي ددنیاخبري کول مکروه دي.

اوکه دعذر په وجه باندي وي بیا پروانه لري؛ لکه دداسي یوضرورت خبره وي چي که تراودس وروسته سي نوهغه ضروري کارنه ترسره کیږي.[1]

## ۶۷- په اوداسه کي دبل چاڅخه کومک غوښتل

**الإستفتاء:** په اوداسه کي دبل چاڅخه کومک غوښتل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که یوڅوک دعذر په وجه دبل چاڅخه کومک وغواړي داهیڅ پروانه لري.

---

. ( ج ۱ ص ۹۷ کتاب الطهارة مطلب في تعريف المكروه، وأنه قد يطلق على الحرام والمكروه تحريما وتنزيها ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۶۴ كتاب الطهارة فصل في المكروهات )

[1] في مراقي الفلاح : ويكره التكلم بكلام الناس لأنه يشغله عن الأدعية.

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "ويكره التكلم بكلام الناس" ما لم يكن لحاجة تفوته بتركه قاله ابن أمير حاج قوله: "لأنه يشغله عن الأدعية" ولأجل تخليص الوضوء من شوائب الدنيا لأنه مقدمة العبادة وذكر بعض العارفين أن الاستحضار في الصلاة يتبع الإستحضار في الوضوء وعدمه في عدمه . ( ص ۶۴ كتاب الطهارة فصل في المكروهات )

وفي الهندية : وأن لا يتكلم فيه بكلام الناس ... فإن دعت إلى الكلام حاجة يخاف فوتها بتركه لم يكن فيه ترك الأدب . ( ج ۱ ص ۸ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الرابع في المكروهات ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۹۴ كتاب الطهارة مطلب في مباحث الاستعانة في الوضوء بالغير )

اوکه دعذر په وجه سره نه وي نوبيا اول خو مستحب خبره داده چې دبل چا څخه کومک نه وغواړي، اوکه بياهم يوڅوک دبل چاڅخه داسي کومک وغواړي چې دغه بل انسان دده اندامونه ورپرېولي اويايې ورمسح کړي دغه مکروه عمل دی.

اوکه داسي کومک ورڅخه وغواړي چې دڅاه څخه اوبه ورته راوکاږي، يايې ورته راوړي اويا اوبه ورتوی کړي دغه بيا پروانه لري.[1]

## ۶۸- په اوداسه کي تر شرعي اندازې زياتي اوبه استعمالول

**الإستفتاء:** په اوداسه کي تر شرعي اندازې زياتي اوبه استعمالول څه حکم لري؟

---

[1] في مراقي الفلاح : فآداب الوضوء ... وعدم الاستعانة بغيره ليقيم العبادة بنفسه من غير إعانة غيره عليها بلا عذر . ( ص ۶۰ کتاب الطهارة فصل من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ )

وفي ردالمحتار بعد تحقيق طويل : وحاصله أن الاستعانة في الوضوء إن كانت بصب الماء أو استقائه أو إحضاره فلا كراهة بها أصلا ولو بطلبه وإن كانت بالغسل والمسح فتكره بلا عذر ولذا قال في التتارخانية: ومن الآداب أن يقوم بأمر الوضوء بنفسه ولو استعان بغيره جاز بعد أن لا يكون الغاسل غيره بل يغسل بنفسه . ( ج ۱ ص ۹۴ کتاب الطهارة في مباحث الاستعانة في الوضوء بالغير )

وفي التاتارخانية : ومن الادب ان يقوم بأمر الوضوء بنفسه ... ومع هذا لو استعان بغيره جاز بعد أن لايكون الغاسل غيره بل يغسل بنفسه وقد صح ان رسول الله صلى الله عليه وسلم استعان بالمغيرة وكان المغيرة يفيض الماء ورسول الله صلى الله عليه وسلم كان يغسل. ( ج ۱ ص ۲۲۷ کتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ۱۱۹ / ۱۲۰ )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په اوداسه کي تر شرعي اندازې زياتي اوبه استعمالول شرعا اسراف بلل کيږي اودغه اسراف که دويالې په اوبو ياپه مملوکه اوبوکي وي نومکروه تحريمي دی.

اوکه په وقفي اوبوکي وي لکه دمسجدونو اومدارسو اوبه چي په قيمت اخيستل کيږي اويا په برق باندي راپورته کيږي، نوبيا دغه اسراف حرام دی.[1]

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والإسراف ومنه الزيادة على الثلاث فيه تحريما ولو بماء النهر والمملوك له أما الموقوف على من يتطهر به ومنه ماء المدارس فحرام.

وفي ردالمحتار : (قوله: فحرام) لأن الزيادة غير مأذون بها لأنه إنما يوقف ويساق لمن يتوضأ الوضوء الشرعي ولم يقصد إباحتها لغير ذلك حلية، وينبغي تقييده بما ليس بجار كالذي في صهريج أو حوض أو نحو إبريق، أما الجاري كماء مدارس دمشق وجوامعها فهو من المباح كماء النهر كما أفاده الرحمتي . ( ج ١ ص ٩٧ / ٩٨ كتاب الطهارة مطلب في الاسراف في الوضوء )

وفي البحر : وهنا تنبيهات:الأول: أن الإسراف هو الاستعمال فوق الحاجة الشرعية، وإن كان على شط نهر وقد ذكر قاضي خان تركه منا السنن ولعله الأوجه فعلى كونه مندوبا لا يكون الإسراف مكروها وعلى كونه سنة يكون مكروها تنزيها وصرح الزيلعي بكراهته وفي المبتغى أنه من المنهيات فتكون تحريمية وقد ذكر المحقق آخرا أن الزيادة على ثلاث مكروهة، وهي من الإسراف، وهذا إذا كان ماء نهر أو مملوكا له، فإن كان ماء موقوفا على من يتطهر أو يتوضأ حرمت الزيادة والسرف بلاخلاف وماء المدارس من هذا القبيل؛ لأنه إنما يوقف ويساق لمن يتوضأ الوضوء الشرعي. ( ج ١ ص ٥٧ كتاب الطهارة ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٦٤ كتاب الطهارة فصل في المكروهات )

## ۶۹ - اندامونه داسي پرېولل چي دغوړولو سره مشابهت ولري

**الإستفتاء:** په اوداسه کي اندامونه په داسي طريقه سره پرېولل چي دغوړېدلو سره مشابهت ولري څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اوداسه کي اندامونه په داسي طريقه سره پرېولل چي دغوړېدلو سره مشابهت ولري مکروه دي.[1]

## ۷۰ - که په اوداسه کي اندامونه يويو وار پرېولي

**الإستفتاء:** که يوڅوک په اوداسه کي اندامونه يو يو وار پرېولي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه عمل ديوعذر په وجه باندي وي لکه داوبو دلږوالي په وجه، يادډېر يخ په وجه، يا ديوبل معتبر حاجت په وجه باندي اندامونه يو يو وار پرېولي،

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والتقتير والاسراف آه.

وفي ردالمحتار : (قوله: والتقتير) أي بأن يقرب إلى حد الدهن ويكون التقاطر غير ظاهر، بل ينبغي أن يكون ظاهرا ليكون غسلا بيقين في كل مرة من الثلاث .( ج ۱ ص ۹۷ كتاب الطهارة مطلب في الاسراف في الوضوء، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص۶۴كتاب الطهارة فصل في المكروهات

پروا نه لري اوکه ببله عذره وي، بیاکه دغه عمل یو وخت وکړي نوګناه نه بلل کیږي اوکه یې عادت وګرزوي نوبیادغه عمل مکروه دی.(۱)

## ۷۱ - دځان داوداسه دپاره یولوښی خاص کول

**الإستفتاء:** ځیني خلک دځان دپاره یولوښی خاص کړي چي یوازي زه به اودس په تازه کوم، بل څوک به اودس نه په تازه کوي دغه عمل څه حکم لري؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه عمل شرعامکروه کاردی، باید ځان لیري ځیني وساتل سي.(۲)

## ۷۲ - ببله عذره په یوه لاس باندي دسر مسح کول

**الإستفتاء:** ببله عذره دسر مسح په یوه لاس باندي کول څه حکم لري؟

---

(۱) في خلاصة الفتاوی : وان توضأ مرة مرة ان فعل لعزة الماء اولعذر البرد او لحاجة لا يكره وكذا ان فعله احيانا اما اذا اتخذ ذلک عادة يكره . ( ج ۱ ص ۲۲ كتاب الطهارة الفصل الثالث في نواقض الوضوء سنن الوضوء ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۸۷ / ۸۸ كتاب الطهارة قبيل مطلب كلمة لابأس قد تستعمل في المندوب )

(۲) في الهندية : ويكره أن يخص لنفسه إناء يتوضأ به دون غيره كما يكره أن يعين لنفسه في المسجد مكانا . ( ج ۱ ص ۹ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الرابع في المكروهات ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۷۳ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لا يجوز ، البحر ج ۱ ص ۱۵۹ كتاب الطهارة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

سنت طريقه داده چې د سر مسح په دواړو لاسونو باندي وکړل سي په يوه لاس سره د سر مسح کول د سنت خلاف عمل دی . [1]

## ۷۳ - تر اوداسه اوغسل وروسته داندامونو وچول

**الإستفتاء:** ببله عذره تر اوداسه، يا غسل کولو وروسته په دسمال، يا بل شي باندي اندامونه وچول مکروه دي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

صحيح قول دادی چې دغه عمل مکروه نه دی خوښه خبره داده چې دومره ډېر دسمال استعمال نه کړي چې داندامونو لوندوالی ټول ختم سي . [2]

---

[1] في المبسوط للسرخسي : (ثم يمسح برأسه وأذنيه مرة واحدة) وتمام السنة في أن يستوعب جميع الرأس بالمسح كما رواه عبد الله بن زيد أن النبي صلى الله عليه وسلم «مسح رأسه بيديه كلتيهما أقبل بهما وأدبر . ( ج ١ ص ٧٧ كتاب الصلاة .)

في ردالمحتار : وتكلموا في كيفية المسح والأظهر أن يضع كفيه وأصابعه على مقدم رأسه ويمدهما إلى القفا على وجه يستوعب جميع الرأس ثم يمسح أذنيه بأصبعيه . ( ج ١ ص ٨٩ كتاب الطهارة مطلب في تصريف قولهم معزيا ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٥٧ كتاب الطهارة فصل في سنن الوضوء ، وتبيين الحقائق ج ١ ص ٤٠ كتاب الطهارة )

[2] في مراقي الفلاح : وفي الخانية لا بأس للمتوضيء والمغتسل أن يتمسح بالمنديل روي عن رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه كان يفعل ذلك وهو الصحيح إلا أنه ينبغي أن لا يبالغ ولا يستقصي فيبقى أثر الوضوء على الأعضاء آه ملخصا ووردت عدة أحاديث تدل على أنه فعله عليه الصلاة والسلام وهذا كله إذا لم يكن حاجة إلى التنشيف فإن كانت فالظاهر أنه لا يختلف في جوازه من غير كراهة بل في استحبابه أو وجوبه بحسب تلك الحاجة العارضة المندفعة به. ( ص ٦٣ كتاب الطهارة اخر فصل

من آداب الوضوء اربعة عشر شيأ ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٩٧ مطلب في التمسح بمنديل ، والتاتارخانية ج ١ ص ٢٢٩ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ١٣٢ )

وفي المبسوط للسرخسي : قال (ولا بأس بالتمسح بالمنديل بعد الوضوء، والغسل) لحديث قيس بن سعد رضي الله تعالى عنه قال «أتانا رسول الله صلى الله عليه وسلم في يوم شديد الحر فوضعنا له ماء فاغتسل، والتحف بملحفة ورسية حتى أثر الورس في عكن رسول الله صلى الله عليه وسلم » ، ولأنه لا بأس بأن يلبس ثيابه فإن من اغتسل في ليلة باردة لا يأمره أحد بالمكث عريانا حتى يجف فلعله يموت قبله، ولا فرق بين التمسح بثيابه، أو بمنديل . ( ج ١ ص ١٩٣ كتاب الصلاة باب الوضوء والغسل )

# الفصل الخامس في النواقض

## ( پنځم فصل داوداسه دماتونکوشیانوپه بیان کې دی )

### ۷۴ - دموټرپه سیټ کې په ناسته په خوب سره داوداسه ماتېدل

**الإستفتاء:** که یوڅوک په موټرکې پرسیټ یاچوکۍ باندي په ناسته سره بیده سي اودس یې ماتیږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که ددغه شخص دبدن لاندي حصه پرسیټ باندي لګېدلې وي نودمذهب ظاهرالروایة دادی چي اودس یې نه ماتیږي اوکه یې دبدن لاندي حصه دسیټ څخه پورته وي نوبیایې اودس ماتیږي.

خوصاحب دفیض الباري فرمایي: چي په اوسنۍ زمانه کي احتیاط دادی چي ترهرقسم خوب وروسته اودس وکړل سي. [1]

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : (و) ينقضه حكما (نوم يزيل مسكته) أي قوته الماسكة بحيث تزول مقعدته من الأرض، وهو النوم على أحد جنبيه أو وركيه أو قفاه أو وجهه (وإلا) يزل مسكته (لا) ينقض وإن تعمده في الصلاة أو غيرها على المختار كالنوم قاعدا ولو مستندا إلى ما لو أزيل لسقط على المذهب.

وفي ردالمحتار : (قوله: على المذهب) أي على ظاهر المذهب عن أبي حنيفة وبه أخذ عامة المشايخ، وهو الأصح كما في البدائع واختار الطحاوي والقدوري وصاحب الهداية النقض، ومشى عليه بعض أصحاب المتون، وهذا إذا لم تكن مقعدته زائلة عن الأرض وإلا نقض اتفاقا كما في البحر وغيره . ( ج ۱ ص ۱۰۴ كتاب الطهارة مطلب نوم من به انفلات ريح غيرناقض ، كذا في البحر ج ۱

## ۷۵ - دسجدې پر طريقه خوب اودس ماتوي اوكه نه

**الإستفتاء:** كه يوڅوك دسجدې پر طريقه باندې بيده سي اودس يې ماتيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه په لمانځه كې يوڅوك پرسجده باندې بيده سي، اودس يې نه ماتيږي اوپه دغه حكم كي فقهاؤ رحمهم الله تعالى دنارينه اوښځې اودسجدې دسنت طريقې اودغير سنت طريقې دفرق ذكر نه دى كړى.

اوكه دلمانځه څخه دباندې يوڅوك دسجدې پر هيئت باندې بيده سي نوپه دغه صورت كي كه داسي وي چي دسجدې دسنت طريقې موافق نس يې دورنو څخه پورته وي نوپه دغــه خوب سره اودس نه ماتيږي اوكه يې نس پر ورنو باندې مبنتى وو نوبيا يې اودس ماتيږي. [1]

---

ص ۷۴ كتاب الطهارة ، والهندية ج ۱ ص ۱۲ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

وفي فيض الباري : وظاهر الرواية فيه أن النوم عند تمكن المقعد لايفسد ويفسد عند التجافي ... أما الفتوى فانها تبنى على المصالح واختلاف الزمان والمكان فلا يوسع فيها في هذه الأيام فإنها أيام يأكل فيه الناس كثيرا فيحدثون مع تمكن المقعد. ( ج ۱ ص ۴۰۸ باب الوضوء من النوم ومن لم ير من النعسة والنعستين او الخفقة وضوءا )

[1] في الهندية : ولا ينقض نوم القائم والقاعد ولو في السرج أو المحمل ولا الراكع ولا الساجد مطلقا إن كان في الصلاة وإن كان خارجها فكذلك إلا في السجود فإنه يشترط أن يكون على الهيئة المسنونة له بأن يكون رافعا بطنه عن فخذيه مجافيا عضديه عن جنبيه وإن سجد على غير هذه الهيئة انتقض وضوءه . ( ج ۱ ص ۱۲ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض

## ۷۶ - که ددانې څخه په کنېکښلو يووچ شی راووزي

**الإستفتاء:** که يوڅوک دبدن يوځای کنېکاږي لکه دانه اودهغه څخه يو شی راووزي نواودس بې ماتيږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که په دغه کنېکنبلوسره دبدن څخه وينه يا اوبه وبهيږي نواودس په ماتيږي.

اوکه داسي نه وي بلکه يوازي يووچ شی راووزي لکه غوښه يابل سپين رقم شی نو بيااودس نه په ماتيږي. [1]

## ۷۷ - که په کښېکښلوسره دزخم ياداني څخه اوبه ياويني راووزي

**الإستفتاء:** که يوڅوک زخم، يادانه کنېکاږي اوپه زوروينه يااوبه ورڅخه راوباسي که ده کنېکنبلې نه وای نووينه يابل شی نه راوتی، ايا په دغه باندي اودس ماتيږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

صحيح قول دادی چي په دغه وينه او اوبوسره اودس ماتيږي، که څه هم په

---

الوضوء ، كذا في تبيين الحقائق ج ١ ص ٥٢ كتاب الطهارة ، وردالمحتار ج ١ ص ١٠٥ كتاب الطهارة مطلب نوم الانبياء غير ناقض )

[1] في مراقي الفلاح : و منها سقوط لحم من غير سيلان دم لطهارته وانفصال الطاهر لا يوجب الطهارة "كالعرق المدني الذي يقال له رشته" بالفارسية . ( ص ٧٤ كتاب الطهارة فصل عشرة اشياء لاتنقض الوضوء ، كذا في الهندية ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

زور رايستل سوي وي. [۱]

## ۷۸ - دزخم څخه لږوينه يااوبه راووزي وچ يې کړي بيا نوري راووزي

**الإستفتاء:** که ديو چا دزخم څخه يو وار لږ ژړي اوبه ياوينه راسي اودى يې په پنبه يابل شي باندي وچي کړي، وروسته بيانوره وينه ياژړي اوبه راسي، بيايې وچي کړي اوس نوکه دغه ځوواره مکرره سي، اودس يې ماتيږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا:**

که داسي صورت وي چي دغه شخص که دغه وينه يابل شى په دغه پنبه يابل شي باندي نه واى وچ کړى نوخپله به بهېدلي واى نوپه دغه صورت کي اودس ماتيږي.

اوکه داسي وي چي که ده نه واى وچي کړي نونه بهېدل په دغه صورت کي بيااودس نه ماتوي.

اوهمدارنګه تفصيل دهغه صورت دى چي پردغه زخم باندي خاوره ياايرې واچوي، هغه بياوينه ښکاره کړي، بيانوره خاوره پرواچوي. [۲]

---

(۱) في الهندية : خرج دم من القرحة بالعصر ولولاه ما خرج نقض في المختار . ( ج ۱ ص ۱۱ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۱۷ كتاب الطهارة الفصل الثالث في نواقض الوضوء ، وردالمحتار ج ۱ ص ۱۰۱ كتاب الطهارة مطلب في نواقض الوضوء )

(۲) في الهندية : إذا خرج من الجرح دم قليل فمسحه ثم خرج أيضا ومسحه فإن كان الدم بحال لو ترك ما قد مسح منه سال انتقض وضوءه وإن كان لا يسيل لا ينتقض وضوءه وكذلك إن ألقى عليه رمادا أو ترابا ثم ظهر ثانيا وتربه ثم وثم فهو كذلك يجمع كله . ( ج ۱ ص ۱۱ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء ، كذا في البحر ج ۱ ص ٦٤ كتاب الطهارة )

## ٧٩ - وچ زخم ته داوداسه يانوري اوبه ورننوزي ، بيابيرته راووزي

**الإستفتاء:** كه يوزخم وچ وي، وينه يااوبه نه لري اوس كه سړی اودس، ياغسل وكړي اودغه زخم ته اوبه ورداخلي سي نو اوس كه دغه اوبه بيرته خپله راووزي، يا په كنبېكنبلوسره راووزي په دغه سره اودس ماتيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دغه اوبه په دغه زخم كي دومره وخت پاته سي چي دوی پخپله نوونه اوژړي اوبه وګرزي نوپه راوتلوسره يې اودس ماتيږي.

اوكه تردغه وخته پوري پاته نه سي بلكه تردغه دمخه راووزي، بيااودس نه په ماتيږي.[1]

## ٨٠ - كه خولهويني وكړي اودس په ماتيږي كه نه

**الإستفتاء:** كه ديوچا خوله ويني وكړي اودس په ماتيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دغه ويني پر ناړو باندي غالبه وي، يادناړو سره برابري وي نو اودس په

---

[1] في الهندية : ولو دخل الماء أذن رجل في الاغتسال ومكث ثم خرج من أنفه لا وضوء عليه. كذا في المحيط وفي النصاب وهو الأصح كذا في التتارخانية إلا إذا صار قيحا فحينئذ ينقض . ( ج ١ ص ١٠ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

وفي البزازية على هامش الهندية : دخل الماء جرحه ولا دم ولاصديد فيه ثم خرج منه لاينقض. ( ج ۴ ص ١٢ كتاب الطهارة نوازل ، كذا في التاتارخانية ج ١ ص ٢۴٣ كتاب الطهارة الفصل الثاني في بيان مايوجب الوضوء المسئلة (١٩٨) والبحر ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة )

ماتيږي ، اوکه ناړي پروينو غالبه وي، نوبيا اودس نه په ماتيږي. [(١)]

## ٨١-ويني څه وخت پرناړوغالبه، مغلوبه اوبرابري بلل کيږي

**الإستفتاء:** ويني څه وخت پرناړو باندي غالبه ( ډيري )بلل کيږي اوڅه وخت ورسره برابري بلل کيږي اوڅه وخت ناړي پروينو باندي غالبه بلل کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه ناړي ژړ رنګ ولري نوپه دغه وخت کي ناړي غالبه بلل کيږي، اوکه ناړي خام سور رنګ ولري، لکه نارنج، په دغه وخت کي ويني اوناړي سره برابري بلل کيږي .اوکه دغه ناړي تېز سور رنګ ولري بيا ويني غالبه بلل کيږي. [(٢)]

## ٨٢-که دمعدې دجوش په سبب لړلړ ژړي اوبه خولې ته راسي

**الإستفتاء:** که ديوچامعده جوش کوي اولړلړ ژړي اوبه يې خولې ته راځي نوپه دغه اوبو سره اودس ماتيږي اوکه نه ؟

---

(١) في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و ينقضه دم مائع من جوف أو فم غلب على بزاق حكما للغالب أو ساواه احتياطا لا ينقضه المغلوب بالبزاق . ( ج ١ ص ١٠٢ كتاب الطهارة مطلب نواقض الوضوء ، كذا في مراقي الفلاح ص ٧١ كتاب الطهارة فصل ينقض الوضوء اثنا عشر شيأ ، والهندية ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

(٢) في ردالمحتار : وعلامة كون الدم غالبا أو مساويا أن يكون البزاق أحمر وعلامة كونه مغلوبا أن يكون أصفر . ( ج ١ ص ١٠٢ كتاب الطهارة مطلب نواقض الوضوء ، كذا في مراقي الفلاح ص ٧١ كتاب الطهارة فصل ينقض الوضوء اثنا عشر شيأ ، والهندية ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

وفي تقريرات الرافعي : قوله ( اومساويا الخ ) صرح المناوي بكونه نارنجي اللون .

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اوبه قی بلل کیږي نو که په ډکه خوله سره وي اودس ماتوي ،اوکه لږلږ وي نو بیا که داسي وي چي دزړه دیوه وارجوش په سبب څو واره دغه اوبه خولې ته راسي نو که دغه ټولي اوبه سره یوځای سي نو دډکي خولې اندازې ته رسیږي نو دغه اودس ماتوي اوکه دډکي خولې اندازې ته نه ورسیږي نو اودس نه ماتوي.

اوکه داسي وي چي یو واردزړه جوش پیدا سي او په دغه سبب لږ اوبه خولې ته راسي اوبیادغه دزړه جوش ارام سي اودوهم واربیادزړه جوش پیداسي اوددغه دوهم وارپه سبب بیالږ اوبه خولې ته راسي، اوکه ددواړو وارو اوبه سره یوځای سي نو دډکي خولې اندازې ته رسیږي اویوازي دیوه وار اوبه دغه اندازې ته نه رسیږي نو په دغه صورت کي اودس نه ماتیږي[1].

## ۸۳ - دپیچکارۍ په لګولوسره داوداسه دماتېدلوحکم

**الإستفتاء:** دپیچکارۍ په لګولو سره اودس ماتیږي اوکه نه ؟

[1] في مجمع الانهر: (وهو) أي محمد (يعتبر اتحاد السبب لجمع ما قاء قليلا قليلا) أراد بالسبب الغثيان، فإن كان بغثيان واحد يجمع عنده، وإن كان في مجالس؛ لأن الأصل إضافة الفعل إلى سببه، ومعيار الاتحاد في الغثيان أن يقيء ثانيا قبل سكون النفس فإن سكنت ثم قاء فهو غثيان آخر (وأبو يوسف) يعتبر لجمع ما قاء قليلا قليلا (اتحاد المجلس) وإن لم يكن بغثيان واحد؛ لأن اتحاد المجلس جامع للمتفرقات كما أن تلاوات آية سجدة تتحد باتحاد المجلس.وفي شرح الوافي الأصح قول محمد. ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة ،كذا في التاتارخانية ج ۱ ص ۲۴۹ كتاب الطهارة الفصل الثاني في بيان مايوجب الوضوء والهندية ج ۱ ص ۱۱ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پېچکاري که په رګ کې ولګوي نوکه په دغه پېچکارۍ سره وینه راکش کړل سي لکه دغه پېچکارۍ لګولو والاچي عموما اول وارپه دغه پېچکارۍ سره درګ څه وینه راکشوي نواودس ماتيږي ځکه په دغه صورت کې وینه دبدن څخه راووتل که څه هم دده پربدن باندي نه ده توی سوې.

اوکه دغه پېچکاري په غوښه کې ولګوي نوبیادي وګوري که ددغه پېچکارۍ په وجه دبدن څخه وینه وبهیږي نواودس په ماتيږي اوکه نه وبهیږي بیااودس نه په ماتيږي ځکه اودس دمرداري په خارجېدلو سره ماتيږي[1].

## ۸۴- تراوداسه وروسته دوښتانوخریل یانوکان پرېکول

**الإستفتاء:** که یوڅاتر اوداسه کولو وروسته وښتان وخریل، یایې نوکان پرې کړل ایاپردغه انسان باندي داودس راګرځول اویاددغه ځایونوپرېولل، یامسح کول لازم دي اوکه نه ؟

---

(۱) في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وينقضه خروج منه كل خارج نجس بالفتح ويكسر منه أي من المتوضئ الحي معتادا أو لا من السبيلين أو لا إلى ما يطهر بالبناء للمفعول أي يلحقه حكم التطهير ثم المراد بالخروج من السبيلين مجرد الظهور وفي غيرهما عين السيلان ولو بالقوة لما قالوا لو مسح الدم كلما خرج ولو تركه لسال نقض وإلا لا . ( ج ۱ ص ۹۹ كتاب الطهارة مطلب نواقض الوضوء ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۱۰ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء ، والبحر ج ۱ ص ۵۸ كتاب الطهارة )

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : والمراد أن تتجاوزه ولو بالعصر وما شأنه أن يتجاوز لولا المانع كما لو مصت علقة فامتلأت بحيث لو شقت لسال منها الدم . (ص ۶۹ كتاب الطهارة فصل ينقض الوضوء اثناعشر شيأ )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داوداسه راګرځول، ددغه ځایونوپربولل ،ددغه ځایونو مسح کول یوهم پرلازم نه دی[1].

## ۸۵ - معذورچي دذکرپه سرکي پنبه ایښي وي که دغه پنبه لانده سي

**الإستفتاء:** هغه څوک چي بولي یې بهیږي دعذردبندولودپاره که د ذکرپه سرکي پنبه کښیږدي اودغه پنبه لانده سي نو اودس یې ماتیږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که ددغه پنبه یوڅه حصه د ذکر ترسر راوتلې وي ، اویاورسره برابره وي اودغه راوتلې حصه لنده سي، یادغه لانده پنبه راولویږي نو اودس په ماتیږي.

اوکه دغه حصه نه سي لنده ، یاټول پنبه دننه وي، بیا اودس نه په ماتیږي[2].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : ولا يعاد الوضوء بل ولا بل المحل بحلق رأسه ولحيته كما لا يعاد الغسل للمحل ولا الوضوء بحلق شاربه وحاجبه وقلم ظفره .

وفي ردالمحتار : (قوله: ولا بل المحل) عبر بالبل ليشمل المسح والغسل . ( ج ۱ ص ۷۵ كتاب الطهارة مطلب في معنى الاشتقاق وتقسيمه الى ثلاثة اقسام ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۱۳۹ كتاب الطهارة الوضوء من لحم الابل وغسل الميت )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار :(كما) ينقض (لو حشا إحليله بقطنة وابتل الطرف الظاهر) هذا لو القطنة عالية أو محاذية لرأس الإحليل وإن متسفلة عنه لا ينقض وكذا الحكم في الدبر والفرج الداخل (وإن ابتل) الطرف (الداخل لا) ينقض ولو سقطت؛ فإن رطبة انتقض، وإلا لا . ( ج ۱ ص ۱۰۹ ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۱۲۴ كتاب الطهارة ماينقض الوضوء وقاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة باب الوضوء والغسل فصل فيما ينقض الوضوء )

## ٨٦ - كه شكمن سي چي اودس به لرم او كه نه

**الإستفتاء:** كه يو څوک په اوداسه کي شكمن سو چي اودس به لرم او كه نه، دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه مسئله دوه صورتونه لري:

١-اول دادى چي داودس تازه كول يې په يادوي او داودس ماتېدل يې په يادنه وي، په دغه صورت کي ددغه انسان اودس مات نه بلل كيږي.

خودابايد په نظر کي وي چي په دغه صورت کي كه يې داودس ماتول نه وي په ياد خودايې په ياد وي چي داودس ماتولوځاى ته ورغلى، په دې خبره کي شكمن وي چي اودس يې مات كړى او كه نه، دغه صورت داسي دى لكه داودس ماتول چي يې په يادوي، نو په دغه صورت کي ددغه انسان اودس مات بلل كيږي.

او كه په دې خبره کي شكمن سي چي داودس دماتولوځاى ته ورغلى او كه نه نو بيابه فكروكړي كه غالب گمان داسوچي دغه ځاى ته ورغلى دى نو داصورت هم داسي دى لكه دغه ځاى ته چي ورغلى وي يعين اودس يې مات بلل كيږي.

او كه يې غالب گامن داسوچي داودس دماتولوځاى ته نه دى ورغلى نو بيا ددغه شخص اودس مات نه بلل كيږي.

٢- دوهم دادى چي داودس ماتول يې په ياد وي او داودس تازه كول يې په ياد نه وي، په دغه صورت کي ددغه انسان اودس مات بلل كيږي.

خوداهم بايد په پام کي ونيول سي چي په دغه صورت کي كه يې داخبره په يادنه وي چي اودس يې تازه كړى اودايې په ياد وي چي داودس تازه كولو دپاره

كښېنستی يوازي په دې خبره کې شکمن سي چې اودس يې تازه کړی او که بېرته دغسي ولاړسو په دغه صورت کې به دغه انسان فکر وکړي، که يې غالب گمان داسو چې داودس تر تازه کولو دمخه ولاړسوی دی، نو نوی اودس پرلازم دی.

اوکه يې غالب گمان داسي چې داودس تر تازه کولو وروسته ولاړسوی دی، نو بيانوی اودس پرلازم نه دی[1].

## ۸۷ - کوم قی په ډکه خوله بلل کېږي

**الإستفتاء:** کوم قی په ډکه خوله بلل کېږي چې اودس په ماتېږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په ډکه خوله قئ هغه ته ويل کېږي چې که يې دغه شخص په تکليف سره

---

(1) في المحيط البرهاني : ومن شك في الحدث، فهو على وضوئه، لأنه على يقين من الطهارة، وعلى شك من الحدث واليقين لا يزال بالشك بالشك.ومن شك في الوضوء، فهو محدث؛ لأنه على يقين من الحدث، وعلى شك من الوضوء، قال شمس الأئمة الحلواني رحمه الله: لا مدخل للتحري في باب الوضوء إلا في فصل رواه ابن سماعة عن محمد رحمه الله: أنه إذا كان مع الرجل آنية وهو يتذكر أنه جلس للوضوء إلا أنه شك أنه قام قبل أن يتوضأ أو بعد ما توضأ يتحرى ويعمل بغالب رأيه وإن شك أنه جلس للتوضؤ أولا والآنية هناك موضوعة، فهو محدث، ولا يجوز له التحري قال ابن سماعة في «نوادره» : وهو نظير الخلاء، فإنه إذا كان يتذكر أنه دخل الخلاء للتخلي لكنه شك أنه خرج منها قبل أن يتخلى أو بعدما تخلى جعل محدثاً، ولا يجوز له التحري. ولو شك أنه دخل الخلاء أولم يدخل جاز له التحري، والعمل بغالب رأيه وهذه رواية مستحسنة . ( ج ۱ ص ۷۸ كتاب الطهارة الفصل الثاني في بيان مايوجب الوضوء وما لا يوجب ، كذا في التاتارخانية ج ۱ ص ۲۶۸ كتاب الطهارة الفصل الثاني في بيان مايوجب الوضوء المسئلة ( ۳۴۶ / ۳۴۷ / ۳۴۸ )

منع نه كړي نو دغه قئ دخولې څخه راوزي[1].

---

[1] في الهندية : والحد الصحيح في ملء الفم أن لا يمكنه إمساكه إلا بكلفة ومشقة . ( ج ١ ص ١١ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ١٠١ كتاب الطهارة مطلب نواقض الوضوء ، ومجمع الانهر ج ١ ص ٣١ كتاب الطهارة )

# باب الغسل

## الفصل الاول في الفرائض

## ( اول فصل دغسل دفرضونو په بيان كي دی )

### ۸۸ - دغسل فرضونه

**الإستفتاء** :دغسل فرضونه څو دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغسل فرضونه درې دي:

۱- اول خوله پرېولل.

۲- دوهم پزه پرېولل.

۳- دريم دټول بدن پرېولل[۱].

### ۸۹ - په غسل كي دپزي او غوږ سوري ته اوبه داخلول

**الإستفتاء**: په غسل كي دغوږ او پزي سوري ته اوبه داخلول فرض دي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

په غسل كي دغوږ اوپزي سوري ته اوبه داخلول فرض دي.

خوكه دغه سوری بند سوی وي، یاداوبو درسولو دپاره دلاس او اوبو څخه

[۱] في الهندية: وهي ثلاثة المضمضة والاستنشاق وغسل جميع البدن . ( ج ۱ ص ۱۳ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الاول في فرائضه )

ماسوا دبل شي ضرورت پيدا اسي لکه دلرګي استعمال نوبيا دغه سوري ته په دغه قسم تکليف سره داوبو رسول فرض نه دي[۱].

## ۹۰ - په غسل کي دګوتمۍ کښل ،ښورول

**الإستفتاء:** دغسل په وخت کي دګوتمۍ کښل ياښورول فرض دي که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

اصلا دغسل دپاره دا فرض ده چي ترګوتمۍ لاندي حصې ته به اوبه رسوي نو که ګوتمۍ ازاده وي اوبه پخپله لاندي حصې ته رسيږي نونه دګوتمۍ کښل فرض دي اونه هم ښورول.

اوکه ګوتمۍ تنګه وي، اوبه لاندي حصې ته نه رسيږي، بيا دا فرض ده چي يابه ګوتمۍ کاږي، يابه يې داسي ښوروي چي لاندي حصې ته اوبه ورسيږي[۲].

---

[۱] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : لا يجب غسل ما فيه حرج كعين وإن اكتحل بكحل نجس وثقب انضم.

وفي ردالمحتار: (قوله: وثقب انضم) قال في شرح المنية: وإن انضم الثقب بعد نزع القرط وصار بحال إن مر عليه الماء يدخله وإن غفل لا فلا بد من إمراره ولا يتكلف لغير الإمرار من إدخال عود ونحوه فإن الحرج مدفوع . ( ج ۱ ص ۱۱۲ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ، كذا في المحيط البرهاني ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة الفصل الثالث في تعليم الاغتسال ، والهندية ج ۱ ص ۱۳ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الاول في فرائضه )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو كان حاتمه ضيقا نزعه او حركه وجوبا . ( ج ۱ ص۱۱۴ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل )

وفي مجمع الانهر :وتحريك خاتمه الواسع وإن كان ضيقايجب نزعه أوتحريكه . ( ج ۱ ص ۳۰ كتاب الطهارة ، كذا في التاتارخانية ج ۱ ص ۲۰۰ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ۱۷ )

## ۹۱ - ښځه به دغسل په وخت کي دسر کوڅۍ خلاصوي که نه

**الإستفتاء:** ښځه به دغسل په وخت کي دسرکوڅۍ غوړوي (خلاصوي) او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که ببله خلاصولو دوښتانو ببخوته اوبه رسېدلي نو کوڅۍ خلاصول نه غواړي او که نه رسېدلي بيا يې خلاصول لازم دي[1].

## ۹۲ - دغسل په وخت کي دنارينه کوڅۍ خلاصول

**الإستفتاء:** که يو نارينه دسر وښتان کوڅۍ کړي دغه وښتان په غسل کي خلاصول غواړي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پرنارينه باندي په غسل کي دکوڅيو خلاصول دوښتانوببخوته اوبه رسول او هم دوښتانو دمابين پريول لازم دي[2].

---

(1) في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وكفي بل اصل ضفيرتها ... ولولم يبتل اصلها يجب نقضها مطلقا هوالصحيح . ( ج ۱ ص ۱۱۳ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل ، كذا في البحر ج ۱ ص ۹۷ كتاب الطهارة والهداية ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة فصل في الغسل )

(2) في الهندية : ويجب على الرجل إيصال الماء إلى أثناء اللحية كمايجب إلى أصولها وإلى أثناء شعر هو إن كان ضفيرا . ( ج ۱ ص ۱۳ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الأول في فرائض الغسل )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : لا يكفي بل ضفيرته فينقضها وجوبا ولو علويا اوتركيا.

وفي ردالمحتار : قوله ( ولو علويا اوتركيا ) هوالصحيح لعدم الضرورة وللاحتياط . ( ج ۱ ص ۱۱۴ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل )

## ۹۳-دبالغ ناسنته نارینه دغسل طریقه

**الإستفتاء:** که یو بالغ نارینه ناسنته وي نو په غسل کي به څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا و مصلیا:**

که دغه نارینه ته دا ممکنه وي چي دخپل خاص اندم (ذکر) دسر دپوست دننه حصې ته اوبه داخلي کړي نو پرده باندي دا لازمه ده چي دغه ځای ته اوبه ور داخلي کړي.

او که دا نه سي کېدای چي اوبه دغه ځای ته داخلي کړي، لکه په دغه ځای کي صرف دومره سوری وي چي بولي ورڅخه راوزي نو بیا دا مستحب ده چي په یو طریقه اوبه ور داخلي کړي او لازمه نه ده[1].

## ۹۴ - دنارینه ویښتان چي خپله غوټه سي په غسل کي اوبه ور داخلول

**الإستفتاء:** که دیو نارینه وېښتان خپله غوټه کړل سوي وي لکه دړیري، یا دسر دڅونډ ځیني وېښتان دغه غوټه سوي وېښتانو ته په غسل کي اوبه داخلول لازم دي او که نه ؟

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : (لا) يجب (غسل ما فيه حرج كعين) وإن اكتحل بكحل نجس (وثقب انضم و) لا (داخل قلفة) يندب هو الأصح قاله الكمال، وعلله بالحرج فسقط الإشكال. وفي المسعودي إن أمكن فسخ القلفة بلا مشقة يجب وإلا لا.

وفي ردالمحتار : (قوله: وفي المسعودي إلخ) مشى عليه في الإمداد، وبه يحصل التوفيق بين القولين؛ لأنه إذا أمكن فسخها أي بأن أمكن قلبها وظهور الحشفة منها فلا حرج في غسلها فيجب، وإلا بأن لم يكن فيها سوى ثقب يخرج منه البول فلا يجب للحرج . ( ج ۱ ص ۱۱۳ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په ردالمحتار کي فرمايي: چي دغه وېښتانو ته اوبه داخلول نه دي لازم[۱].

## ۹۵ - په غسل کي دږیري وېښتان پرېولل او یایې بېخوته اوبه رسول

**الإستفتاء:** په غسل کي پر نارینه باندي دږیري دوېښتانو پرېولل لازم دي او که دوېښتانو بېخوته داوبو رسول کفایت کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پر نارینه باندي دالازمه ده چي دږیري وېښتان به ټول پرېولي اویوازي دوېښتانو بېخوته داوبو رسول کفایت نه کوي[۲].

## ۹۶ - په غسل کي پوښ سوی ډک سوی په تارتړلی ایښوول سوی غاښ

**الإستفتاء:** که یوڅوک غاښ ډک کړي، یاپوښ ورکړي، یایې په تار وتړي، یاهغه غاښ کښېږدي چي نه لیري کیږي، ددغه شخص غسل صحیح دی او که نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه مسئلې په باره کي دفقهاء کرامو په کتابونو کي یوخاص جزئي عبارت موږ نه دی پیدا کړي، البته داوسنۍ زمانې په څه کتابونو کي لکه احسن

---

[۱] في ردالمحتار : [تنبيه] يؤخذ من مسألة الضفيرة أنه لا يجب غسل عقد الشعر المنعقد بنفسه؛ لأن الاحتراز عنه غير ممكن، ولو من شعر الرجل، ولم أر من نبه عليه من علمائنا تأمل ( ج ۱ ص ۱۱۳ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل )

[۲] في الهندية : ويجب على الرجل إيصال الماء إلى أثناء اللحية كما يجب إلى أصولها وإلى أثناء شعره وإن كان ضفيرا. ( ج ۱ ص ۱۳ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الاول في فرائضه، كذا في البدائع ج ۱ ص ۱۴۲ كتاب الطهارة تفسير الغسل ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۱۲ كتاب الطهارة مطلب في ابحاث الغسل )

الفتاوی جلد ۲ صفحه ۳۲ ، او فتاوی فریدیه جلد ۲ صفحه ۷۴ ، او کفایت المفتي جلد ۲ صفحه ۳۱۳ ، اوفتاوی رحیمیه جلد ۴ صفحه ۴ کي فرمايي: چي په دغه ټولو صورتونو کي غسل صحیح دی.

# الفصل الثاني في السنن

## ( دوهم فصل دغسل دسنتوپه بيان كي دى )

### ٩٧- ترغسل دمخه لاسونه پرېولل اواستنجاءوهل

**الإستفتاء:** ترغسل كولودمخه لاسونه پرېولل او استنجاء وهل څه حكم لري؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه عمل سنت دى كه څه هم پر فرج ( عورت ) باندي مرداري نه وي[1].

### ٩٨- ترغسل دمخه دبدن څخه مرداري پرېولل ، اودس تازه كول

**الإستفتاء:** ترغسل دمخه دبدن څخه دمرداري پرېولل او اودس تازه كول څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه دواړه عملونه سنت دي[2].

---

[1] في الهندية : وهي أن يغسل يديه إلى الرسغ ثلاثا ... وتقديم غسل الفرج في الغسل سنة سواء كان فيه نجاسة أم لا كتقديم الوضوء على غسل باقي البدن سواء كان هناك حدث أو لا . ( ج ١ ص ١١٤ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الثاني في سنن الغسل ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ١١٦ كتاب الطهارة مطلب سنن الغسل ، ومراقي الفلاح ص ٨٣ كتاب الطهارة فصل في سنن الغسل )

[2] في الهندية : وهي أن يغسل يديه إلى الرسغ ثلاثا ثم فرجه ويزيل النجاسة إن كانت على بدنه ثم يتوضأ وضوءه للصلاة . ( ج ١ ص ١١٤ كتاب الطهارة الباب الثاني في الغسل الفصل الثاني في

## ۹۹ -ترغسل دمخه په اوداسه کي پښې پرېولل

**الإستفتاء:**ترغسل دمخه چي اودس تازه کوي په دغه اوداسه کي به پښې پرېولي اوکه به يې ترغسل کولو وروسته پرېولي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که يوځوک په داسي ځای کي غسل کوي چي مستعملي اوبه پکښي دريږي نو ترغسل کولو وروسته به پښې پرېولي.

اوکه په داسي ځای کي غسل کوي چي مستعملي اوبه نه پکښي دريږي نوبيابه ترغسل کولو دمخه د اوداسه سره پښې پرېولي[1].

## ۱۰۰ - دغسل په وخت کي قبلې شريفي ته مخ ګرځول

**الإستفتاء:**دغسل کولو په وخت کي قبلې شريفي ته مخ ګرځول څه حکم لري؟

---

سنن الغسل ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۱۶ كتاب الطهارة مطلب سنن الغسل ، ومراقي الفلاح ص ۸۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الغسل )

[1] في الهداية : وسنته أن يبدأ المغتسل فيغسل يديه وفرجه ويزيل نجاسة إن كانت على بدنه ثم يتوضأ وضوءه للصلاة إلا رجليه ثم يفيض الماء على رأسه وسائر جسده ثلاثا ثم يتنحى عن ذلك المكان فيغسل رجليه هكذا حكت ميمونة رضي الله عنها اغتسال رسول الله صلى الله عليه وسلم وإنما يؤخر غسل رجليه لأنهما في مستنقع الماء المستعمل فلا يفيد الغسل حتى لو كان على لوح لا يؤخر . ( ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة فصل في الغسل ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۱۶ كتاب الطهارة مطلب سنن الغسل ، ومراقي الفلاح ص ۸۳ كتاب الطهارة فصل في سنن الغسل )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که يې دغسل په وخت لنګ نه وي وهلی نودقبلې شريفې خواته مخ ګرځول د ادب اواستحباب مخالف عمل دی ، اوکه يې لنګ وهلی وي بيا پروانه کوي[۱].

## ۱۰۱ - دجنوب دپاره خوب اوخوراک ته اودس کول

**الإستفتاء:** که يوجنب انسان دجماع يادخوب، ياخوراک اراده وکړي نوپر دغه جنب باندي داودس ياغسل کول سته اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پردغه جنب باندي نه اودس لازم دی اونه غسل خوکه دجماع اراده وکړي نوښه خبره داده چي اودس وکړي اوکه دخوراک اراده وکړي بياښه خبره داده چي لاس اوخوله پرېولي[۲].

## ۱۰۲ - ترغسل وروسته په يوشي سره دبدن وچول

**الإستفتاء:** ترغسل کولو وروسته په دسمال، يابل شي باندي بدن وچول څه حکم لري ؟

---

[۱] في مراقي الفلاح : وآداب الاغتسال هي مثل آداب الوضوء وقد بيناها إلا أنه لا يستقبل القبلة حال اغتساله لأنه يكون غالبا مع كشف العورة" فإن كان مستورا فلا بأس به . ( ص ۸۴ كتاب الطهارة فصل في آداب الاغتسال ، كذا في شرح المنية ص ۵۱ سنن الغسل ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۱۵ كتاب الطهارة مطلب سنن الغسل)

[۲] في الهندية : ولا بأس للجنب أن ينام ويعاود أهله قبل أن يتوضأ وإن توضأ فحسن وإن أراد أن يأكل أو يشرب فينبغي أن يتمضمض ويغسل يديه . ( ج ۱ ص ۱۶ كتاب الطهارة باب الغسل قبيل الباب الثالث في المياه ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۱۵۱ كتاب الطهارة بماتثبت به الجنابة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه عمل پروانه لري خو ښه خبره داده چي دومره ډېر دي اندامونه ونه وچوي چي دغسل هيڅ لوند والی پاته نه سي[1].

---

[1] في البحر : والمنقول في معراج الدراية وغيرها أنه لا بأس بالتمسح بالمنديل للمتوضئ والمغتسل إلا أنه ينبغي أن لا يبالغ ويستقصي فيبقى أثر الوضوء على أعضائه ولم أر من صرح باستحبابه إلا صاحب منية المصلي فقال ويستحب أن يمسح بمنديل بعد الغسل . ( ج ١ ص ٩٧ كتاب الطهارة كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٩٧ كتاب الطهارة مطلب في التمسح بمنديل ، والتاتارخانية ج ١ ص ٢٢٩ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء المسئلة ( ١٣٢ )

# الفصل الثالث في الموجبات

## ( دريم فصل دغسل دواجبونكوشيانوپه بيان كي دى )

### ۱۰۳ - دخوبه راكښيني دخاص اندام په سر كي لوندوالى ووينی

**الإستفتاء:** كه يوڅوک دخوب څخه راكښيني او دخپل خاص اندام (ذكر) په سر كي لوندوالى ووينی پردغه شخص باندي غسل فرض دى اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا:**

ددغه مسئلې پوره تفصيل چي په ردالمحتار كي ذكرسوى دى په هغه تفصيل كي دغه مسئله څوارلس ( ۱۴ ) صورتونه لري اوپه دغه څوارلس ( ۱۴ ) صورته كي اوه ( ۷ ) صورتونه داسي دي چي ددغه شخص دخوب ليدل په ياد وي، اوه ( ۷ ) صورتونه بياداسي دي چي دخوب ليدل يې په ياد نه وي:

**هغه اووه ( ۷ ) صورتونه چي خوب يې په يادوي:**

۱- كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى دمني دى، په دغه صورت كي غسل فرض دى.

۲-كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى د مذي دى په دغه صورت كي غسل فرض دى.

۳-كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى د وَدِي دى په دغه صورت كي غسل نه دى فرض.

۴- كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى د وَدِي نه دى، خو په دې خبره كي شكمن سو چي دغه مذي دي اوكه مني دي په دغه صورت كي غسل فرض دى.

۵-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی د مذي نه دی خو په دې خبره کي شکمن سو چي دغه ودي دي اوکه مني دي، په دغه صورت کي غسل فرض دی.

۶-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی د مني نه دی، خو په دې خبره کي شکمن سوچي دغه مذي دي اوکه ودي دي، په دغه صورت کي غسل فرض دی.

۷- که دغه شخص په دغه ټولوکي شکمن سو چي مذي دي که ودي دي که مني دي، یعني په دغه درو شیانوکي پريوه لاهم ددغه شخص یقین نه وو، په دغه صورت کي غسل فرض دی.

**هغه اووه (۷) صورتونه چي خوب يې په يادنه وي:**

۱-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی دمني دی په دغه صورت کي غسل فرض دی.

۲-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی د مذي دی، په دغه صورت کي غسل فرض نه دی.

۳-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی د ودي دی، په دغه صورت کي غسل فرض نه دی.

۴-که ددغه شخص یقین سو چي دغه لوندوالی د ودي نه دی خو په دې خبره کي شکمن سو چي دغه مذي دي اوکه مني دي، په دغه صورت کي دامام صاحب او امام محمد صاحب پرقول باندي غسل فرض دی.

۵- كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى د مذي نه دى، خو په دې خبره كي شكمن سو چي دغه ودي دي اوكه مني دي، په دغه صورت كي دامام صاحب او امام محمد صاحب پرقول باندي غسل فرض دى.

۶- كه ددغه شخص يقين سو چي دغه لوندوالى د مني نه دى، خو په دې خبره كي شكمن سو چي دغه مذي دي اوكه ودي دي، په دغه صورت كي غسل فرض نه دى.

۷-كه دغه شخص په دغه ټولو كي شكمن سو چي مذي دي كه ودي دي كه مني دي يعني په دغه درو شيانو كي پريوه لاهم دده يقين نه وي، په دغه صورت كي دامام صاحب او امام محمد صاحب پرقول پردغه شخص باندي غسل فرض دى[1].

## ۱۰۴- دمني، ودي، مذي فرق

**الإستفتاء:** مني او ودي او مذي څه شي ته ويل كيږي؟

---

[1] في ردالمحتار: اعلم أن هذه المسألة على أربعة عشر وجها؛ لأنه إما أن يعلم أنه مني أو مذي أو ودي أو شك في الأولين أو في الطرفين أو في الأخيرين أو في الثلاثة، وعلى كل إما أن يتذكر احتلاما أو لا فيجب الغسل اتفاقا في سبع صور منها وهي ما إذا علم أنه مذي، أو شك في الأولين أو في الطرفين أو في الأخيرين أو في الثلاثة مع تذكر الاحتلام فيها، أو علم أنه مني مطلقا، ولا يجب اتفاقا فيما إذا علم أنه ودي مطلقا، وفيما إذا علم أنه مذي أو شك في الأخيرين مع عدم تذكر الاحتلام؛ ويجب عندهما فيما إذا شك في الأولين أوفي الطرفين أو في الثلاثة احتياطا ولا يجب عند أبي يوسف للشك في وجود الموجب، واعلم أن صاحب البحر ذكر اثنتي عشرة صورة وزدت الشك في الثلاثة تذكر أولا أخذا من عبارته . ( ج ١ ص ١٢٠ كتاب الطهارة مطلب في تحرير الصاع والمد والرطل )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دنارينه مني هغه اوبوته ويل کيږي چي سختي وي، سپين رنګ ولري اودوتلو په وجه يې خاص اندام (ذکر) ماتيږي.

اودښځي مني هغه اوبوته ويل کيږي چي نرمي وي او ژړ رنګ ولري.

او مذي هغه اوبوته ويل کيږي چي سپين غوندي رنګ ولري اودشهوت په وخت کي را وزي، په ځيني کتابوکي دښځي دغه اوبه دقذي په نامه ياديږي.

او ودي هغه اوبوته ويل کيږي چي تربولوسختي وي او تربولووروسته راوزي[1].

## ١٠٥-بېله شهوته دمني دراوتلوحکم

**الإستفتاء:** که له يو چا څخه بېله شهوته مني راووزي لکه ديو دروند شي دپورته کولو په وجه باندي په دغه سره غسل لازميږي اوکه نه ؟

---

[1] في الهندية : ومني الرجل خاثر أبيض رائحته كرائحة الطلع فيه لزوجة ينكسر الذكر عند خروجه، ومني المرأة رقيق أصفر والمذي رقيق يضرب إلى البياض يبدو خروجه عند الملاعبة مع أهله بالشهوة ويقابله من المرأة القذي، والودي بول غليظ وقيل ماء يخرج بعد الاغتسال من الجماع وبعد البول . ( ج ١ ص ١٠ كتاب الطهارة الباب الاول في الوضوء الفصل الخامس في نواقض الوضوء )

وفي الهداية : والودي الغليظ من البول يتعقب الرقيق منه خروجا فيكون معتبرا به. والمني خاثر أبيض ينكسر منه الذكر والمذي رقيق يضرب إلى البياض يخرج عند ملاعبة الرجل أهله . ( ج ١ ص ٣٩ كتاب الطهارة فصل في الغسل ، كذا في المبسوط للامام الشيباني ج ١ ص ٣٧ كتاب الصلاة باب الوضوء والغسل من الجنابة )

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

په دغه سره غسل نه لازميږي[1].

## ۱۰۶ - دجنابت ترغسل وروسته چي بيله شهوته يوڅه مني راووزي

**الإستفتاء:** که يوڅوک دجنابت غسل وکړي اوترغسل وروسته بيابيله شهوت څخه يوڅه مني ورڅخه راووزي نوپردغه شخص باندي دغسل راګرځول لازم دي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

که دغه شخص ترجنابت وروسته اوترغسل دمخه بولي کړي وي يابيده سوی وي ياييې څه ډېرتګ کړی وي چي ځينو فقهاؤ رحمهم الله تعالی دغه تګ دڅلوېښتو ګامو اندازه بللی دی نوپه دغه درې سره صورتونو کي پردغه شخص باندي ددوهم وارغسل کول لازم نه دي.

اوکه ترجنابت وروسته اوترغسل دمخه په دغه درو کارونو کي يولاهم نه وي ترسره سوی، نوبياپردغه شخص باندي دوهم وار غسل کول لازم دي.

خوداخبره بايدپه نظرکي ونيول سي چي دغه دوهم وار غسل په دې وجه نه دی چي هغه زوړجنابت بيرته راګرځي، بلکه دغه وروسته مني چي خارج سول ددغه په وجه پرصحيح قول باندي نوی جنابت ثابتيږي؛ځکه دغه مني له خپله ځايه څخه په شهوت سره راجلا سوي دي.

---

(۱) في مراقي الفلاح : فإذا لم توجد الشهوة لا غسل كما إذا حمل ثقيلا أو ضرب على صلبه فنزل منيه بلا شهوة . ( ص ۷۷ كتاب الطهارة فصل مايوجب الاغتسال ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۱۸ كتاب الطهارة مطلب سنن الغسل ، والتاتارخانية ج ۱ ص ۲۸۲ كتاب الطهارة الفصل الثالث في الغسل المسئلة ( ۴۰۳ )

نوکه تردغه دوهم وار غسل کولو دمخه په هغه اول غسل باندي لمونځ سوی وي دهغه راګرځول نسته[1].

## ۱۰۷-دښځي اوخاوند پربستره مني پيداسي اوهريوانکاروکړي

**الإستفتاء:** که دزوجينو(ښځي او خاوند ) پر فراش (بستره ) باندي مني پيدا سي، او هريو وايي: چي زما نه دي، دهغه بل دي نو اوس غسل پرچالازم دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د اصح او احتياطي قول پربناء پردواړو باندي غسل کول واجب دي[2].

## ۱۰۸- دخصي انسان په جماع سره دغسل لازمېدل

**الإستفتاء:** دخصي انسان په جماع سره غسل لازميږي اوکه نه ؟

---

[1] في الهندية : لو اغتسل من الجنابة قبل أن يبول أو ينام وصلى ثم خرج بقية المني فعليه أن يغتسل عندهما خلافا لأبي يوسف رحمه الله تعالى ولكن لا يعيد تلك الصلاة في قولهم جميعا. كذا في الذخيرة ولو خرج بعد ما بال أو نام أو مشى لا يجب عليه الغسل اتفاقا . ( ج ۱ ص ۱۴ كتاب الطهارة باب الغسل الفصل الثالث في المعاني الموجبة للغسل )

وفي ردالمحتار : وأطلق المشي كثير وقيده في المجتبى بالكثير وهو أوجه لأن الخطوة والخطوتين لا يكون منهما ذلك حلية وبحر قال المقدسي وفي خاطري أنه عين له أربعون خطوة فلينظر . ( ج ۱ ص ۱۱۸ كتاب الطهارة مطلب في تحرير الصاع والمد والرطل )

[2] في الهندية: إذا وجد في الفراش مني ويقول الزوج من المرأة وتقول المرأة من الزوج الأصح أنه يجب الغسل عليهمااحتياطا . ( ج ۱ص ۱۵ كتاب الطهارة باب الغسل الفصل الثالث في المعاني الموجبة للغسل ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۲۱ كتاب الطهارة مطلب في تحريرالصاع والمد والرطل ، وقاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۴۵ كتاب الطهارة باب الوضوء والغسل فصل في مايوجب الغسل )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

هو په دغه جماع سره پر فاعل او مفعول دواړو باندي غسل لازميږي[١].

## ١٠٩- که د ښځي سره نابالغ لس کلن هلک جماع وکړي

**الإستفتاء:** که يو نابالغ هلک چي لس کاله يا تر دغه ډېر عمر ولري د بالغي ښځي سره جماع وکړي په دغه جماع سره پر دغه ښځه او هلک باندي غسل واجبيږي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پر ښځه باندي غسل واجب دی او پر هلک باندي واجب نه دی خو د غسل کولو امر دي ورته وکړل سي د دې د پاره چي عادت ونيسي[٢].

---

[١] في الهندية : وجماع الخصي يوجب الغسل على الفاعل والمفعول . ( ج ١ ص ١٥ كتاب الطهارة باب الغسل الفصل الثالث في المعاني الموجبة للغسل ، كذا في قاضيخان على هامش الهندية ج ١ ص ٤٣ كتاب الطهار باب الوضوء والغسل فصل في مايوجب الغسل )

[٢] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : ولو أحدهما مكلفا فعليه فقط دون المراهق، لكن يمنع من الصلاة حتى يغتسل، ويؤمر به ابن عشر تأديبا . ( ج ١ ص ١١٩ كتاب الطهارة مطلب في تحرير الصاع والمد والرطل ، كذا في قاضيخان على هامش الهندية ج ١ ص ٤٣ كتاب الطهارة باب الوضوء والغسل فصل في مايوجب الغسل )

# باب المياه

## ۱۱۰ - په لړاوبوکي د هغه حیوان مرګ چې ولادت ،ژوند يې په اوبوکي وي

**الإستفتاء:** که هغه حیوان په لړ (چې لس په لس کي نه وي) ولاړو اوبوکي مړسي چې ولادت اوژوند يې دواړه په اوبوکي وي لکه ماهی، چونګابښ اويادغه حيوان داوبوڅخه دباندي مړسوی وي، وروسته دغه اوبوته ورولويږي په دغه سره اوبه مرداريږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

که دغه قسم حیوان په دغه لړ ولاړو اوبوکي مړسي اوکه ددباندي څخه مړ دغه اوبوته ورولويږي، په دواړه صورته کي اوبه نه په مرداريږي، پاکي دي[1].

---

[1] في الهداية : وموت ما يعيش في الماء فيه لا يفسده كالسمك والضفدع والسرطان ... وما يعيش في الماء ما يكون توالده ومثواه في الماء ومائي المعاش دون مائي المولد مفسد . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة باب المياه مطلب في مسئلة الوضوء من الفساقي ، والهندية ج ۱ ص ۲۴ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الثاني فيما لا يجوز به التوضؤ )

وفي الهندية : ولا فرق في الصحيح بين أن يموت في الماء أو خارج الماء ثم يلقى فيه . ( ج ۱ ص ۲۴ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الثاني فيما لا يجوز به التوضؤ ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة باب المياه مطلب في مسئلة الوضوء من الفساقي ، والبحر ج ۱ ص ۱۶۲ كتاب الطهارة )

## ۱۱۱- په لږ اوبو کي د حیوان مرګ چي ولادت یې په اوبو کي نه وي

**الإستفتاء:** که په لږ (چي لس په لس کي نه وي) ولاړو اوبو کي هغه حیوان مړسي، یا مړ دغه اوبو ته ورولویږي چي ژوند او ولادت یې په اوبو کي نه وي ، دغه اوبه پاکي دي او که مرداري دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه حیوان دومره کوچنی وي چي بهېدونکې وینه نه ولري لکه مچ اوغوماشه مثلانو په دغه حیوان سره په دغه دواړو صورتو کي یعني که په دغه اوبو کي مړسي او که مړ دغه اوبو ته ورولویږي دغه اوبه نه مرداریږي.

او که دغه حیوان بهېدونکې وینه ولري نو بیا په دغه دواړو صورتو یعني که په دغه اوبو کي مړسي او مړ دغه اوبو ته ورولویږي ، دغه اوبه مرداریږي[1].

---

[1] في الهداية : وموت ما ليس له نفس سائلة في الماء لا ينجسه كالبق والذباب والزنابير والعقرب ونحوه . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۳۵ كتاب الطهارة باب المياه مطلب في مسئلة الوضوء من الفساقي ، والهندية ج ۱ ص ۲۴ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الثاني فيما لا يجوز به التوضؤ .)

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وينجس) الماء القليل (بموت مائي معاش بري مولد) في الأصح (كبط وإوز) . ( ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة قبيل مطلب حكم سائر المائعات كالماء في الأصح ، كذا في درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۲۱ كتاب الطهارة احكام المياه ، والهداية ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به ).= راتلونکی مخ

## ۱۱۲ - کربوړی چي اوبو ته ورولویږي

**الإستفتاء:** کربوړی چي اوبوته ورولویږي دغه اوبه په مرداریږي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه کربوړی کوچنی وي، یعني بهېدونکې وینه ونه لري نواوبه نه په مرداریږي، اوکه غټ وي یعني بهېدونکې وینه ولري نوبیا اوبه په مرداریږي [1].

## ۱۱۳ - که غټ وچ تالاب کي مرداري وي اودباران په اوبو ډک سي

**الإستفتاء:** که په یوځای کي یوغټ ډم اوتالاب وي، دشااوخوا خلک دلته دقضاء حاجت دپاره راځي اوهرکله چي باران وسي نودغه ځای دباران په اوبو ډک سي ، ایادغه اوبه پاکي دي، اودس اوغسل په روادی او که نه ؟

---

وفي البحر: واعلم أنه لا فرق بين أن تموت الفأرة في البئر أو خارجها وتلقى فيها وكذا سائر الحيوانات . ( ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۵۵ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل (۳) )

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وضفدع إلا بريا له دم سائل وهو ما لا سترة له بين أصابعه فيفسد في الأصح كحية برية، إن لها دم وإلا لا .

وفي ردالمحتار : (قوله: كحية برية) أما المائية فلاتفسدمطلقا كما علم مما مر وكالحية البرية الوزغة لو كبيرة لها دم سائل منية (قوله: وإلا لا) أي وإن لم يكن للضفدع البرية والحية البرية دم سائل فلايفسد. ( ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة باب المياه مطلب حكم سائر المائعات كالماء في الاصح ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۲۳۱ كتاب الطهارة فصل في بيان مقدار مايصيربه المحل نجسا الضفدع يموت في العصير )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه ځای ټول مرداري نیولی وي، بیااوبه ورته راسي نودغه اوبه مرداري دي.

اوکه ددغه ځای یوڅه حصه مرداري نیولې وي اویوڅه حصه یې پاکه وي، نوکه داسي وي چي دغه اوبه اول وارهغه ځای ته راسي چي مردار وي اووروسته بیاهغه پاکي حصې ته ورسیږي، نوپه دغه صورت کي هم دغه اوبه مرداري دي.

اوکه داسي وي چي دغه اوبه اول وارهغه ځای ته راسي چي هغه پاک وي نواوس که مخکي تردې چي هغه ناپاکي حصې ته ورسیږي، دومره ډېري نه سي چي لس په لس کي وبلل سي نوپه دغه صورت کي هم دغه اوبه مرداري دي .

اوکه داسي وي چي دمخه تردې چي هغه مرداري حصې ته ورسیږي اول وار پردغه پاکه حصه باندي دغه اوبه ډېري یعني لس په لس کي سي اوتردغه وروسته بیاهغه مرداري حصې ته ورسیږي نوپه دغه صورت کي بیادغه اوبه پاکي دي [1].

---

[1] في فتح القدير : وفي الفتاوى: غدير كبير لا يكون فيه الماء في الصيف وتروث فيه الدواب والناس ثم يمتلئ في الشتاء ويرفع منه الجمد إن كان الماء الذي يدخله يدخل على مكان نجس فالماء والجمد نجس وإن كثر بعد ذلك وإن كان دخل في مكان طاهر واستقر فيه حتى صار عشرا في عشر ثم انتهى إلى النجاسة فالماء والجمد طاهران آه وهذا بناء على ما ذكروا من أن الماء النجس إذا دخل على ماء الحوض الكبير لا ينجسه وإن كان الماء النجس غالبا على الحوض لأن كل ما يتصل بالحوض الكبير يصير منه فيحكم بطهارته . ( ج ١ ص ٧١ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ١٤٠ كتاب الطهارة مطلب لودخل الماء من اعلى الحوض وخرج من اسفله فليس بجار ، والبحر ج ١ ص ١٤١ كتاب الطهارة )

## ۱۱۴ - که کوچنی په اوبو کي لاس دننه کړي

**الإستفتاء:** که کوچنی په اوبوکي لاس دننه کړي نوایاپه دغه اوبوسره اودس کول روادي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دایقیني معلومه وي چي ددغه کوچني لاس مردار وو نودغه اوبه مرداري دي اودس نه دی په روا .

اوکه دایقیني معلومه وي چي لاس یې پاک وو نوبیاپه دغه اوبوسره اودس روادی.

اوکه نه دامعلومه وي چي لاس یې پاک وو اونه دامعلومه وي چي لاس یې ناپاک وو ، په دغه حالت کي که نوري اوبه وې نو مستحب دادی چي په دغه نورو اوبو باندي اودس تازه کړي ،خو که په دغه اوبوباندي اودس تازه کړي هم روادی[1].

---

[1] في الهندية : إذا أدخل الصبي يده في كوز ماء أو رجله فإن علم أن يده طاهرة بيقين يجوز التوضؤ به وإن كان لا يعلم أنها طاهرة أو نجسة فالمستحب أن يتوضأ بغيره ومع هذا لو توضأ أجزأه . ( ج ۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الثاني فيما لايجوز به الوضوء ، كذا في المحيط ج ۱ ص ۱۲۱ كتاب الطهارة الفصل الرابع في المياه التي يجوز التوضوء بها والتي لايجوز التوضوء بها)

و في خلاصة الفتاوى : وان علم يقينا ان يده نجسة لايجوز التوضئ به . (ج ۱ ص ۸ كتاب الطهارة الماء المقيد )

## ١١٥ - كه لس په لس كي خپله اوبه بدبويه سي

**الإستفتاء:** كه په يو ځای كي ډېري يعني هغه اوبه چي لس په لس كي وي ولاړي وي، بدبويه سوي وي، خو دانه وي معلومه چي مرداري ورلوېدلی دی، نو په دغه اوبو سره اودس اوغسل او یاديوشي پرېولل روادي اوكه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه اوبو سره اودس اوغسل اودشيانو پرېولل ټول روادي[1].

## ١١٦ - كه دجنابت دغسل داوبو څاڅكي په لوښي كي ولوېږي

**الإستفتاء:** كه يوجنب انسان غسل كوي، دغسل اوبه يا داوبو څاڅكي په لوښي كي ولوېږي نو ايا ددغه لوښي اوبه په مرداريږي اوكه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

كه ددغه جنب پربدن باندي مني يابل مرداري موجودوي نودغه داوبو څاڅكي مردار دي، هرشي ته چي ورسيږي هغه په مرداريږي.

اوكه ددغه جنب پربدن باندي مني، يابل مرداري موجودنه وي نوبيا په دغه څاڅكو سره په اتفاق سره دلوښي اوبه نه مرداريږي .

اوكه دغسل ډېري اوبه ولوښي ته ورولوېږي نودراجح قول موافق كه دغه دغسل ورلويدلي اوبه دلوښي داوبوسره برابري وي، ياپرډيري وي نودغه دلوښي اوبه مستعملي دي غسل او اودس نه په صحيح كيږي ، خو مرداري نه

[1] في قاضيخان على هامش الهندية : يجوز التوضؤ في الحوض الكبير المنتن إذا لم تعلم نجاسته لأن تغير الرائحة قديكون بطول المكث . ( ج ١ ص ٧ كتاب الطهارة فصل في الماء الراكد ، كذا في الهندية ج ١ ص ١٨ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضؤ ، وخلاصة الفتاوی ج ١ ص ۴ كتاب الطهارة الفصل الاول )

دي، که جامې یابدن ته ورسیږي هغه نه په مرداریږي اوکه دبدن یاجامې یابل شي څخه حقیقي مرداري په پرېولي هغه په پاکیږي .

اوکه دغه دغسل ورلوېدلي اوبه دلوښي تراوبولږ وي نوبیادغه دلوښي اوبه نه مرداري دي اونه مستعملي دي[1].

---

[1] في البدائع : أما غسالة النجاسة الحقيقية وهي ما إذا غسلت النجاسة الحقيقية ثلاث مرات فالمياه الثلاث نجسة؛ لأن النجاسة انتقلت إليها إذ لا يخلو كل ماء عن نجاسة فأوجب تنجيسها وحكم المياه الثلاث في حق المنع من جواز التوضؤ بها، والمنع من جواز الصلاة بالثوب الذي أصابته سواء لا يختلف ( ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة فصل في الطهارة الحقيقة ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۳۸ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب: العرقي الذي يستقطر من دردي الخمر نجس حرام، بخلاف النوشادر ، والبحر ج ۱ ص ۴۰۴ كتاب الطهارة باب الانجاس )

وفي البحر : جنب اغتسل فانتضح من غسله شيء في إنائه لم يفسد عليه الماء أما إذا كان يسيل فيه سيلانا أفسده وكذا حوض الحمام على هذا وعلى قول محمد لا يفسده ما لم يغلب عليه يعني لا يخرجه من الطهورية اه . ( ج ۱ ص ۱۳۰ كتاب الطهارة )

وفي البحر :والماء المستعمل على القول المفتى به من طهارته إذا اختلط بالمطلق فالعبرة للأجزاء فإن كان الماء المطلق أكثر جاز الوضوء بالكل وإن كان مغلوبا لا يجوز، وإن استويا لم يذكر في ظاهر الرواية وفي البدائع قالوا حكمه حكم الماء المغلوب احتياطا. ( ج ۱ ص ۱۲۸ كتاب الطهارة ، كذا في الدر المختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۳۴ كتاب الطهارة مطلب في مسئلة الوضوء من الفساقي).

وفي الهندية : يجوز تطهير النجاسة بالماء وبكل مائع طاهر يمكن إزالتها به ... ومن المائعات الماء المستعمل وهذا قول محمد ورواية عن أبي حنيفة وعليه الفتوى . ( ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، كذا في الدرالمختار على هامش

## ۱۱۷ - په کښت کي په ولاړو اوبو اودس تازه کول

**الإستفتاء:** که يو کښت اوبه کړل سوی وي، اوبه پکښي ولاړي وي په دغه اوبو سره اودس کول روادي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا و مصليا:**

که په دغه کښت کي داسي کُورد اوپوله وي چي لس په لس کي متصلي اوبه پکښي ولاړي وي، نودغه اوبه داسي دي لکه دغټ حوض اوبه چي حکم يې په خپله مسئله نمبر (۱۴۰) کي په تفصيل سره ذکر دی.

او که داسي کورد اوپوله وي چي متصلي اوبه يې تر لس په لس کي کمي وي، نودهغه داسي حکم دی لکه دکوچني حوض چي حکم يې په خپله مسئله نمبر (۱۴۳) کي په تفصيل سره ذکر دی [1].

---

ردالمحتار ج ۱ ص کتاب الطهارة باب الانجاس ، والبحر ج ۱ ص ۲۳۳ شامله کتاب الطهارة باب الانجاس )

[1] في فتح القدير : واتصال القصب بالقصب لا يمنع اتصال الماء ولا يخرجه عن كونه غديرا عظيما فيجوز لهذا التوضي في الأجمة ونحوها . ( ۱ ص ۷۱ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز )

وفي الهندية: ولو توضأ في أجمة القصب أو من أرض فيها زرع متصل بعضه ببعض إن كان عشرا في عشر يجوز واتصال القصب بالقصب لا يمنع اتصال الماء بالماء . ( ج ۱ ص ۱۸ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضؤ )

وفي البحر : واتصال الزرع بالزرع لا يمنع اتصال الماء بالماء . ( ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة )

**۱۱۸-لړ اوبه مرداري سي بیانوري اوبه ورته راسي لس په لس کي سي**

**الإستفتاء:** که لږ ( چي لس په لس کي نه وي ) ولاړو اوبوته یو مرداري ورولویږي نوپه دغه وخت کي خو دغه اوبه شرعا مرداري بلل کیږي، خوکه تردغه وروسته دغه ځای ته نوري پاکي اوبه راسي او دغه اوبه لس په لس کي وګرځي نوایاپه دغه وخت کي دغه اوبه پاکي دي اوکه مرداري دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اوبه شرعا مرداري دي[1].

**۱۱۹ - ډیرواوبوته مرداري ورولویږي اثر یې معلوم نه سي بیا اوبه لږسي**

**الإستفتاء:**که په هغه اوبوکي مرداري ولویږي چي لس په لس کي وي اودمرداري اثرپکښي معلوم نه سي نودغه اوبه خو شرعاپه دغه سره نه مرداریږي لکن که دغه اوبه وروسته تردغه اندازې کمي سي نوبیامرداري بلل کیږي که نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه صورت کي دغه اوبه مرداري نه بلل کیږي[2].

---

[1] في البحر : ثم العبرة لحالة الوقوع، فإن نقص بعده لا ينجس وعلى العكس لا يطهر . ( ج ١ ص ١٤١ كتاب الطهارة ، كذا في فتح القدير ج ١ ص ٧١ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز ، وتبيين الحقائق ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة )

[2] في البحر: ثم العبرة لحالة الوقوع، فإن نقص بعده لاينجس وعلى العكس لايطهر . ( ج ١ ص ١٤١ كتاب الطهارة ، كذا في فتح القدير ج ١ ص ٧١ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز بهالوضوء وما لايجوز ، وتبيين الحقائق ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة )

## ۱۲۰ - که جنب په هغه اوبو کي غوټه سي چي لس په لس کي نه وي

**الإستفتاء:** که جنب انسان په لږ (چي لس په لس کي نه وي )اوبوکي غوټه سي ، يادسلواغې دپاره، يادغسل کولوپه نيت دغه انسان او اوبه څنګه بلل کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که ددغه انسان پربدن باندي حقيقي مرداري موجودوي نواوبه اوددغه انسان بدن دواړه مرداردي.

اوکه ددغه انسان پربدن باندي ظاهري مرداري نه وي نوبيادراجح قول موافق دغه انسان دجنابت څخه پاک دی خوپدې شرط چي خولې اوپزي ته يې اوبه رسېدلي وي، او اوبه مستعملي دي نه پاک شی په مرداريږي اونه اودس اوغسل په صحيح کيږي [1].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : اختلف في محدث انغمس في بئر لدلو أو تبرد مستنجيا بالماء ولا نجس عليه ولم ينو ولم يتدلك والأصح أنه طاهر والماء مستعمل .

وفي ردالمحتار : (قوله في بئر) أي دون عشر في عشر " ح " أي وليست جارية (قوله لدلو) أي لاستخراجه، وقيد به؛ لأنه لو كان للاغتسال صار مستعملا اتفاقا ... فعلم أن المذهب المختار في هذه المسألة أن الرجل طاهر والماء طاهر غير طهور . ( ج ۱ ص ۱۴۸ كتاب الطهارة باب المياه مطلب مسئلة البئر جحط ،كذا في البحر ج ۱ ص ۱۷۶ كتاب الطهارة )

وفي خلاصة الفتاوى : اماااذا لم يستنج يتنجس البير ونزح جميع الماء . ( ج ۱ ص ۸ كتاب الطهارة الماء المقيد )

## ۱۲۱ - که په لړاوبو کي دسبزیو دستې پر پولل سي

**الإستفتاء:** دسبزیودوکانداران داوبوپه یوه بوقه کي اوبه واچوي اوبیاپه هغه کي دسبزیو دستې پرېولي ایادغه اوبه پاکي دي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه سبزي نه په مردارو اوبوباندي اوبه سوي وي، نه مردار امبار ورکول سوی وي اونه دمرداري ښکاره اثرباندي وي نوپه دغه سره اوبه نه مرداريږي .

اوکه په مردارو اوبوسره اوبه سوي وي، یامردارامبارورکول سوی وي، یاپردغه سبزیوباندي ښکاره بل مرداري موجودوي نوپه دغه ټولوصورتونوکي که ددغه سبزیوڅخه دپرېکولودمخه دمرداري اثرپه یوطریقه باندي لیري سوی وي لکه لمر ، باد ، یاسایه بیادغه سبزي پاک دي اوبه نه په مرداريږي.

اوکه دپرې کولوپه وخت کي پردغه سبزیوباندي دمرداري اثرموجودوي نوبیادغه سبزي مرداربلل کیږي، که دپرېوللودمخه دغه دبوقې اوبوته ولویږي نودغه اوبه په مرداريږي[1].

---

[1] في الهندية : (ومنها) الجفاف وزوال الأثر الأرض تطهر باليبس وذهاب الأثر للصلاة لا للتيمم. هكذا في الكافي ولا فرق بين الجفاف بالشمس والنار والريح والظل. كذا في البحر الرائق ويشارك الأرض في حكمها كل ما كان ثابتا فيها كالحيطان والأشجار والكلأ والقصب ما دام قائما عليها فإذا انقطع الحشيش والخشب والقصب وأصابته النجاسة لا يطهر إلا بالغسل . ( ج ۱ ص ۴۴ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، كذا في قاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۲۳ كتاب الطهارة فصل في النجاسة التي تصيب الثوب او الخف او البدن او الارض ، والدرالمختارعلى هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۸ كتاب الطهارة باب الانجاس )

# فصل في البئر

## ( دافصل دڅاه دمسئلوپه بيان کي دی )

### ۱۲۲ - که حيوان دڅاه يانورو اوبوڅخه ژوندی راوکښل سي

**الإستفتاء:** که يوحيوان څاه يانورو اوبوته ورولوېږي اوبيرته ژوندی راوخيژي، دغه اوبه پاکي دي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه حيوان خنزير وي نودغه اوبه مرداري دي، اوکه دخنزير څخه ماسوا بل حيوان وي، نوبياکه په يقين سره دامعلومه سي چي ددغه حيوان پربدن باندي مرداري موجود وو نودغه اوبه مرداري دي.

اوکه معلوم مرداري ثابت نه سو نوبيا به کتل کيږي، که ددغه حيوان خولې ته اوبه رسېدلي نه وي نودغه اوبه پاکي دي که څه هم داګمان کيږي چي پردغه حيوان به مرداري وي دغه ګمان اعتبار نه لري.

اوکه ددغه حيوان خولې ته اوبه رسېدلي وي نوبيادغه اوبه ددغه حيوان پسخورده بلل کيږي نوددغه حيوان پسخورده چي په شريعت کي هرحکم ولري ددغه اوبو هغه حکم دی[1].

---

[1] في البحر : وغير الآدمي إن كان نجس العين كالخنزير والكلب على القول بأنه نجس العين نجس البئر مات أو لم يمت أصاب الماء فمه أو لم يصب وعلى القول بأن الكلب ليس بنجس العين لا ينجسه إذا لم يصل فمه إلى الماء، وهو الأصح وقيل دبره منقلب إلى الخارج فلهذا يفسد الماء بخلاف غيره من الحيوانات وأما سائر الحيوانات، فإن علم ببدنه نجاسة تنجس الماء، وإن لم يصل فمه إلى الماء وقيدنا بالعلم؛ لأنهم قالوا في البقر ونحوه يخرج ولا يجب نزح شيء، وإن كان الظاهر

## ۱۲۳ - په څاه کي دحيوان مړ کېدل يامړورولوېدل

**الإستفتاء:** که دڅاه په اوبوکي يوحيوان مړ سي اويا مړ حيوان څاه ته ورولوېږي څه حکم يې دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه مړحيوان په اوبوکي وپړسيږي اوياوشوړيږي، ياداوبوڅخه دباندي پړسېدلی ياشوړېدلی وي، بياوروسته اوبوته ورولوېږي، په دغه وخت کي ددغه څاه څخه دحيوان تر راکښلو وروسته دټولو اوبو راکښل لازم دي.

اوکه دغه حيوان نه شوړېدلی وي اونه پړسېدلی وي په دغه صورت کي که دغه حيوان موږک اويامثل دموږک وي لکه کوچنۍ چوغکه، دغه شيان که په څاه کي مړه سي اويامړه څاه ته ورولوېږي نوددغه څاه څخه دحيوان تر راکښلو وروسته شل(۲۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي اودېرش(۳۰) پوره کول مستحب دي.

اوکه دغه حيوان کوتره اوپشي او يادډوی دواړو په مثل بل شی وي، دغه شيان که په څاه کي مړه سي اويامړه څاه ته ورولوېږي نوددغه څاه څخه دحيوان تر

---

اشتمال بولها على أفخاذها لكن يحتمل طهارتها بأن سقطت عقب دخولها ماء كثيرا هذا مع أن الأصل الطهارة، وإن لم يعلم ولم يصل فمه إلى الماء فإن كان مما يؤكل لحمه فلا يوجب التجنيس أصلا، وإن كان مما لا يؤكل لحمه من السباع والطيور ففيه اختلاف المشايخ والأصح عدم التنجيس وكذلك في الحمار والبغل والصحيح أنه لا يصيرالماء مشكوكا فيه وقيل ينزح ماء البئر كله، وإن وصل لعابه فحكم الماء حكمه . ( ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۱۹ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضؤ ، ومراقي الفلاح ص ۳۲ كتاب الطهارة فصل في مسائل الآبار )

راکښلو وروسته ځلوېښت (۴۰) سلواغې او به راکښل لازم دي او پنځوس (۵۰) یا شپېته (۲۰) پوره کول مستحب دي.

او که دغه حیوان انسان او پسه او یاددوی دوارو په مثل بل شی وي، دغه شیان که په څاه کې مړه سي او یا مړه څاه ته ورولوېږي نو ددغه څاه څخه دحیوان تر راکښلو وروسته دټولو او بو راکښل لازم دي[1].

## ۱۲۴ - که په څاه کې ترموږک غټ او تر کوتري کوچنی حیوان مړ سي

**الإستفتاء:** که په یو څاه کې داسې حیوان مړ سي، یا مړ ورولوېږي چې ترموږک غټ وي او تر کوتري کوچنی وي څه حکم لري؟

---

[1] في الهداية : فإن انتفخ الحيوان فيها أو تفسخ نزح جميع ما فيها صغر الحيوان أو كبر " لانتشار البلة في أجزاء الماء . ( ج ۱ ص ۴۷ كتاب الطهارة باب الماء الذى يجوز به الوضوء وما لايجوز به فصل في البئر ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۵۵ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل (۳)

وفي الهداية : وإن ماتت فيها فأرة أو عصفورة أو صعوة أو سودانية أو سام أبرص نزح منها ما بين عشرين دلوا إلى ثلاثين ... فإن ماتت فيها حمامة أو نحوها كالدجاجة والسنور نزح منها ما بين أربعين دلوا إلى ستين، وفي الجامع الصغير أربعون أو خمسون) وهو الأظهر ... وإن ماتت فيها شاة أو كلب أو آدمي نزح جميع ما فيها من الماء. ( ج ۱ ص ۴۶ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به فصل في البئر ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۲۹ كتاب الطهارة فصل في مسائل الآبار ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل (۳) )

وفي البحر : واعلم أنه لا فرق بين أن تموت الفأرة في البئر أو خارجها وتلقى فيها وكذا سائر الحيوانات . ( ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۵۵ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل (۳) )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه حيوان حکم داسي دی لکه دموږک يعني ددغه څاه څخه ددغه حيوان تر راکښلو وروسته شل (۲۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي، دېرش (۳۰) پوره کول مستحب دي[1].

## ۱۲۵- که په څاه کي ترچرګي غټ تر پسه کوچنی حیوان مړ سي

**الإستفتاء:** که په يوڅاه کي داسي حيوان مړ سي، يا مړ ورولیږي چي ترچرګي غټ اوتر پسه کوچنی وي څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه حيوان حکم داسي دی لکه دچرګي يعني ددغه څاه څخه ددغه حيوان ترراکښلو وروسته څلوېښت (۴۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي، پنځوس (۵۰) یا شپېته (۶۰) پوره کول مستحب دي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وما بين حمامة وفأرة) في الجثة (كفأرة) في الحكم (كما أن ما بين دجاجة وشاة كدجاجة) . ( ج ۱ ص ۱۶۰ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۲۶ كتاب الطهارة فصل في بئر دون عشر في عشر وقع فيها نجس ، والهندية ج ۱ ص ۲۰ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضوء )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وما بين حمامة وفأرة) في الجثة (كفأرة) في الحكم (كما أن ما بين دجاجة وشاة كدجاجة) . ( ج ۱ ص ۱۶۰ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۲۶ كتاب الطهارة فصل في بئر دون عشر في عشر وقع فيها نجس ، والهندية ج ۱ ص ۲۰ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضؤ)

**۱۲۶ - پشي اوموږک چي دواړه څاه ته ورولويږي**

**الإستفتاء:** که يو څاه ته پشي اوموږک دواړه ورولوېدل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه پشي اوموږک دواړه ژوندي راوايستل سول نو ددغه حکم هغه دی چي په مسئله نمبر (۱۲۲) کي په تفصيل سره ذکر دی.

اوکه دواړه په دغه څاه کي مړه سول اويامړه دغه څاه ته ورولوېدل، دغه داسي حکم لري لکه ديوازي پشي يعني ددغه څاه څخه ددغه پشي او موږک تر راکښلو وروسته څلوېښت (۴۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي، پنځوس (۵۰) ياشپېته (۶۰) سلواغې پوره کول مستحب دي.

اوکه يوازي پشي پکښي مړه سوه اوموږک ژوندی راوختی نوددغه څاه څخه ددغه پشي تر راکښلو وروسته څلوېښت (۴۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي، پنځوس (۵۰) ياشپېته (۶۰) سلواغې پوره کول مستحب دي.

اوکه يوازي موږک پکښي مړسو اوپشي ژوندۍ راوخته، ددغه څاه څخه ددغه موږک تر راکښلو وروسته شل (۲۰) سلواغې اوبه راکښل لازم دي ، او دېرش (۳۰) سلواغې پوره کول مستحب دي[1].

---

[1] في النهر الفائق : في السراج قال لو ان هرة اخذت فأرة فوقعتا جميعا في البئر ان خرجتاحيتين لم ينزح شيء او ميتتين نزح اربعون او الفأرة ميتة فقط فعشرون وان مجروحة او بالت نزح جميع الماء انتهى. وهو حسن موافق لما مر عن المجتبى وبقي من الاقسام موت الهرة فقط ولا شك في وجوب الاربعين . ( ج ۱ ص ۸۸ كتاب الطهارة فصل في الآبار ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار وتقريرات الرافعي ج ۱ ص ۱۵۵ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ) = راتلونکی مخ

**۱۲۷ - زخمي موږک چي څاه ته ورولويږي**

**الإستفتاء**: که یو زخمي موږک څاه ته ورولویږي څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

د دغه څاه د ټولو اوبو راکښل لازم دي[1].

**۱۲۸ -ټولي اوبه راکښل لازم وي نیمي یو وخت، پاته بل وخت راوکاږي**

**الإستفتاء**: که شرعا دیو څاه د ټولو اوبو راکښل لازم سي لکه مثلا یو شوږېدلی حیوان دغه څاه ته ورولویږي اوس که خلګ د دغه څاه څخه یو څه اوبه راوکاږي لکه د نیمایي حصې په اندازه اوبه راوکښل سي ، وروسته یې پریږدي نوبل وار چي د دغه څاه څخه بیا اوبه راکاږي نوبیرته به دوهم وار ټولي اوبه راکاږي اوکه به دهغه اول وار څخه پاته اندازه اوبه راکاږي لکه په یاد مثال کي دهغه پاته ټولو اوبو د نیمایي حصې اندازه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

د څاه د اوبو په راکښلو کي پرله پسې والی نه دی لازم نو د دغه څاه څخه چي یو وار یو څه یعني نیمایي حصه اوبه راوکښل سي ،بیا چي هرکله د دغه څاه څخه

---

وفي الجوهرة النيرة : ولو أن هرة أخذت فأرة فوقعتا جميعا في البئر إن كانت الهرة حية والفأرة ميتة نزح عشرون، وإن كانتا ميتتين أجزأهم نزح أربعين ويدخل الأقل في الأكثر، وإن كانتا حيتين أخرجتا ولا ينزح شيء . ( ج ۱ ص ۲۱ كتاب الطهارة )

[1] في تبيين الحقائق : ولو كانت الفأرة مجروحة نزح جميع الماء لأجل الدم . ( ج ۱ ص ۹۸ كتاب الطهارة ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۹۱ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز فصل في البئر ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۴ كتاب الطهارة فصل (۳)

دوهم وار اوبه راکاږي نو که بالفرض ددغه څاه اوبه نه وې ډيري سـوي بلکه هغه داول وار څخه پاته اوبه پکښې ولاړي وې نو ددغه ټولو اوبو راکښل لازم دي.

اوکه ددغه څاه اوبه يوڅه ډيري سوي وي لکه عموما چي هم داسي وي نوبياددغه څاه څخه دټولو اوبو راکښل نه دي لازم بلکه دهغه اندازې اوبو راکښل لازم دي چي داول وار داوبو تر راکښلو وروسته پاته سوي وې لکه په مذکور مثال کي دهغه زرو ټولو اوبو پاته نيمايي حصه[1].

## ۱۲۹ - که دڅاه دټولواوبوراکښل لازم سي اوڅاه ډيري چينې ولري

**الإستفتاء:** که شرعاديوڅاه دټولو اوبوراکښل لازم وي خودغه څاه ډيري چينې ولري اوبه يې نه وچيږي نو څه کول په کاردي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه مسئله کي اصلي راجح قول دادی چي دغه څاه ته به دوه داسي کسان راوستل سي چي داوبوپه اندازه باندي پوهيږي، دغه اوبه به وګوري چي څومره اندازه دي، نوپه دغه اندازه باندي اوبه به ددغه څاه څخه راوکاږي.

اوکه په يوځای کي دغسي خلګ نه پيدا کېدل چي داوبوپه اندازه پوهيږي نوپه دغه ځای کي به بياددغه څاه څخه د دوه سوه ( ۲۰۰ ) سلواغو څخه تردرې سوه ( ۳۰۰ ) سلواغو پوري اوبه راوکاږي ځکه دغه قول فقهاء کرامو داسانۍ قول

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو نزح بعضه ثم زاد في الغد نزح قدر الباقي في الصحيح خلاصة . ( ج ۱ ص ۱۵۶ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في فتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۱۱ كتاب الطهارة فصل فيما يقع في البئر ، والبحر ج ۱ ص ۲۰۹ كتاب الطهارة )

بللی دی، خو که بیاهم په دغه ځای کي ددغه درې سوه (۳۰۰) سلواغو تر راکښلو وروسته ددغه خلګو غالب ګمان داوي چي ددغه څاه اوبه به تردغه ډیري وې نوبیادي تردغه وروسته هم یوڅه اوبه راوکاږي چي غالب ګمان یې دغه سي چي اوس نوهغه دڅاه داندازې اوبه راختلي دي؛ ځکه فقهاء کرام دهغه اول راجح قول په دلیل کي فرمایي چي سره ددې خبري چي شرعي حکم دادی چي دغه اوبه ټولي راکښل غواړي نوبیابه څرنګه دیوڅه اوبو په راکښلو سره څاه پاک وبلل سي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وإن تعذر) نزح كلها لكونها معينا (فبقدر ما فيها) وقت ابتداء النزح قاله الحلبي ( يؤخذ ذلك بقول رجلين عدلين لهما بصارة بالماء ) به يفتى وقيل يفتى بمائتين إلى ثلثمائة وهذا أيسر، وذاك أحوط .

وفي ردالمحتار : (قوله بقول رجلين إلخ) فإن قالا إن ما فيها ألف دلو مثلا نزح كذا في شرح المنية (قوله به يفتى) وهو الأصح كافي ودرر، وهو الصحيح؛ وعليه الفتوى. ابن كمال: وهو المختار معراج وهو الأشبه بالفقه هداية، أي الأشبه بالمعنى المستنبط من الكتاب والسنة؛ لأن الأخذ بقول الغير فيما لم يشتهر من الشرع فيه تقدير: قال تعالى {فاسألوا أهل الذكر إن كنتم لا تعلمون} [النحل: ٤٣] كما في أجزاء الصيد والشهادة عناية (قوله وقيل إلخ) جزم به في الكنز والملتقى، وهو مروي عن محمد وعليه الفتوى خلاصة وتتارخانية عن النصاب وهو المختار معراج عن العتابية، وجعله في العناية رواية عن الإمام وهوالمختار والأيسر كمافي الاختيار، وأفاد في النهر أن المائتين واجبتان والمائة الثالثة مندوبة، فقد اختلف التصحيح والفتوى. وضعف هذا القول في الحلية وتبعه في البحر بأنه إذا كان الحكم الشرعي نزح الجميع فالاقتصار على عدد مخصوص يتوقف على دليل سمعي يفيده وأين ذلك بل المأثور عن ابن عباس وابن الزبير خلافه حين أفتيا بنزح الماء كله حين مات زنجي في بئر زمزم وأسانيد ذلك الأثر مع دفع ما أورد عليها مبسوطة في البحر وغيره. قال في النهر: وكأن المشايخ إنما اختاروا ما عن محمد لانضباطه كالعشر تيسيرا كما مر. اه. قلت: لكن مروياتي أن مسائل الآبارمبنية على اتباع الآثار، على أنهم قالوا: إن محمدا أفتى بما شاهد في آبار بغداد فإنها كثيرة الماء وكذا ما

## ۱۳۰ -څاه ته مردار شی ولویږي خو ددغه شي راکښل ممکن نه وي

**الإستفتاء:** که یوڅاه یابرمې ته یومردار شی ورولوېدی نوپه دغه صورت کي خوشرعي حکم دادی چي اول به دغه مردار شی راوکاږي، بیابه اوبه راوکاږي نوکه اوس ددغه مردار شي راکښل ممکن نه وي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه مسئله دوه صورته لري:

۱- : دغه څاه ته چي داسي شی ورولویږي چي هغه متنجس وي یعني خپله مردار نه وي، خوپه یومرداري لړلی وي دهغه په وجه باندي مردار سوی وي لکه مثلا یوټوکر چي په یوشي سره مردار سي په دغه صورت کي چي دڅاه څخه ددغه شي راکښل ممکن نه وي نوددغه څاه دټولو اوبوپه راکښلوسره هم څاه پاک بلل کیږي اوهم دغه ورلوېدلی شی پاک بلل کیږي.

۲- دوهم صورت دادی چي دغه څاه ته هغه شی ورولویږي چي هغه په خپل ځان کي مردار وي لکه مړ حیوان یادمړه حیوان غوښي اوداسي نور نوپه دغه صورت کي په ردالمحتار کي فرمایي چي ددغه څاه اوبه تر هغه وخت پوري مرداري بلل کیږي چي غالب ګمان داسي کیږي چي اوس نودغه مردار شی ختم سوی دی اوختې اولوشي ګرځېدلی دی چي په یوقول کي دغه وخت په شپږ میاشتي باندي اندازه سوی دی.

---

روي عن الإمام من نزح مائه في مثل آبار الكوفة لقلة مائها فيرجع إلى القول الأول؛ لأنه تقدير ممن له بصارة وخبرة بالماء في تلك النواحي لا لكون ذلك لازما في آبار كل جهة، والله أعلم (قوله وذاك) أي ما في المتن أحوط للخروج عن الخلاف ولموافقته للآثار . ( ج ۱ ص ۱۵۷ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر )

اوهرکله چي غالب گمان داسي چي اوس نودغه مردار شی ختم سوی دی اوختې اولوشي گرځېدلی دی په دغه وخت کي ددغه څاه داوبو تر راکښلو وروسته دغه څاه پاک بلل کیږي.

البته دبرمې په باره کي په عامو فقهي کتابونوکي موږ څه خاص جزئي عبارت نه دی پیداکړی، خوفقهاء کرام فرمايي: چي که دحمام حوض ته اوبه را رواني وې اوخلگو پرله پسې په لپو یالوټو باندي اوبه ورڅخه را اخستلې اویاکوچني حوض ته له یوه طرف څخه اوبه را رواني وې او پرهغه بل طرف باندي وتلې نودغه اوبه دجاري اوبو حکم لري.

نوددغه پورتني قانون پربناء باندي به ووايو چي که برمې ته دغه مړحیوان یابل هغه شی ورولویږي چي په خپل ځان کي مردار وي نوڅه وخت چي پردغه برمه ماشین چالان سي نودغه دبرمې اوبه پاکي دي ځکه دننه دچینوله طرفه څخه نوي اوبه راروانيوي اودباندي طرف ته راوزي .

نوددغه برمې کومي اوبه چي په ماشین سره راپورته کیږي دغه اوبه ترهغه وخته پوري پاکي بلل کیږي ترڅوچي ددغه مرداري خوند یا رنگ یابوی نه وي پکښي معلوم سوی[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ينزح كل مائها) الذي كان فيها وقت الوقوع ذكره ابن الكمال (بعد إخراجه) لا إذا تعذر كخشبة أو خرقة متنجسة فبنزح الماء إلى حد لا يملأ نصف الدلو يطهر الكل تبعا . ( ج ١ ص ١٥٦ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في البحر ج ١ ص ١٩٧ كتاب الطهارة ، والهندية ج ١ ص ٢٠ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الأول فيما يجوز به التوضؤ ) = راتلونکی مخ

## ۱۳۱ - دڅاه په مسئلو کي دسلواغې څخه کومه سلواغه مرادده

**الإستفتاء:** دڅاه په مسئلو کي چي دسلواغې خبره ذکر کيږي چي مثلا شل ياڅلوېښت په دغه مسئلوکي کومه سلواغه معتبره ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه مسئلو کي مختلف قولونه سته خودعاموفقهي کتابونوڅخه دا قول راجح معلوميږي چي دهر څاه په باره کي هغه سلواغه معتبره ده چي پردغه څاه باندي استعماليږي[1].

---

وفي ردالمحتار : (قوله متنجسة) نعت لكل من الخشبة والخرقة وإنما أفرده للعطف بأو التي هي لأحد الشيئين، وأشار بقوله متنجسة إلى أنه لا بد من إخراج عين النجاسة كلحم ميتة وخنزير اه ح. قلت: فلو تعذر أيضا ففي القهستاني عن الجواهر: لو وقع عصفور فيها فعجزوا عن إخراجه فمادام فيها فنجسة فتترك مدة يعلم أنه استحال وصار حمأة، وقبل مدة ستة أشهر . ( ج ۱ ص ۱۵۶ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر .)

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وألحقوا بالجاري حوض الحمام لو الماء نازلا والغرف متدارك، كحوض صغير يدخله الماء من جانب ويخرج من آخر يجوز التوضؤ من كل الجوانب .

وفي ردالمحتار : (قوله: وألحقوا بالجاري حوض الحمام) أي في أنه لا ينجس إلا بطهور أثر النجاسة. أقول: وكذا حوض غير الحمام . ( ج ۱ ص ۱۳۹ كتاب الطهارة باب المياه مطلب الاصح انه لا يشترط في الجريان المدد ،كذا في البحر ج ۱ ص ۱۴۲ / ۱۴۳ و ص ۱۵۶ كتاب الطهارة )

[1] في الهداية : ثم المعتبر في كل بئر دلوها الذي يستقى به منها . ( ج ۱ ص ۴۷ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به فصل في البئر ،كذا في البحر ج ۱ ص ۲۰۸ كتاب الطهارة ، والدر المختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۵۹ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر )

## ۱۳۲ - كه دڅاه خپله مستعمله سلواغه ډېره غټه وي

**الإستفتاء:** كه ديوڅاه خپله مستعمله سلواغه ډېره غټه وي لكه عموما دربېك دڅاهانو، نوكه دغه څاه ته مثلا موږك ورولوېږي نو اوس به ددغه څاه څخه په دغه غټه سلواغه سره دشل څخه تردېرش سلواغوپوري اوبه راكاږي اوكه به څرنګه كوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په منحة الخالق كي فرمايي : چي ددغه قسم څاه څخه دانه ده لازمه چي په دغه غټه سلواغه سره به مثلا د شل څخه تردېرش پوري اوبه راكاږي خودغه خبره نه ده پكښي ذكرسوى چي نوپه دغه څاه كي كومه سلواغه معتبره ده .

خوبايد ووايوچي هركله چي ددغه څاه خپله مستعمله سلواغه نه سول معتبره نودغه څاه دهغه قسم څاهانو څخه سو چي هغه خپله مستعمله سلواغه نه لري اوددغه قسم څاه په باره كي چي هغه خپله مستعمله سلواغه نه لري فقهاء كرام فرمايي چي په دغه څاه كي هغه سلواغه معتبره ده چي يو صاع اوبه پكښي ځاييږي نوپه دغه څاه كي هم بايد دغه سلواغه معتبره وبلل سي[1].

---

[1] في منحة الخالق على البحر : قال الرملي أقول: فلو كان دلوها المعتاد لها كبيرا جدا هل يجب العدد المذكور أم يقتصر عليه ظاهر هذا الثاني فيكون مقيدا لقولهم المعتبر في كل بئر دلوها، وهو الذي يقتضيه نظر الفقيه، وبه يعلم أن الدلاء المستعملة في آبار قرى بلادنا على نحو البقر والحمير والإبل ويسمى في عرفنا المحص من هذا القبيل تأمل . ( ج ۱ ص ۲۰۹ كتاب الطهارة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (بدلو وسط) وهو دلو تلك البئر، فإن لم يكن فما يسع صاعا وغيره تحتسب به . ( ج ۱ ص ۱۵۹ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في البحر

### ۱۳۳ - که دیو څاه دپاره خپله مستعمله سلواغه نه وي

**الإستفتاء**: که یو څاه خپله مستعمله سلواغه نه ولري نوددغه څاه په باره کي کومه سلواغه معتبره ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

ددغه څاه په باره کي هغه سلواغه معتبره ده چي يو صاع اوبه پکښي ځاييږي[1].

### ۱۳۴ - څاه ته دحیوان ، پچو ، خوشایو ، ماسوابل مردار شي ور لوېدل

**الإستفتاء**: که یو څاه ته دحیوان اودپچو اوخوشایو اوخرشینو ماسوابل مردار شی ورولويږي لکه وینه یاشراب یابولي یامرداري اوبه اوداسي نور دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دغه مذکور شیان که لږ څاه ته ورولويږي اوکه ډېر ور ولويږي که خفيفه مرداري وي اوکه غليظه مرداري وي ددغه څاه اوبه ټولي مرداريږي اودغه اوبه

---

ج ۱ ص ۲۰۸ کتاب الطهارة ، وخلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۱۱ کتاب الطهارة الفصل الاول الجنس الثالث في الآبار )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (بدلو وسط) وهو دلو تلك البئر، فإن لم يكن فما يسع صاعا وغيره تحتسب به . ( ج ۱ ص ۱۵۹ کتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۰۸ کتاب الطهارة ، وخلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۱۱ کتاب الطهارة الفصل الاول الجنس الثالث في الآبار )

ټولي راكښل غواړي دغسي حكم يې نه دی لكه دحيواناتوچي تفصيل يې په خپله مسئله كي ذكر دی[1].

## ۱۳۵ - كه داوبوڅاه ته دمرداری څاه ورنژدې وي

**الإستفتاء:** كه په يوځای كي داوبوڅاه ته دمرداری څاه ورنژدې وي په دغه سره ددغه څاه اوبه مرداري بلل كيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دغه دوه څاهان دومره سره نژدې وي چي ددغه څاه په اوبو كي دهغه بل مردار څاه دمرداري خوند يارنګ يابوی معلومېدی نوددغه څاه اوبه مرداري بلل

---

[1] في البدائع : هذا إذا كان الواقع في البئر حيوانا فإن كان غيره من الأنجاس فلا يخلو إما أن يكون مستجسدا أو غير مستجسد، فإن كان غير مستجسد كالبول والدم والخمر ينزح ماء البئر كله؛ لأن النجاسة خلصت إلى جميع الماء وإن كان مستجسدا، فإن كان رخوا متخلخل الأجزاء كالعذرة وخرء الدجاج ونحوهما ينزح ماء البئر كله قليلا كان أو كثيرا رطبا كان أو يابسا؛ لأنه لرخاوته يتفتت عند ملاقاة الماء فتختلط أجزاؤه بأجزاء الماء فيفسده، وإن كان صلبا نحو بعر الإبل والغنم ذكر في الأصل أن القياس آه . ( ج ۱ ص ۲۲۵ كتاب الطهارة فصل في بيان مقدار ما يصير به المحل نجسا الفأرة تموت في السمن ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۵۵ ومابعده كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، ومراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۲۸ كتاب الطهارة فصل في مسائل الآبار )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (إذا وقعت نجاسة) ليست بحيوان ولو مخففة أوقطرة بول أو دم .

وفي ردالمحتار : (قوله ولو مخففة) ؛ لأن أثر التخفيف وهو العفو عما دون الربع لا يظهر في الماء . ( ج ۱ ص ۱۵۵ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۸ كتاب الطهارة فصل في مسائل الآبار )

کيږي، که په مابين کي لږ مسافه ولري اوکه ډېره.

اوکه ددغه څاه په اوبوکي ددغه بل مردار څاه دمرداري خوند اورنګ اوبوی يولاهم نه معلومېدی، په دغه صورت کي بيا ددغه څاه اوبه پاکي دي که ترمابين يې لږ مسافه وي، که ډېره[1].

## ۱۳۶ - په څاه اوتالاب کي دمړه حيوان پيداکېدووروسته دلمونځونو راګرځول

**الإستفتاء:** که يوڅوک ديوڅاه ياتالاب په اوبوباندي اودس تازه کوي اووروسته بيا په دغه څاه ياتالاب کي يومړحيوان پيدا سي نودغه شخص به خپل لمونځونه راګرځوي اوکه نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په يوه صحيحه طريقه سره دامعلومه سي چي دغه حيوان په دغه ځای کي په دغه وخت مړسو اويامړحيوان ورولوېدی، نوددغه حيوان دمرګ اويا ددغه مړه حيوان دورلوېدلودوخت څخه دغه اوبه مرداري بلل کيږي هرشي ته چي رسېدلي وي هغه شی مرداربلل کيږي نوددغه وخت څخه به خپل ټول لمونځونه راګرځوي.

---

[1] في البحر : والبعد بين البالوعة والبئر المانع من وصول النجاسة إلى البئر خمسة أذرع في رواية أبي سليمان وسبعة في رواية أبي حفص وقال الحلواني: المعتبر الطعم أو اللون أو الريح، فإن لم يتغير جاز وإلا فلا، ولو كان عشرة أذرع قال في الخلاصة: وفتاوى قاضي خان والتعويل عليه وصححه في المحيط . ( ج ۱ ص ۲۱۴ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۶۲ كتاب الطهارة باب المياه فصل في البئر مطلب في الفرق بين الروث والخثى والبعر والخرء والنجو والعذرة ، والهندية ج ۱ ص ۲۰ كتاب الطهارة الباب الثالث في المياه الفصل الاول فيما يجوز به التوضوء )

اوكه غه دوخت خبره معلومه نه سي چي دغه حيوان څه وخت مړورلوېدلى دى اوياڅه وخت پكښې مړسوى دى په دغه مسئله كي دامام صاحب قول دادى چي كه دغه حيوان پړسېدلى ياشوړېدلى نه وي نودغه اوبه ديوه شباروزڅخه مرداري بلل كيږي، نوديوه شباروز دلمونځونو قضاء به راوړي.

اوكه دغه حيوان پړسېدلى ياشوړېدلى وي نوبيادغه اوبه ددرې شباروزه څخه مرداري بلل كيږي، ددروشباروزو دلمونځونوقضاء به راوړي اواصلي راجح اواحتياطي هم دغه دامام صاحب قول دى.

اودامام ابويوسف اوامام محمدرحمهماالله تعالى قول دادى چي دغه اوبه ددغه وخت څخه مرداري بلل كيږي چي دغه حيوان پيداسي نودهيڅ لمانځه قضاء نسته اوځينو فقهاؤرحمهم الله تعالى دغه قول راجح بللى دى نوكه دځينو غټو مسجدونو په څاهانو اوتالابو كي دغه خبره پېښه سي لكه دبازارو په مسجدونو كي نوبايدپه دغه قول باندي عمل وكړل سي.

اوكه دغه شان دضرورت ځاى نه وي نوبيابه دامام صاحب په قول باندي عمل اوفتوى وي ځكه اصلي راجح اواحتياطي قول هم دغه دى[1].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : ويحكم بنجاستها مغلظة من وقت الوقوع إن علم، وإلا فمذ يوم وليلة إن لم ينتفخ ولم يتفسخ ... ومذ ثلاثة أيام بلياليها إن انتفخ أو تفسخ استحسانا. وقالا من وقت العلم فلا يلزمهم شيء قبله قيل وبه يفتى.

وفي ردالمحتار : (قوله قيل وبه يفتى) قائله صاحب الجوهرة. وقال العلامة قاسم في تصحيح القدوري: قال في فتاوى العتابي: قولهما هو المختار قلت لم يوافق على ذلك، فقد اعتمد قول الإمام البرهاني والنسفي والموصلي وصدر الشريعة ورجح دليله في جميع المصنفات وصرح في البدائع بأن

## ۱۳۷ - كه ترلس په لس كي كم تالاب ته څپلۍ ورولويږي

**الإستفتاء:** كه دكورهغه تالاب ته چي هغه لس په لس كي نه وي، يوه څپلۍ ورولويږي نو په دغه سره تالاب مرداريږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دامعلومه وي چي دغه څپلۍ پاكه وه تالاب نه په مرداريږي.

اوكه دامعلومه وي چي دغه څپلۍ مرداره وه نو اوبه مرداري بلل كيږي.

اوكه داهم نه وي معلومه چي دغه څپلۍ پاكه وه اوداهم نه وي معلومه چي مرداره وه نو په دغه صورت كي دغه اوبه مرداري نه بلل كيږي، خوكه نوري اوبه وي نو احتياط دادى چي په نورو اوبو باندي اودس اوغسل وكړي[1].

---

قولهما قياس وقوله استحسان، وهو الأحوط في العبادات . ( ج ١ ص ١٦٠ كتاب الطهارة فصل في البئر ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ٥٣ كتاب الطهارة فصل (٣) والبحر ج ١ ص ٢١٧ الى ٢٢٠ كتاب الطهارة )

[1] في فتح القدير : يتوضأ من الحوض الذي يخاف فيه قذر ولا يتيقن ... وكذا البئر التي يدلى فيها الدلاء والجرار الدنسة يحملها الصغار والعبيد لا يعلمون الأحكام ويمسها الرستاقيون بالأيدي الدنسة ما لم يعلم يقينا النجاسة .( ج ١ ص ٧٢ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز)

وفي الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : مشى في حمام ونحوه لا ينجس ما لم يعلم أنه غسالة نجس.

وفي ردالمحتار : (قوله: مشى في حمام ونحوه) أي كما لو مشى على ألواح مشرعة بعد مشي من برجله قذر لا يحكم بنجاسة رجله ما لم يعلم أنه وضع رجله على موضعه للضرورة فتح. وفيه عن التنجيس مشى في طين أو أصابه ولم يغسله وصلى تجزيه ما لم يكن فيه أثر النجاسة لأنه المانع إلا أن يحتاط وأما في الحكم فلا يجب . ( ج ١ ص ٢٥٧ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في الامر بالمعروف )

## ۱۳۸ - كه هغه حوض ته مرداري ورولويږي چي لس په لس كي نه وي

**الإستفتاء:** كه هغه حوض ته مرداري ورولويږي چي لس په لس كي نه وي څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اوبه شرعا مرداري بلل كيږي كه څه هم ددغه مرداري خوند اورنګ اوبوى يولاهم نه وي پکښي معلوم سوى [1].

## ۱۳۹ - دهغه حوض دپاكوالي طريقه چي لس په لس كي نه وي

**الإستفتاء:** كه هغه حوض مردارسي چي لس په لس كي نه وي نودپاكوالي طريقه يې څرنګه ده؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه حوض دپاكوالي لنډه اواسانه طريقه داده چي ددغه تالاب څخه دي اول وارهغه ورلوېدلي مردارشى راوكاږي اوبيادي دغه حوض ياتالاب ته نوري پاكي اوبه ورواچوي هركله چي دحوض څخه اوبه وبهيږي كه څه هم ترهغه زړو اوبو لږ وبهيږي نودغه حوض پاک بلل كيږي،خو دډېرو لږاوبوبهېدل كفايت نه كوي لكه يوګزيادوه ګزه اندازه چي پرمځكه باندي وبهيږي [2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : أما القليل فينجس وان لم يتغير . ( ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الطهارة باب المياه مطلب حكم سائر المائعات كالماء في الاصح ، كذا في مراقي الفلاح ص ۲۱ كتاب الطهارة ،والهداية ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به )

[2] في ردالمحتار : المختار أنه يطهر وإن لم يخرج مثل ما فيه، فلو امتلأ الحوض وخرج من جانب الشط على وجه الجريان حتى بلغ المشجرة يطهر، أما قدر ذراع أو ذراعين فلا . ( ج ۱ ص ۱۴۳

**۱۴۰ - که هغه حوض ته مرداري ورولويږي چي لس په لس کي وي**

**الإستفتاء:** که داسي حوض ته مرداري ورولويږي چي هغه لس گزه اوږدوالی اولس گزه برداروالی ولري، یاتردغه ډېر اوږدوالی اوبرداروالی ولري څه حکم یې دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

که ددغه حوض اوبه دومره ژوروالی ولري چي په لپه را اخیستلو سره لاندي مځکه نه ښکاره کېده نوترڅوچي ددغه مرداري خوندیارنگ یابوی په دغه اوبوکي نه وي ښکاره سوی تردغه وخت پوري دغه اوبه شرعاپاکي بلل کیږي.

اوکه ددغه مرداري خوند ،یارنگ، یابوی په دغه اوبوکي معلوم سو، یادغه اوبه دومره لږوې چي دلپي په را اخیستلوسره لاندي مځکه ښکاره کېده نوبیادغه اوبه شرعامرداري بلل کیږي [(1)].

---

کتاب الطهارة مطلب يطهر الحوض بمجرد الجريان ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۵ كتاب الطهارة الفصل الاول والبحر ج ۱ ص ۱۴۲ كتاب الطهارة )

(1) في مراقي الفلاح : وأما إذا كان عشرا في عشر بحوض مربع أو ستة وثلاثين في مدور وعمقه أن يكون بحال لا تنكشف أرضه بالغرف منه على الصحيح, وقيل: يقدر عمقه بذراع أو شبر فلا ينجس إلا بظهور وصف للنجاسة فيه حتى موضع الوقوع, وبه أخذ مشايخ بلخ توسعة على الناس والتقدير بعشر في عشر هو المفتى به . ( ص ۲۱ كتاب الطهارة ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۴۱ /۴۲ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لايجوز به ، وردالمحتار ج ۱ ص ۱۴۱ كتاب الطهارة باب المياه مطلب لو أدخل الماء من أعلى الحوض وخرج من أسفله فليس بجار )

**۱۴۱ – داوبو مخ سل گزه وي خو لس په لس کي نه وي مرداري ورولو يږي**

**الإستفتاء:** فقهاء کرام فرمايي: چي که يو حوض په شرعي گزه باندي لس گزه برداروالی، لس گزه اوږدوالی ولري نو که دغه اوبو ته مرداري ورولوېدی دغه اوبه ترهغه وخته پوري مرداري نه بلل کيږي چي رنگ، خوند، يابوی يې نه وي بدل سوی، اوس پوښتنه داده چي که يو حوض مثلا پنځه گزه برداروالی ولري اوشل گزه اوږدوالی، يا څلور گزه برداروالی ولري او پنځه ويشت گزه اوږدوالی ولري، نو اوس که داسي حوض ته مرداري ورولو يږي نو ايا دغه حوض مردار بلل کيږي اوکه داسي حکم لري لکه دهغه حوض چي لس په لس کي وي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه دواړه حوضونه د لس په لس کي حوض حکم لري، يعني ترڅو چي خوند يارنگ يابوی يې نه وي بدل سوی مردار نه بلل کيږي؛ ځکه دفقهاؤ دذکرسوي حکم مقصد دانه دی چي اوبه به خامخا لس گزه اوږدوالی لري او لس گزه به برداروالی لري بلکه مقصود يې دادی چي داوبو مخ به سل گزه ته رسيږي، يعني داوبو پر مخ باندي به سل داني داسي مربع خاني جوړېدلای سي چي هره يوه يو گز اوږدوالی ولري او يو گز برداروالی ولري.

او داخبره چي څه وخت داوبو مخ لس په لس کي بلل کيږي او څه وخت نه بلل کيږي ددغه په باره کي دي د داسي يو پوه او تجربه کار شخص څخه پوښتنه وسي چي داشکالو او حساب دقوانينو مهارت ولري[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و لو له طول لاعرض لكنه يبلغ عشرا في عشر جاز تيسيرا . = راتلونکی مخ

## ۱۴۲ - ګردی حوض چي څومره سي لس په لس کي بلل کیږي

**الإستفتاء:** که یوحوض مدور یعني ګردی وي دغه حوض چي څوګزه سي نوغټ یعني لس په لس کي بلل کیږي؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه حوض چي شا اوخوا شپږد برش (۳۶) ګزه اندازه ولري نو دغه حوض غټ یعني لس په لس کي بلل کیږي.[1]

---

وفي ردالمحتار : (قوله: لكنه يبلغ إلخ) كأن يكون طوله خمسين وعرضه ذراعين مثلا فإنه لو ربع صار عشرا في عشر.(قوله: جاز تيسيرا) أي جاز الوضوء منه بناء على نجاسة الماء المستعمل، أو المراد جاز وإن وقعت فيه نجاسة، وهذا أحد قولين، وهو المختار كما في الدرر عن عيون المذاهب والظهيرية وصححه في المحيط والاختياروغيرهما واختار في الفتح القول الآخر وصححه تلميذه الشيخ قاسم؛ لأن مدار الكثرة على عدم خلوص النجاسة إلى الجانب الآخر، ولا شك في غلبة الخلوص من جهة العرض، ومثله لو كان له عمق بلا سعة أي بلا عرض ولا طول؛ لأن الاستعمال من السطح لا من العمق. وأجاب في البحر بأن هذا وإن كان الأوجه، إلا أنهم وسعوا الأمر على الناس وقالوا بالضم كما أشار إليه في التجنيس بقوله تيسيرا على المسلمين. اه. وعلله بعضهم بأن اعتبار الطول لاينجسه واعتبار العرض ينجسه فيبقى طاهرا على أصله للشك في تنجسه، وتمامه في حاشية نوح أفندي، وبه فارق ما له عمق بلا سعة . ( ج ۱ ص ۱۴۲ كتاب الطهارة باب المياه مطلب لو أدخل الماء من أعلى الحوض وخرج من أسفله فليس بجار .)

وفي الاختيار لتعليل المختار : وإن كان له طول ولا عرض له، فالأصح أنه إن كان بحال لو ضم طوله إلى عرضه يصير عشرا في عشر فهو كثير . ( ج ۱ ص ۲۱ كتاب الطهارة فصل احكام المياه )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وفي المدور بستة وثلاثين . ( ج ۱ ص ۱۴۲ كتاب الطهارة باب المياه مطلب لو أدخل الماء من أعلى الحوض وخرج من أسفله فليس بجار ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۴۷ كتاب الطهارة فصل (۲) ، والجوهرة النيرة ج ۱ ص ۱۸ كتاب الطهارة )

## ۱۴۳ - پرهغه ولاړواوبواودس تازه کول چي لس په لس کي نه وي

**الإستفتاء:** کوم حوض چي لس په لس کي نه وي او اوبه يې ولاړي وي پر دغه حوض باندي اودس تازه کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

که داودس کونکي پرلاس، يابل اندام باندي حقيقي مرداري موجود وي نوکه دغه لاس يابل اندام ددغه حوض اوبوته ورداخل کړي، ياددغه مردار اندام دپرېوللو اوبه دغه حوض ته ورولوېږي نوپه دغه دواړه حالته کي دغه اوبه مرداري بلل کيږي.

اوکه داودس کونکي پراندامونوباندي حقيقي مرداري موجود نه وي نوبياکه يې داسي وکړل چي داوداسه داندامونوڅخه يو اندام که لاس وي، يابل اندام دپرېوللودپاره په دغه اوبوکي دننه غوټه کړي نوپه دغه صورت کي دفقهاء کرامو دوه قولونه دي:

۱- په دغه عمل سره ددغه حوض اوبه ټولي مستعملي ګرځي تردغه وروسته داوداسه بل اندام نه په پرېولل کيږي.

۲- په دغه عمل سره دغه اوبه ټولي مستعملي نه ګرځي بلکه يوازي داوبوهغه حصه مستعملي بلل کيږي چي داندام سره متصلي وي نوددغه قول پربناء بياپه دغه اوبوسره اودس صحيح کيږي ترهغه وخت پوري چي ددغه اوبونيمه حصه مستعملي ګرځي اوتردغه وروسته بيااودس نه په صحيح کيږي.

نواحتياط دادی چي اول خوهر انسان ددغه عمل څخه ځان وساتي چي اندامونه په دغه اوبوکي دننه پرېولي.

اوکه بياهم يوچاداسي عمل وکړی نو وروسته که نوري اوبه پيدا کېدلای

سي نو بايد په دغه نورو اوبو سره اودس وکړل سي او که نوري اوبه نه پيدا کېدلې نو بيادي په دغه اوبو سره اودس وکړي.

او که يې داوداسه اندامونه ټول په داسي طريقه سره پرېولل چي د دغه حوض يې څخه په لاس باندي اوبه راخيستلې او هر اندام يې په پرېولی، نو په دغه صورت کي ښه خبره خو داده چي په داسي طريقه سره اودس تازه کړي چي په لاس سره د هر اندام دپاره د دغه حوض څخه اوبه راواخلي او بيا دغه اندام په داسي طريقه سره پرېولي چي هغه مستعملي اوبه يې دغه حوض ته نه ورلوېږي.

او که په داسي طريقه سره اودس تازه کړي چي داندامونو هغه مستعملي اوبه يې دغه حوض ته ورلوېږي نو دغه هم پر صحيح قول باندي پروانه کوي ځکه صحيح قول دادی چي مستعملي اوبه مرداري نه دي، مګر په دغه صورت کي چي ديوه اندام ترپرېوللو وروسته دبل اندام دپاره اوبه را اخلي، نو که داودس کونکي غالب ګمان داسي چي د دغه اوبو نيمه حصه ياتر نيمه حصه ډېري هغه اوبه دي چي دمخکي اندام په پرېوللو سره مستعملي سوي دي، يا پر دغه حوض باندي په دغه طريقه سره دومره ډېر اودسونه وکړل سي چي د دغه اودسونو مستعملي اوبه د دغه حوض داوبو نيمايي حصې ته ورسېدې نو په دغه دوه صورته کي بيا په دغه اوبو سره د دغه اندام پرېولل صحيح نه دی ځکه مستعملي اوبه که څه هم پر صحيح قول باندي مرداري نه دي خو اودس هم نه په صحيح کيږي[1].

---

[1] في البحر : إذا لم يكن معه ما يغترف به ويداه نجستان، فإنه يأمر غيره أن يغترف بيديه ليصب على يديه ليغسلهما، وإن لم يجد يرسل في الماء منديلا ويأخذ طرفه بيده ثم يخرج من البئر فيغسل

اليد بقطراته ثم يغسل اليد الأخرى أو يأخذ الثوب بإسنانه فيغسل يديه بالماء الذي يتقاطر ثلاثا، فإن لم يجد يرفع الماء بفمه فيغسل يديه، فإن لم يقدر، فإنه يتيمم ويصلي ولا إعادة عليه . ( ج ١ ص ٣٨ كتاب الطهارة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٨٣ كتاب الطهارة مطلب في دلالة المفهوم )

وفي البدائع : أما غسالة النجاسة الحقيقية وهي ما إذا غسلت النجاسة الحقيقية ثلاث مرات فالمياه الثلاث نجسة؛ لأن النجاسة انتقلت إليها إذ لا يخلو كل ماء عن نجاسة فأوجب تنجيسها وحكم المياه الثلاث في حق المنع من جواز التوضؤ بها، والمنع من جواز الصلاة بالثوب الذي أصابته سواء لا يختلف ( ج ١ ص ٢٠٦ كتاب الطهارة فصل في الطهارة الحقيقة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) لا بماء (مغلوب ب) شيء (طاهر) الغلبة إما بكمال الامتزاج ... وإما بغلبة المخالط فلو جامدا ... أو مماثلا كمستعمل فبالأجزاء، فإن المطلق أكثر من النصف جاز التطهير بالكل وإلا لا، وهذا يعم الملقى والملاقي، ففي الفساقي يجوز التوضؤ ما لم يعلم تساوي المستعمل على ما حققه في البحر والنهر المنح. قلت: لكن الشرنبلالي في شرحه للوهبانية فرق بينهما، فراجعه متأملا.

وفي ردالمحتار : (قوله: وإلا لا) أي وإن لم يكن المطلق أكثر، بأن كان أقل أو مساويا لا يجوز.(قوله: وهذا) أي ما ذكر من اعتبار الإجزاء في المستعمل يعم الملقى بالبناء للمفعول أي ما كان مستعملا من خارج ثم أخذ وألقي في الماء المطلق وخلط به والملاقي أي والذي لاقى العضو من الماء المطلق القليل بأن انغمس فيه محدث أو أدخل يده فيه (قوله: ففي الفساقي) أي الحياض الصغار يجوز التوضؤ منها مع عدم جريانها، وهو تفريع على ما ذكره من التعميم، ومن جملة الفساقي مغطس الحمام وبرك المساجد ونحوها مما لم يكن جاريا ولم يبلغ عشرا في عشر، فعلى هذا القول يجوز فيها الاغتسال والوضوء ما لم يعلم أن الماء الذي لاقى أعضاء المتطهرين ساوى المطلق أو غلب عليه.(قوله: على ما حققه في البحر إلخ) حيث استدل على ذلك بإطلاقهم المفيد للعموم كما مر، وبقول البدائع: الماء القليل إنما يخرج عن كونه مطهرا باختلاط غير المطهر به إذا كان غير المطهر

غالبا كماء الورد واللبن لا مغلوبا، وها هنا الماء المستعمل ما يلاقي البدن ولا شك أنه أقل من غير المستعمل فكيف يخرج به من أن يكون مطهرا اهـ ونحوه في الحلية لابن أمير الحاج. وفي فتاوى الشيخ سراج الدين قارئ الهداية التي جمعها تلميذه المحقق ابن الهمام سئل عن فسقية صغيرة يتوضأ فيها الناس وينزل فيها الماء المستعمل وفي كل يوم ينزل فيها ماء جديد هل يجوز الوضوء فيها؟ أجاب إذا لم يقع فيها غير الماء المذكور لا يضر اهـ يعني وأما إذا وقعت فيها نجاسة تنجست لصغرها، وقد استدل في البحر بعبارات أخر لا تدل له كما يظهر للمتأمل؛ لأنها في الملقى، والنزاع في الملاقي كما أوضحناه فيما علقناه عليه فلذا اقتصرنا على ما ذكرنا.(قوله: فرق بينهما) أي بين الملقى والملاقي حيث قال: وما ذكر من أن الاستعمال بالجزء الذي يلاقي جسده دون باقي الماء فيصير ذلك الجزء مستهلكا في كثير فهو مردود لسريان الاستعمال في الجميع حكما، وليس كالغالب يصب القليل من الماء فيه اهـ وحاصله الرد على ما مر عن البدائع بأن المحدث إذا انغمس أو أدخل يده في الماء صار مستعملا لجميع الماء حكما وإن كان المستعمل حقيقة هو الملاقي للعضو فقط بخلاف ما لو ألقي فيه المستعمل القليل فإنه لا يحكم على الجميع بالاستعمال؛ لأن المحدث لم يستعمل شيئا منه حتى يدعي ذلك، إنما المستعمل حقيقة وحكما هو ذلك الملقى فقط. وملخصه: أن الملقى لا يصير به الماء مستعملا إلا بالغلبة، بخلاف الملاقي فإن الماء يصير مستعملا كله بمجرد ملاقاة العضو له.ورد ذلك في البحر بأنه لا معنى للفرق المذكور؛ لأن الشيوع والاختلاط في الصورتين سواء، بل لقائل أن يقول إلقاء الغسالة من الخارج أقوى تأثيرا من غيره لتعين المستعمل فيه اهـ وبذلك أمر الشارح بالتأمل. واعلم أن هذه المسألة مما تحيرت فيها أفهام العلماء الأعلام ووقع فيها بينهم النزاع وشاع وذاع، وألف فيها العلامة قاسم رسالة سماها رفع الاشتباه عن مسألة المياه حقق فيها عدم الفرق بين الملقى والملاقي: أي فلايصير الماء مستعملا بمجرد الملاقاة، بل تعتبر الغلبة في الملاقي كما تعتبر في الملقى، ووافقه بعض أهل عصره. تعقبه غيرهم منهم تلميذه العلامة عبد البر بن الشحنة فرد عليه برسالة سماها زهر الروض في مسألة الحوض وقال: لا تغتر بما ذكره شيخنا العلامة قاسم. ورد عليه أيضا في شرحه على الوهبانية، واستدل بما في الخانية وغيرها لو أدخل يده أو رجله في الإناء للتبرد يصير الماء مستعملا لانعدام الضرورة وبما في الأسرار للإمام أبي زيد الدبوسي حيث ذكر ما مر عن البدائع.ثم قال: إلا أن محمدا يقول لما اغتسل في الماء القليل صار الكل مستعملا حكما اهـ ومن هنا

نشأ الفرق السابق وبه أفتى العلامة ابن الشلبي، وانتصر في البحر للعلامة قاسم وألف رسالة سماها الخير الباقي في الوضوء من الفساقي وأجاب عما استدل به ابن الشحنة بأنه مبني على القول الضعيف بنجاسة الماء المستعمل، ومعلوم أن النجاسة ولو قليلة تفسد الماء القليل، وأقره العلامة الباقاني والشيخ إسماعيل النابلسي وولده سيدي عبد الغني وكذا في النهر والمنح، وعلمت أيضا موافقته للمحقق ابن أمير الحاج وقارئ الهداية، وإليه يميل كلام العلامة نوح أفندي، ثم رأيت الشارح في الخزائن مال إلى ترجيحه وقال إنه الذي حرره صاحب البحر بعد اطلاعه على كتب المذهب ونقله عباراتها المضطربة ظاهرا، وعلى ما ألف في هذا الخصوص من الرسائل وأقام على هذه الدعوى الصادقة البينة العادلة، وقد حررت في ذلك رسالة حافلة كافلة بذلك متضمنة لتحقيق ما هناك، وبلغني أن شيخنا الشيخ شرف الدين الغزي محشي الأشباه مال إلى ذلك كذلك اه ملخصا. قلت: وفي ذلك توسعة عظيمة ولا سيما في زمن انقطاع المياه عن حياض المساجد وغيرها في بلادنا ولكن الاحتياط لا يخفى، فينبغي لمن يبتلى بذلك أن لا يغسل أعضاءه في ذلك الحوض الصغير بل يغترف منه ويغسل خارجه وإن وقعت الغسالة فيه ليكون من الملقى لا من الملاقي الذي فيه النزاع، فإن هذا المقام فيه للمقال مجال والله تعالى أعلم بحقيقة الحال . ( ج ١ ص ١٣٣ /١٣٤ كتاب الطهارة باب المياه مطلب في مسئلة الوضوء من الفساقي )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وألحقوا بالجاري حوض الحمام لو الماء نازلا والغرف متدارك كحوض صغير يدخله الماء من جانب ويخرج من آخر يجوز التوضؤ من كل الجوانب مطلقا، به يفتى، وكعين هي خمس في خمس ينبع الماء منه، به يفتى.

وفي ردالمحتار : (قوله: مطلقا) أي سواء كان أربعا في أربع أو أكثر. وقيل لو أكثر يتنجس؛ لأن الماء المستعمل يستقر فيه إلا أن يتوضأ في موضع الدخول أو الخروج كما في المنية. وظاهر الإطلاق أيضا أنه إذا علم عدم خروج الماء المستعمل لضعف الجري لا يضر وليس كذلك لما في المنية عن الخانية. والأصح أن هذا التقدير غير لازم، فإن خرج الماء المستعمل من ساعته لكثرة الماء وقوته يجوز وإلا فلا اه وأقره الشارحان، وزاد في الحلية قوله ولا شك أنه حسن، لكن قال في التتارخانية بعدما مر: وحكي عن الحلواني أنه قال إن كان يتحرك الماء من جريانه يجوز. وأجاب ركن الإسلام

## ۱۴۴ - دبرمې اوباوړې دغاړي پر کوچني حوض اودس تازه کول

**الإستفتاء:** دباوړې يابرمې له خولې سره چي کوم کوچنی حوض وي پردغه حوض باندي اودس تازه کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

څه وخت چي باوړې اوبرمه بنده وي اوپه دغه کوچني حوض کي اوبه ولاړي وي ددغه اوبوحکم هغه دی چي په مخکي مسئله نمبر ( ۱۴۳) کي په تفصيل سره ذکر سو.

اوپه کوم وخت کي چي باوړې اوبرمه چالانه وي په دغه وخت کي پردغه حوض باندي اودس تازه کول په اتفاق سره روادي؛ ځکه دغه حوضونه کوچني دي دپائپ داوبو په ورلوېدلو سره دغه اوبه تولي حرکت کوي نودغه دحوض اوبه جاري بلل کيږي [1].

---

السعدي بالجواز مطلقا؛ لأنه ماء جار والجاري يجوز التوضؤ به وعليه الفتوى. اهـ. ثم هذا كما في الحلية مبني على نجاسة الماء المستعمل، وأما على الأصح المختار فيجوز الوضوء ما لم يغلب على ظنه أن ما يغترفه أو نصفه فصاعدا ماء مستعمل اه . ( ج ١ ص ١٣٩ /١٤٠ كتاب الطهارة باب المياه تنبيه مهم في طرح الزبل في القساطل ،كذا في البحر ج ١ ص ١٤٣ كتاب الطهارة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وألحقوا بالجاري حوض الحمام لو الماء نازلا والغرف متدارك كحوض صغير يدخله الماء من جانب ويخرج من آخر يجوز التوضؤ من كل الجوانب مطلقا، به يفتى، وكعين هي خمس في خمس ينبع الماء منه، به يفتى.

وفي ردالمحتار : (قوله: مطلقا) أي سواء كان أربعا في أربع أو أكثر. وقيل لو أكثر يتنجس؛ لأن الماء المستعمل يستقر فيه إلا أن يتوضأ في موضع الدخول أو الخروج كما في المنية. وظاهر الإطلاق أيضا أنه إذا علم عدم خروج الماء المستعمل لضعف الجري لا يضر وليس كذلك لما في المنية عن

الخانية. والأصح أن هذا التقدير غير لازم، فإن خرج الماء المستعمل من ساعته لكثرة الماء وقوته يجوز وإلا فلا اهـ وأقره الشارحان، وزاد في الحلية قوله ولا شك أنه حسن، لكن قال في التتارخانية بعدما مر: وحكي عن الحلواني أنه قال إن كان يتحرك الماء من جريانه يجوز. وأجاب ركن الإسلام السعدي بالجواز مطلقا؛ لأنه ماء جار والجاري يجوز التوضؤ به وعليه الفتوى. اهـ. ثم هذا كما في الحلية مبني على نجاسة الماء المستعمل، وأما على الأصح المختار فيجوز الوضوء ما لم يغلب على ظنه أن ما يغترفه أو نصفه فصاعدا ماء مستعمل اهـ . ( ج ١ ص ١٣٩ /١٤٠ كتاب الطهارة باب المياه تنبيه مهم في طرح الزبل في القساطل )

وفي فتح القدير : وأما التوضي في عين والماء يخرج منها فإن كان في موضع خروجه جاز وإن كان في غيره فكذلك إن كان قدره أربعا في أربع فأقل، فإن كان خمسا في خمس اختلف فيه.واختار السغدي جوازه، والخلاف مبني على أنه هل يخرج المستعمل قبل تكرير الاستعمال إذا كان بهذه المساحة أو لا، وهذه مبنية على نجاسة المستعمل . ( ج ١ ص ٦٩ كتاب الطهارة باب الماء الذي يجوز به الوضوء وما لا يجوز )

# باب التيمم

## الفصل الاول في الفرائض

## (اول فصل دتيمم دفرضونو په بيان کي دی)

### ۱۴۵ - اوبه چي څومره ليري وي تيمم روادی

**الإستفتاء:** انسان چي داوبو څخه څومره ليري وي تيمم ورته روادی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

انسان چي داوبو څخه ديوه ميل په اندازه ليري وي تيمم ورته روادی[1].

### ۱۴۶ - ديوه ميل اندازه

**الإستفتاء:** ديوه ميل اندازه څومره ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

يوميل په شرعي ګزباندي څلورزره (۴۰۰۰) ګزه کيږي چي هرګزبه څلور ويشت (۲۴) ګوتي وي چي په اوسنۍ اصطلاحي اندازه باندي دوه زره (۲۰۰۰) ګزه يا شپږزره (۶۰۰۰) فټه کيږي[2].

---

[1] في الهندية : يجوز التيمم لمن كان بعيدا من الماء ميلا هو المختار في المقدار . ( ج ۱ ص ۲۷ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۵۱ كتاب الطهارة باب التيمم ، وردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۱ كتاب الطهارة باب التيمم )

[2] في الهندية : واقرب الاقوال ان الميل وهوثلث الفرسخ اربعة آلاف ذراع طول كل ذراع اربع وعشرون اصبعا . ( ج ۱ ص ۲۷ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لابد

## ۱۴۷ - ديوه ميل داندازې دمعلومولو طريقه

**الإستفتاء**: دتيمم په باب کي چي ذکرکيږي چي: هغه وخت تيمم روادی چي انسان داوبو څخه ديوه ميل په اندازه ليري وي نواوس دغه ديوه ميل اندازه به څرنګه معلوميږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

په ردالمحتارکي فرمايي چي دالازمه نه ده چي دغه مځکه به په ګز باندي خامخامعلوموي بلکه چي ددغه شخص غالب ګمان داسوچي دغه اندازه ديوه ميل ده نو تيمم ورته روادی[1].

## ۱۴۸ - په تيمم کي دنيت حکم

**الإستفتاء**: په تيمم کي نيت څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

په تيمم کي نيت شرط او فرض دی[2].

## ۱۴۹ - دلمانځه دپاره دتيمم نيت

**الإستفتاء**: دلمانځه لپاره چي تيمم وهي نو څرنګه نيت به کوي ؟

---

منها في التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۱ كتاب الطهارة باب التيمم ، والبحر ج ۱ ص ۲۴۳ كتاب الطهارة باب التيمم )

[1] في ردالمحتار : والمعتبر غلبة الظن في تقديره . ( ج ۱ ص ۱۷۱ باب التيمم )

[2] في الدر المختار على هامش ردالمحتار: وشرطه ستة النية . ( ج ۱ ص ۱۶۹ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۵۳ كتاب الطهارة باب التيمم ، و الهندية ج۱ ص ۲۵ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه تيمم به دداسي عبادت په نيت ووهي چي مقصودعبادت وي اوبېله طهارت څخه نه صحيح کيږي لکه لمونځ اويابه دمطلق طهارت (پاکی) په نيت يادلمانځه دروا والي په نيت تيمم ووهي.

نوبناء پردغه باندي که يوڅوک دقرآن کريم دلاس وروړلودپاره تيمم ووهي نوپه دغه تيمم سره لمونځ کول نه دي روا[1].

## ۱۵۰ - دتلاوت دپاره په وهل سوي تيمم لمونځ کول

**الإستفتاء:** که يوڅوک دقرآن کريم دتلاوت دپاره تيمم ووهي نوپه دغه تيمم سره لمونځ کول ورته روادي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که يوڅوک جنب وي اوپر غسل کولوباندي قدرت نه ولري نوکه په دغه وخت کي دغه شخص دقرآن کريم دتلاوت دپاره تيمم ووهي په دغه تيمم سره لمونځ کول ورته روادي.

اوکه يوڅوک جنب نه وي بلکه بې اودسه وي، نودغه شخص که دقرآن کريم

---

[1] في الهندية : وكيفيتها ان ينوي عبادة مقصودة لاتصح الا بالطهارة ونية الطهارة او استباحة الصلاة تقوم مقام ارادة الصلاة ... ولو تيمم لقراءة القرآن عن ظهر القلب او عن المصحف ... أو لمس المصحف وصلى بذلک التيمم قال عامة العلماء لايجوز . ( ج ۱ ص ۲۶ کتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۸۱ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب في تقدير الغلوة ، وقاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۵۳ كتاب الطهارة باب التيمم فصل في صورة التيمم )

دتلاوت دپاره تيمم ووهي، په دغه تيمم سره لمونځ کول روانه دي[1].

## ۱۵۱ - دجنازې دلمانځه په تيمم سره لمونځ يادتلاوت سجده کول

**الإستفتاء:** که يوڅوک دجنازې دلمانځه دتېرېدلو په وجه تيمم ووهي نو په دغه تيمم سره فرضي يانفلي لمونځ، يادتلاوت سجده يادقرآن کريم مسح کول روادي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا:**

په دغه تيمم سره دغه مذکورشيان نه دي روا[2].

---

[1] في مراقي الفلاح : أو نية عبادة مقصودة" وهي التي لا تجب في ضمن شي آخر بطريق التبعية فتكون قد شرعت ابتداء تقربا إلى الله تعالى وتكون أيضا "لا تصح بدون طهارة" فيكون المنوي إما صلاة أو جزءا للصلاة في حد ذاته كقوله نويت التيمم للصلاة أو لصلاة الجنازة أو سجدة التلاوة أو لقراءة القرآن وهو جنب أو نوته لقراءة القرآن بعد انقطاع حيضها أو نفاسها لأن كلا منها لا بد له من الطهارة وهو عبادة "فلا يصلي به" أي التيمم "إذا نوى التيمم فقط" أي مجردا من غير ملاحظة شيء مما تقدم "أو نواه" أي التيمم "لقراءة القرآن و" هو محدث حدثا أصغر و "لم يكن جنبا" وكذا المرأة إذا نوته للقراءة ولم تكن مخاطبة بالتطهر من حيض ونفاس لجواز قراءة المحدث لا الجنب . ( ص ۹۰ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۶۲ كتاب الطهارة باب التيمم ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۹ كتاب الطهارة باب التيمم و ايضا ص ۱۸۲ مطلب في الفرق بين الظن وغلبة الظن )

[2] في ردالمحتار : فالأولى أن يقول فإن تيممه لم يصح إلا لما نواه وهو صلاة الجنازة فقط بدليل أنه لا يجوز له أن يصلي به ولا أن يمس المصحف ولا يقرأ القرآن جنبا، كذا قرره شيخنا حفظه الله تعالى . ( ج ۱ ص ۱۸۱ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب في تقدير الغلوة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۶۴ كتاب الطهارة باب التيمم )

## ۱۵۲ - په يوه تيمم سره دډيرو جنازولمونځ اداء کول

**الإستفتاء:** په يوه تيمم سره دډيرو جنازولمونځ کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

که ددغه ټولو جنازو لمونځ په يوه وارکوي نو روادی؛ ځکه دا يو لمونځ دی.

اوکه دهري جنازې دپاره جلالمونځ کوي، نوبياکه دغه شخص تيمم په دې وجه نه وي وهلی چي دجنازې لمونځ راڅخه تېريږي، بلکه ديوبل عذرپه وجه يې تيمم وهلی وي لکه مرض مثلانوبياهم په دغه يوه تيمم سره دټولو جنازولمونځ ورته روادی.

اوکه يې دغه تيمم دجنازې دلمانځه دتېرېدلوپه وجه باندي وهلی وي نوبياکه ددغه جنازوپه مابين کي دومره وخت وي چي اودس پکښي وکړل سي نودغه اول تيمم يې باطليږي اودس به کوي ، اوکه اودس ونه کړي نوهر کله چي ددوهمي جنازې پرتېرېدلووېرېدی دوهم واربه بيا تيمم وهي[1].

---

[1] في التاتارخانية: ويصلي الرجل بتيممه ماشاء من الصلاة من الفرائض والنوافل والفوائت مالم يحدث او تزول العلة او يجد الماء . ( ج ۱ ص ۳۹۵ كتاب الطهارة الفصل الخامس في التيمم نوع آخرمن هذاالفصل في المتفرقات مسئلة ( ۹۱۰ )

وفي مجمع الانهر : إذا صلى بالتيمم فحضرت أخرى فإن كان بينهما مدة التوضؤ أعاد التيمم وإلا فلا وعليه الفتوى . ( ج ۱ ص ۶۳ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۸۱ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب في تقدير الغلوة ، والوالجية ج ۱ ص ۶۹ كتاب الطهارة الفصل السابع في التيمم )

## ۱۵۳ - دتیمم دوهلو طریقه

**الإستفتاء:** دتيمم دوهلو طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دتيمم دوهلو طريقه داده چي اول واربه دواړه لاسونه پرمځکه ياپرهغه شي باندي ووهي چي دمځکي دجنسه څخه وي لکه ريګ ياګچ مثلا اويابه پر هغه شي باندي لاسونه ووهي چي هغه دمځکي دجنس څخه نه وي خو ګرځ اوغبار باندي وي بيابه دغه دواړه لاسونه پربغل سره ووهي چي هغه زائده خاوره، يابل شی ورڅخه ليري سي، بيابه په دغه دواړولاسونوباندي ټول مخ په داسي طريقه سره مسح کړي چي هيڅ ځای پاته نه سي.

اوبيابه دوهم وارپه دغه طريقه سره لاسونه پرمځکه ياپرهغه شي باندي ووهي چي دمځکي دجنسه څخه وي اوپه هرلاس باندي به هغه بل لاس دڅنګلي سره په داسي طريقه سره مسح کړي چي هيڅ ځای پاته نه سي.

اوکه په لاس يامخ کي لږځای پاته سي نوتيمم نه دی صحيح[1].

---

[1] في الهندية : ومنها الضربتان يمسح باحداهما وجهه وبالاخرى يديه الى المرفقين ... استيعاب العضوين في التيمم واجب في ظاهر الرواية ... يتيمم بطاهر من جنس الارض ... ويجوز بالغبار مع القدرة على الصعيد . (ج ۱ ص ۲۶ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۴ كتاب الطهارة باب التيمم ، والبحر ج ۱ ص ۲۵۱ كتاب الطهارة باب التيمم )

## ۱۵۴ - په تيمم کي دساعت اوګوتمۍ دکښلو حکم

**الإستفتاء:** که ديوچا ساعت په لاس وي او يا يې ګوتمۍ په ګوته وي او تيمم وهي نو په دغه تيمم کي د ساعت او ګوتمۍ کښل لازم دي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

اصلا په تيمم کي دا لازمه ده چي دواړه لاسونه او مخ به تول مسح کوي نو په دغه وجه دالازمه ده چي دغه ساعت او ګوتمۍ به يا کاږي يا به يې د خپل ځای څخه ليري کوي او لاندي ځای به مسح کوي او خامخا دالازمه نه ده چي کاږي به يې[1].

## ۱۵۵ - پر مځکه دتيمم قدرت لري خو بياهم پر ګرځ باندي تيمم ووهي

**الإستفتاء:** که يو څوک پر مځکه باندي د تيمم وهلو قدرت ولري، سره له دغه بياهم پرهغه شي باندي تيمم ووهي چي دمځکي دجنس څخه نه وي، خو ګرځ (غبار) پر موجود وي، دغه تيمم صحيح دی او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه تيمم صحيح دی[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : مستوعبا وجهه حتى لو ترك شعره أو وترة منخره لم يجز ويديه فينزع الخاتم والسوار أو يحرك . ( ج ۱ ص ۱۷۴ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۹۵ كتاب الطهارة باب التيمم ، وحاشية الشرنبلالي على درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص۳۱ كتاب الطهارة باب التيمم )

[2] في الهندية : ويجوز بالغبار مع القدرة على الصعيد. كذا في السراج الوهاج وهو الصحيح . ( ج ۱ ص ۲۷ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۵۳ كتاب الطهارة باب التيمم ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۶ كتاب الطهارة باب التيمم )

## ۱۵۶ - دجنب سره اوبه وي اودس په کيږي خو غسل نه په کيږي

**الإستفتاء:** که جنب انسان داوبوڅخه ليري وي اودده سره دومره اندازه اوبه وي چي اودس په کېدای سي خو غسل نه په کيږي نودغه شخص به په دغه اوبو اودس تازه کوي اوکه به تيمم وهي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پردغه انسان باندي په دغه اوبوسره اودس تازه کول لازم نه دي بلکه تيمم به ووهي[1].

## ۱۵۷ - دجنابت دتيمم وروسته بې اودسه سو په لږ اوبو دي اودس وکړي

**الإستفتاء:** دجنب انسان سره چي لږ اوبه وي، غسل نه په کيږي اودی دجنابت دپاره تيمم ووهي، که وروسته ددغه انسان اودس مات سي نوآيا پرده باندي په دغو اوبو سره اودس کول لازم دي ، که به بيا هم تيمم ووهي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه لږ اوبو سره به اودس کوي، تيمم ورته روا نه دی[2].

---

[1] في ردالمحتار : اذا وجد ماء يكفيه للوضوء فقط انما يتوضأ به اذا احدث بعد تيممه عن الجنابه اما لو وجده وقت التيمم قبل الحدث لايلزمه عندنا الوضوء به عن الحدث الذي مع الجنابة . (ج ۱ ص ۱۸۷ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين ،كذا في المحيط ج ۱ ص ۱۷۶ كتاب الطهارة الفصل الخامس في التيمم ، والهندية ج ۱ ص ۳۰ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الثالث في المتفرقات )

[2] في الطحطاوي على الدرالمختار : الا اذا تيمم للجنابة ثم وقع منه حدث موجب للوضوء فانه يجب عليه الوضوء حينئذ لانه قدر على ماء كاف . ( ج ۱ ص ۱۳۴ كتاب الطهارة باب التيمم ، وكذا انظر مامر في الحوالة السابقة بدون الفصل )

**۱۵۸ - جنب چي تر تيمم وروسته پر اوبو قدرت پيدا کړي غسل لازم دی**

**الإستفتاء:** که جنب انسان دجنابت دپاره تيمم ووهي او وروسته يې پر اوبو باندي قدرت پيدا کړی ، نو دغسل کول پرلازم دي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

هغه زوړ دجنابت تيمم يې باطل سو غسل پرلازم دی[1].

**۱۵۹ - دجنابت تر تيمم او اودس وروسته پر ډيرو اوبو قدرت پيدا کړي**

**الإستفتاء:** که جنب انسان دجنابت دپاره تيمم ووهي،وروسته يې اودس مات سي اودی ددغه بې اودسۍ په وجه په لږو اوبو اودس تازه کړي يا تيمم ووهي اوتردغه وروسته بيا پردومره اندازه اوبو باندي قدرت پيدا کړي چي غسل په کيږي اوس پردغه انسان باندي دهغه زاړه جنابت په وجه دغسل کول لازم دي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

هو پردغه انسان باندي دهغه زاړه جنابت په وجه دغسل کول لازم دي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وناقضه ناقض الاصل ... وقدرة ماء ولو اباحة في صلاة كاف لطهره .

وفي ردالمحتار : قوله (كاف لطهره) اى للوضوء لومحدثا وللاغتسال لوجنبا . ( ج۱ ص ۱۸۶ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين، كذا في الطحطاوي على الدرالمختار ج ۱ ص ۱۳۴ كتاب الطهارة باب التيمم ، والفقه الحنفي في ثوبه الجديد ج ۱ ص ۱۶۲ احكام الطهارة سنن التيمم)

[2] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : فلو تيمم للجنابة ثم أحدث صار محدثا لا جنبا، فيتوضأ وينزع خفيه ثم بعده يمسح عليه ما لم يمر بالماء . = راتلونکی مخ

## ۱۶۰ - دجنابت اودبې اودسي تيمم فرق نه لري

**الإستفتاء:** دجنابت اودبې اودسي دتيمم فرق سته اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

فرق نه سره لري ددواړو دپاره په يوه طريقه سره تيمم وهل كيږي[۱].

## ۱۶۱ - ددښمن دبيري په سبب تيمم

**الإستفتاء:** ددښمن دبيري په سبب انسان ته تيمم روادى اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

هو ددښمن دبيري په سبب تيمم ورته روادى[۲].

---

وفي ردالمحتار : (قوله فيتوضأ إلخ) تفريع على التفريع: أي وإذا صار محدثا فيتوضأ ... إلا إذا مر بالماء الكافي للغسل فحينئذ لا يمسح بل يبطل تيممه من أصله ويعود جنبا على حاله الأول؛ فلو جاوز الماء ولم يغتسل يتيمم للجنابة . ( ج ۱ ص ۱۸۶ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۱۷۶ كتاب الطهارة فصل في شرائط ركن التيمم حكم المحبوس في المصرفي مكان طاهر )

[۱] في ملتقى الابحرعلى هامش مجمع الانهر : ويستوي فيه الجنب والمحدث والحائض والنفساء . ( ج ۱ ص ۶۲ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۵۵ كتاب الطهارة باب التيمم ، وردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۴ كتاب الطهارة باب التيمم )

[۲] في الهندية : ويتيمم لخوف سبع او عدو سواء كان خائفا على نفسه او على ماله . ( ج ۱ ص ۲۷ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۲ كتاب الطهارة باب التيمم ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۹ كتاب الطهارة باب التيمم )

## ۱۶۲ - ددښمن دبيري په تيمم سره دکول سوي لمونځ راګرځول

**الإستفتاء:** كه په يوځاى كي اوبه وي خويوځوک ددښمن دبيري په وجه باندي په تيمم سره لمونځ وکړي نوتردغه وروسته بيادغه لمونځ په اودس سره راګرځول غواړي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه داسي وي چي دغه انسان ته دښمن وعيد (تهديد ) وركړي لكه ورته ووايي چي كه اوبوته راغلې وژنم دي، نوپه دغه وخت كي چي دغه انسان په تيمم سره كوم لمونځ وكړي دغه راګرځول غواړي.

اوكه ددښمن دخواوعيدنه وي بلكه دغه شخص خپله بېريږي چي كه اوبوته ورغلم نودښمن به ضرر راورسوي نوپه دغه وخت كي چي په تيمم سره كوم لمونځونه اداكړي دغه لمونځونه بيارا ګرځول نه غواړي[1].

## ۱۶۳ - ديخ په وجه دجنابت، يابې اودسۍ دپاره تيمم وهل

**الإستفتاء:** ديخ په وجه جنب يابې اودسه انسان ته تيمم روادى اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

بې اودسه انسان ته ديخ په وجه تيمم روانه دى اوجنب كه ګرمي اوبه نه سي پيداكولاى اونه داسي شى پيداكولاى سي چي اوبه په ګرمي كړي اونه داسي يوه

---

[1] في ردالمحتار : كما قالوا لو تيمم لخوف العدو، فإن توعده على الوضوء أو الغسل يعيد؛ لأن العذر أتى من غير صاحب الحق، ولو خاف بدون توعد من العدو فلا؛ لأن الخوف أوقعه الله تعالى في قلبه، فقد جاء العذر من قبل صاحب الحق فلا تلزمه الإعادة . ( ج ١ ص ١١٥ كتاب الطهارة قبيل سنن الغسل ، كذا في البحر ج ١ ص ٢٤٨ كتاب الطهارة باب التيمم)

جامه پيداکولای سي چي تر غسل وروسته ځان په تودکړي اونه داسي ځای پيداکولای سی چي ځان پکښي تودکړي لنډه دا چي په هيڅ طريقه باندي ديخ ښخه ځان ساتلای نه سي اوغالب ګمان يې داوي چي ديخ په وجه به مړسي، يابه يې څه اندامونه هلاک سي اويابه مريض سي نودغه جنب ته ديخ په وجه تيمم روادی اوکه په يوه طريقه باندي يې ديخ ښخه ځان ساتلای سوای نوتيمم ورته روانه دی[1].

## ۱۶۴ - پراوداسه قدرت لري خوډاکټريې داوداسه څخه منع کړي

**الإستفتاء:** که يوڅوک پر اودس باندي قدرت ولري خو ډاکټر يې داوداسه څخه منع کړي اويادغه انسان دخپلي تجربې په وجه پردې بېريږي چي مرض به يې ډېرسي، يابه دمرض جوړېدل وځنډيږي دغه انسان ته تيمم روادی اوکه نه ؟

---

(۱) في مراقي الفلاح : و" من الأعذار "برد يخاف منه" بغلبة الظن "التلف" لبعض الأعضاء "أو المرض" إذا كان خارج المصر يعني العمران ولو القرى التي يوجد بها الماء المسخن أو ما يسخن به سواء كان جنبا أو محدثا وإذا عدم الماء الساخن أو ما يسخن به في المصر فهو كالبرية. وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "سواء كان جنبا أو محدثا" هذا ما ذكره السرخسي واختاره في الأسرار وقال الحلواني لا رخصة للمحدث بذلك السبب إجماعا قال في الخانية والحقائق وهو الصحيح أي لعدم إعتبار ذلك الخوف بناء على أنه مجرد وهم إذ لا يتحقق ذلك في الوضوء عادة كما في الفتح والإيضاح وإنما الخلاف في الجنب الصحيح في المصر إذا خاف بغلبة ظن على نفسه مرضا لو اغتسل بالبارد ولم يقدر على ماء مسخن ولا ما به يسخن فقال الإمام: يجوز له التيمم مطلقا وخصاه بالمسافر لأن تحقق هذه الحالة في المصر نادر والفتوى على قول الإمام فيها بل في كل العبادات . ( ص ۹۲ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۴۶ كتاب الطهارة باب التيمم )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دغه ډاكټرمسلمان وي پوه وي، كافريافاسق نه وي نوددغه ډاكټرپه خبره سره دغه انسان ته تيمم روادى.

اوكه ډاكټرناپوه، يافاسق ياكافروي نوبيادده دقول په وجه تيمم روانه دى.

اوكه دغه انسان دخپلي صحيح تجربې په وجه پردې بېرېږي چي مرض به يې ډېرسي، يابه ددغه مرض جوړېدل وځنډېږي نو دغه انسان ته تيمم روادى[1].

## ۱۶۵ - كه دتيمم په نيت په خاوروكي ولغړي

**الإستفتاء:** كه يو څوک دتيمم په نيت په خاوروكي ځان ولغړوي دغه تيمم بلل كيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دتيمم په نيت په داسي طريقه په خاوروكي ولغړي چي ټول مخ اوهم دواړه لاسونو ته يې خاوره ورسيږي اوهيڅ ځاى پكښې پاته نه سي نوپه دغه سره تيمم صحيح كيږي اوكه داسي نه وي بيانه صحيح كيږي[2].

---

[1] في الهندية : ولو كان يجد الماء إلا أنه مريض يخاف إن استعمل الماء اشتد مرضه أو أبطأ برؤه يتيمم لا فرق بين أن يشتد بالتحرك كالمشتكي من العرق المدني والمبطون أو بالاستعمال كالجدري ونحوه ويعرف ذلك الخوف إما بغلبة الظن عن أمارة أو تجربة أو إخبار طبيب حاذق مسلم غير ظاهر الفسق . ( ج ۱ ص ۲۸ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الأول في أمور لا بد منها في التيمم ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۱ كتاب الطهارة باب التيمم ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۵۹ كتاب الطهارة باب التيمم )

[2] في المبسوط للسرخسي : وإذا أراد التيمم فتمعك في التراب ودلك بذلك جسده كله فإن كان أصاب التراب وجهه وذراعيه وكفيه أجزأه . ( ج ۱ ص ۲۶۳ كتاب الطهارة باب التيمم . كذا في

### ۱۶۶ - په تيمم لمونځ وکړي بيا په دغه وخت کي پر اوبو قادر سي

**الإستفتاء**: که يوڅوک په تيمم سره لمونځ وکړي اوبيا ددغه وخت په اخيرکي پر اوبو باندي قدرت پيدا کړي نو دغه لمونځ به بيرته راګرځوي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغه لمونځ راګرځول نه غواړي[1].

### ۱۶۷ - شپانه ته اوبه نژدې وي خو سر خېل يې اوبو ته نه پرېږدي

**الإستفتاء**: يو شپانه ته چي اوبه تر يوه ميل ورنژدې وي خو مالک (سرخېل) يې اوبو ته نه ورپرېږدي ايا دغه شپانه ته تيمم روادی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغه شپانه ته په اصل حقيقت کي تيمم نه دی روا ، البته چي سرخېل يې اوبو ته نه پرېږدي نو اوس دي تيمم ووهي لمونځ دي وکړي، خو بيا چي اوبو ته ورسيږي دغه لمونځونه به راګرځوي چي په دغه تيمم يې کړي وي، که لږ وي اوکه ډېر وي[2].

---

التاتارخانية ج ۱ ص ۳۶۲ کتاب الطهارة الفصل الخامس في التيمم مسئلة ( ۷۴۲ ) وردالمحتار ج ۱ ص ۱۶۹ کتاب الطهارة باب التيمم )

[1] في المبسوط للسرخسي : وإن وجد الماء بعد الفراغ من الصلاة والسلام لم تلزمه الإعادة . (ج ۱ ص ۲۴۹ کتاب الصلاة باب التيمم ، كذا في شرح المنية ص ۸۱ فصل في التيمم ، والبدائع ج ۱ ص ۱۹۲ کتاب الطهارة فصل في بيان ماينقض التيمم ، مبحث في من وجد نبيذ التمر )

[2] في البحر : أجير لا يجد الماء إن علم أنه يجده في نصف ميل لا يعذر في التيمم، وإن لم يأذن له المستأجر يتيمم ويصلي ثم يعيد . ( ج ۱ ص ۲۴۸ کتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۲ کتاب الطهارة باب التيمم )

**۱۶۸ - خپله اودس نه سي کولای په بل به اودس کوي که به تيمم وهي**

**الإستفتاء:** که يومعذورانسان پخپله اودس نه سي تازه کولای لکه مريض وي نودغه انسان به تيمم وهي اوکه به په بل چااودس تازه کوي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که داسي څوک وي چي شرعاددغه معذور اطاعت پرلازم وي لکه اولاد ، اوياداسي څوک وي چي شرعاخودده اطاعت پرلازم نه وي خو که دی کومک ورڅخه وغواړي نوهغه کومک ورسره کوي ، لکه دنارينه دپاره خپله ښځه يادښځي دپاره خپل خاوند، ياورور، يابل څوک اوياداسي مزدور پيداکولای سي چي هغه په يومناسبه مزدوري باندي ددغه معذور خدمت کوي چي فقهاء رحمهم الله تعالى په اجرمثل باندي تعبيرورڅخه کوي اودغه معذور ددغه مزدورۍ پرپيسوباندي قدرت ولري نوپه دغه درې سره صورتونو کي ددغه معذوردپاره تيمم روانه دی، په دغه ذکرسويو کسانو باندي به خپل اودس تازه کوي.

اوکه دغه مخکني کسان يعني اولاد، ښځه، خاوند او هغه مزدور چي په مناسبه مزدوري باندي ددغه معذور دغه خدمت وکړي، پيدانه سول اويا پيداييې کړل خو په اودس کي يې کومک نه ورسره کوي نوپه دغه حالت کي بيادغه معذورته دعجزپه وجه تيمم روادی[1].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : (أو لمرض) يشتد أو يمتد بغلبة ظن أو قول حاذق مسلم ولو بتحرك، أو لم يجد من توضئه، فإن وجد ولو بأجرة مثل وله ذلك لا يتيمم في ظاهر المذهب كما في البحر . وفيه: لا يجب على أحد الزوجين توضيء صاحبه وتعهده . = راتلونکی مخ

## ١٦٩- مريض ته اوبه تاوان نه كوي حركت كول تاوان ورته كوي

**الإستفتاء:** كه يومريض داسي وي چي اوبه تاوان نه ورته كوي خو داوداسه، ياغسل دپاره چي حركت كوي دغه حركت تاوان ورته كوي، دغه مريض ته تيمم روادى اوكه نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه مريض ته تيمم روادى[1].

---

وفي ردالمحتار : حاصل ما فيه أنه إن وجد خادما: أي من تلزمه طاعته كعبده وولده وأجيره لا يتيمم اتفاقا وإن وجد غيره ممن لو استعان به أعانه ولو زوجته فظاهر المذهب أنه لا يتيمم أيضا بلا خلاف . ( ج ١ ص ١٧١ كتاب الطهارة باب التيمم )

وفي البحر : مريض إذا لم يكن عنده أحد يوضئه إلا بأجر جاز له التيمم عند أبي حنيفة قل الأجر أو كثر وقالا لا يتيمم إذا كان الأجر ربع درهم اه والظاهر عدم الجواز إذا كان قليلا لا إذا كان كثيرا لما عرف من مسألة شراء الماء إذا وجده بثمن المثل .

وفي منحة الخالق على البحر : (قوله: والظاهر عدم الجواز إذا كان قليلا إلخ) قال في النهر وكلامه يعطي أن القليل ثمن المثل والكثير ما زاد عليه وينبغي أن يقيد بذلك إطلاق ما في التجنيس فلا يلزم الاستئجار حال وجود الماء إذا طلب أكثر من أجرة المثل اه أقول: وهذا الذي استظهره شارح المنية العلامة ابن أمير حاج أخذا مما اتفقت عليه كلمتهم في ماء الوضوء إذا كان يباع ولا يوجد مجانا . ( ج ١ ص ٢٤٦ كتاب الطهارة باب التيمم )

[1] في الهندية : ولو كان يجد الماء إلا أنه مريض يخاف إن استعمل الماء اشتد مرضه أو أبطأ برؤه يتيمم لافرق بين أن يشتد بالتحرك كالمشتكي من العرق المدني والمبطون أو بالاستعمال كالجدري ونحوه . ( ج ١ ص ٢٨ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الاول في امور لابد منها في

**١٧٠-دجنابت تيمم دهغه زخم په وجه چي داوبو څخه نه ساتل کيږي**

**الإستفتاء:** كه ديو جنب انسان پربدن باندي لږځای زخمي وي، اوبو تاوان ورته كوي، خودغه زخم پرداسي ځای باندي وي چي كه دی دبدن پرهغه جوړه حصه باندي اوبه اچوي دزخم خوندي كېدل امكان نه لري،بلكه پردغه زخم باندي خامخا اوبه راځي نودغه شخص به غسل كوي اوكه تيمم ورته روادی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه شخص ته تيمم روادی[1].

**١٧١- اودس نه لري ،جامه هم مرداره وي اوبه لږوي يوكار په كيږي**

**الإستفتاء:** كه يو څوك اودس هم نه لري اوپرجامه يې هم دومره مرداري وي چي لمونځ نه ورسره صحيح كيږي.

اودده سره دومره اندازه اوبه وي چي يوازي اودس هم په كيږي ، اويوازي جامه هم په پرېولل كيږي اودواړه كارونه نه په كيږي نو اوس به دغه انسان څه كوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه انسان به په دغه اوبو سره جامه پرېولي اوداودس پرځای باندي به تيمم ووهي خو دالازمه ده چي اول واربه په دغه اوبو سره جامه پرېولي اووروسته به

---

التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ١٧١ كتاب الطهارة باب التيمم والهداية ج ١ ص ٥٢ كتاب الطهارة باب التيمم )

[1] في ردالمحتار : (قوله وبعكسه) وهو ما لو كان أكثر الأعضاء صحيحا يغسل إلخ، لكن إذا كان يمكنه غسل الصحيح بدون إصابة الجريح وإلا تيمم حلية، فلو كانت الجراحة بظهره مثلا وإذا صب الماء سال عليها يكون ما فوقها في حكمها فيضم إليها . ( ج ١ ص ١٨٨ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين )

بیا تیمم ووهي؛ ځکه که اول وارتیمم ووهي اووروسته بیا په دغه اوبوسره جامه پرېولي نو دغه مخکي تیمم یې نه صحیح کیږي، بیرته به وروسته نوی تیمم وهي.

اوکه په دغه اوبوسره اودس تازه کړي او وروسته په مرداره جامه سره لمونځ اداکړي نو لمونځ یې صحیح دی خو دغه انسان ګنهګار دی[1].

## ۱۷۲ - که بندي په محبس کي وي دښمن یې اوبوته نه پرېږدي

**الإستفتاء:** که یو بندي په محبس کي وي اودښمن یې اوبوته نه پرېږدي چي اودس، یا غسل وکړي نو دغه بندي به څه کوي؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه محبس داوبو څخه دیوه میل په اندازه لیري وي نو دغه بندي به خپل لمونځونه په تیمم سره وکړي اودغه لمونځونه بیا راګرځول نه غواړي.

اوکه په دغه محبس کي اوبه وي اویادغه محبس ته نژدې اوبه وي خو دښمن دغه بندي اوبوته نه پرېښووي نو په دغه صورت کي به دغه بندي خپل لمنځونه په

---

[1] في الهندية : مسافر محدث نجس الثوب معه ماء يكفي لأحدهما يغسل به النجاسة ويتيمم للحدث ولو تيمم أولا ثم غسل النجاسة يعيد التيمم . ( ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الثاني فيما ينقض التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۰ كتاب الطهارة باب التيمم)

وفي خلاصة الفتاوى : واذا كان مع الرجل ماء قدر ما يتوضأ وهو محدث وفي ثوبه دم اكثر من قدر الدرهم فانه يغسل الدم بذلک الماء ويتيمم للحدث ولو توضأ بالماء وصلى في ثوب نجس جاز ويكون مسيأ . ( ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة المار الموضوع في الفلوات في الجب وغيره ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۷۰ كتاب الطهارة باب التيمم )

تیمم سره وکړي خوهرکله چي پراوبوباندي قدرت پیداکړي نووددغه لمنځونو راګرځول پرلازم دي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : صلى المحبوس بالتيمم، إن في المصر أعاد وإلا لا.

وفي ردالمحتار : (قوله أعاد) ؛ لأنه مانع من قبل العباد (قوله وإلا لا) عللوه بأن الغالب في السفر عدم الماء. قال في الحلية: وهذا يشير إلى أنه لو كان بحضرته أو بقرب منه ماء تجب الإعادة لتمحض كون المنع من العبد . ( ج ١ ص ١٨٥ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين ، كذا في الهندية ج ١ ص ٢٨ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الاول في امور لابد منها في التيمم ، والمحيط البرهاني ج ١ ص ١٦٤ كتاب الطهارات الفصل الخامس في التيمم )

# الفصل الثاني في النواقض

## ( دوهم فصل دتيمم دماتونکوشيانوپه بيان کي دی )

### ۱۷۳ - تيمم والا دخوب په حال کي پراوبوتېرسي تيمم يې نه ماتيږي

**الإستفتاء:** که يوچاتيمم وهلی وي اوبياپراوبوباندي په داسي حال کي تېرسي چي په داسي خوب بيده وي چي هغه داودس ماتونکی نه بلل کيږي نواوس ددغه شخص تيمم ددغه اوبوپه وجه مات دی اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دراجح قول پربنا پر اوبودتېرېدلوپه وجه ددغه انسان تيمم مات نه بلل کيږي [1].

### ۱۷۴ - تيمم والا اودس شروع کړي اوبه داوس په مابين کي ختمي سي

**الإستفتاء:** که يوتيمم والا انسان اوبه پيداکړي ، اودس په شروع کړي خوداوداسه ترپوره کولودمخه اوبه ختمي سي مثلايوه پښه لا پاته وي نواوس ددغه اوبودقدرت په وجه ددغه انسان هغه زوړتيمم مات سو، بيرته به نوی تيمم وهي اوکه نه ؟

---

[1] في الهندية : ولو مر بماء وهو نائم فالأصح أنه لا ينتقض عند الكل . ( ج ١ ص ٣٠ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الثاني فيما ينقض التيمم ، كذا في البحر ج ص ٢٦٨ كتاب الطهارة باب التيمم ، وردالمحتار ج ١ ص ١٨٨ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه اوبه دومره اندازه وي چي داوداسه اندامونه يويووارپه پرېولل کيږي نوددغه اوبودقدرت په وجه باندي تيمم مات بلل کيږي.

اوکه دغه اوبه تردغه کمي وي بياهغه تيمم نه ماتيږي نوکه دغه شخص داوداسه هغه پرېولي اندامونه يويووارپرېولي وي اوبياهم اوبه کمي سوي وي نوپه دغه صورت کي دده هغه زوړتيمم مات نه دی.

اوکه ده هغه پرېولي اندامونه دوه، يادرې واره پرېولي وي اوپه دغه وخت کي اوبه تمامي سوي وي بيايې هغه زوړتيمم مات دی بيرته به نوی تيمم ووهي[1].

## ۱۷۵- که تيمم والا اوبه ووينې خوپراستعمال يې قدرت نه لري

**الإستفتاء:** که يوتيمم والانسان اوبه ووينې خو پراستعمال باندي يې قدرت نه ولري، ايادغه اوبوپه ليدلوسره تيمم ماتيږی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه سره تيمم نه ماتيږي[2].

---

[1] في البحر : فلو وجد المتيمم ماء فتوضأ به فنقص عن إحدى رجليه إن كان غسل كل عضو ثلاثا أو مرتين انتقض تيممه، وهو المختار أو مرة لا ينتقض؛ لأنه في الأول وجد ماء يكفيه إذ لو اقتصر على المرة كفاه . ( ج ۱ ص ۲۶۶ كتاب الطهارة باب التيمم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۸۷ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين )

[2] في الهندية : وإن مر على الماء وهو في موضع لا يستطيع النزول إليه لخوف عدو أو سبع لم ينتقض . ( ج ۱ ص ۳۰ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الثاني فيما ينقض التيمم ، كذا

## ۱۷۶- داوبو دلیر یوالي په وجه تیمم ووهي بیا اوبوته ترمیل نژدې سي

**الإستفتاء:** که یوچا داوبوڅخه دلیري والي په جه باندي تیمم وهل وي اووروسته بیادغه انسان اوبو ته دیوه میل ترانداز ور نژدې سي خو ور رسېدلی لا نه وي نوایا په دغه وخت کي دغه تیمم مات بلل کیږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په دغه وخت کي دغه تیمم مات بلل کیږي که څه هم اوبوته ور رسېدلی نه وي[1].

---

في البحر ج ١ ص ٢٦٦ كتاب الطهارة باب التيمم ، ومجمع الانهر ج ١ ص ٦٤ كتاب الطهارة باب التيمم )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والحاصل أن كل ما يمنع وجوده التيمم نقض وجوده التيمم (وما لا) يمنع وجوده التيمم في الابتداء (فلا) ينقض وجوده بعد ذلك التيمم؛ ولو قال وكذا زوال ما أباحه: أي التيمم لكان أظهر وأخصر، وعليه فلو تيمم لبعد ميل فسار فانتقص انتقض فليحفظ . ( ج ١ ص ١٨٨ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين ، كذا في الهندية ج ١ ص ٣٠ كتاب الطهارة الباب الرابع في التيمم الفصل الثاني فيما ينقض التيمم ، والبحر ج ١ ص ٢٦٧ كتاب الطهارة باب التيمم )

# باب المسح على الخفين

## الفصل الاول في شرائط الجواز

## (اوفصل دمسح درواوالي دشرطونوپه بيان کي دی)

### ۱۷۷ - پرموزو مسح کول افضل دي اوکه دپښو پرېولل

**الإستفتاء:** پرکومو موزو باندي چي مسح کول رواوي پردغه موزو باندي مسح کول ښه کار دی اوکه دپښو پرېولل ښه کار دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه حالت کي ښه خبره داده چي پښې پريولي[1] .

### ۱۷۸ - دموزودمسح طريقه

**الإستفتاء:** پر موزوباندي مسح څنګه کول کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پر موزو باندي په داسي طريقه سره مسح کول کيږي چي دلاس دري ګوتي به دموزې پر مخ باندي دګوتو خواته هواري کښېږدي، وروسته به يې ولوړ طرف

---

[1] في الهندية : المسح على الخفين رخصة ولو أتى بالعزيمة بعد ما رأى جواز المسح كان أولى .( ج ١ ص ٣٢ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين ، كذا في البحر ج ١ ص ٢٨٩ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ١٩٣ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب في المسح على الخف الحنفي القصير عن الكعبين إذا خيط بالشخشير )

ته راكش كړي اوتردغه بنه خبره لا داده چي ټول لاس پر پښه باندي كښېښودي اوبيايې لوړ طرف ته كش كړي[1] .

## ۱۷۹ - دموزو په مسح كي دڅومره ځاى مسح لازمه ده

**الإستفتاء:** چي يوڅوک پرموزو باندي مسح كوي نوڅومره اندازه مسح لازمه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دهري موزې پر مخ باندي دلاس دكوچنيو درو ګوتو په اندازه ځاى باندي مسح لازمه ده[2].

---

[1] في الهندية : وكيفية المسح أن يضع أصابع يده اليمنى على مقدم خفه الأيمن ويضع أصابع يده اليسرى على مقدم خفه الأيسر ويمدهما إلى الساق فوق الكعبين ويفرج بين أصابعه ... ولو وضع الكف ومدها أو وضع الأصابع ومدها كلاهما حسن والأحسن أن يمسح بجميع اليد . ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، والبحر ج ۱ ص ۳۰۳ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[2] في الهندية : (ومنها) أن يكون الممسوح من ظاهر كل خف مقدار ثلاث أصابع اليد على الأصح . هكذا في محيط السرخسي أصغرها . ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۹ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ،و درر الحكام شرح غرر الاحكام مع حاشية الشرنبلالي ج ۱ ص ۳۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

### ۱۸۰ - يوه موزه ددوګوتو اوبله دڅلور ياپنځوګوتو په اندازه مسح کړي

**الإستفتاء:** که يوڅوک ديوې موزې څخه د دوو ګوتوپه اندازه ځای مسح کړي اود هغه بلې موزې څخه دڅلورو ياپنځو ګوتو په اندازه ځای باندي مسح وکړي دغه مسح صحيح ده او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه مسح نه ده صحيح ځکه په مسح کي دا شرط دی چي دهري موزې څخه به د درو ګوتوپه اندازه ځای مسح کوي[1].

### ۱۸۱ - دګوتوپه سرونوسره پرموزه مسح کول

**الإستفتاء:** که يوچا پر موزه باندي دګوتو په سرونو سره مسح وکړه دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه ګوتي دومره ډېر لوندوالی ولري چي اوبه تر څڅېږي نوپه دغه سره مسح روا ده.

اوکه دګوتو لوندوالی تردغه کم وي بيا په دغه طريقه سره مسح روا نه ده[2].

---

[1] في الهندية : ولو مسح على رجل قدر أصبعين وعلى أخرى قدر خمسة لم يجز . ( ج ۱ ص ۳۲ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۹ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، و درر الحكام شرح غررالاحكام ج ۱ ص ۳۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين)

[2] في الهندية : وإذا مسح خفه برءوس أصابعه فإن كان الماء متقاطرا يجوز وإلا لا . ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في

## ۱۸۲ - که پر موزه باندي ګوتي کښېږدي کش يې نه کړي

**الإستفتاء:** که يو څوک دلاس درې ګوتي د موزې پر مخ باندي په اوږدوالي او يا په برداروالي باندي کښېږدي او کش يې نه کړي په دغه طريقه سره مسح صحيح کيږي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه سره مسح صحيح ده خو دغه عمل د سنت طريقې خلاف کار دی[1].

## ۱۸۳ - په يوه ګوته پر موزه دمسح حکم

**الإستفتاء:** په يوه ګوته سره پر موزه باندي مسح روا ده او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په يوه ګوته په داسي طريقه سره مسح وکړي چي ګوته يو وار لونده کړي او بيا يې پرموزه باندي درې واره راکش کړي نو په دغه طريقه سره مسح روانه ده.

اوکه په داسې طريقه سره مسح وکړي چي يو وار ګوته لونده کړي، پر موزه يې راکش کړي اوبيادوهم وار او دريم وار جلا جلا بيرته ګوته په اوبو سره لونده

---

جواز المسح ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ١٩٩ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، والبحر ج ١ ص ٣٠٢ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[1] في الهندية : ولو مسح بثلاث أصابع موضوعة غير ممددة يجوز ويكون مخالفا للسنة ... هذا بيان السنة حتى لو بدأ من الساق إلى الأصابع أو مسح عليهما عرضا أجزأه . ( ج ١ ص ٣٣ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في الجوهرة النيرة ج ١ ص ٣٣ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والبدائع ج ١ ص ٨٧ كتاب الطهارة مطلب مقدار المسح على الخفين )

کړي او د موزې پرجلاجلا ځای یې راکش کړي په دغه طریقه سره بیامسح صحیح ده[1].

## ۱۸۴ - دموزودمسح موده

**الإستفتاء:** دموزو دمسح موده څومره ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دمقیم انسان دپاره یوشباروز اودمسافر دپاره درې شباروزه دموزودمسح موده ده[2].

## ۱۸۵ - دمسح په شروع کې مقیم بیا مسافر سي څوورځې مسح و کړي

**الإستفتاء:** که یوڅوک دمسح دشروع کولو په وخت کې مقیم وي، وروسته سفر شروع کړي نودغه انسان ته تردرې شباروزه پورې پر موزو باندې مسح رواده اوکه نه ؟

---

[1] في الهندية : حتى لو مسح بأصبع واحدة من غير أن يأخذ ماء جديدا لا يجوز ولو مسح بها ثلاث مرات في ثلاثة مواضع وأخذ لكل مرة ماء جديدا جاز . ( ج ۱ ص ۳۲ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۹ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، والبحر ج ۱ ص ۳۰۲ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[2] في الهداية : و يجوز للمقيم يوما وليلة وللمسافر ثلثة أيام ولياليها لقوله عليه السلام يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها . ( ج ۱ ص ۵۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۹۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه شخص دموزو دیوه شباروز مودې تر پوره کېدلو وروسته سفر شروع کړي نودغه شخص ته تر درې شباروزه پوري مسح روا نه ده، موزې به کارې پښې به پرېولي.

اوکه دغه شخص دموزو دیوه شباروز مودې تر پوره کېدلو دمخه سفر شروع کړي نوبیا ده ته تر درې شباروزه پوري مسح روا ده[1].

## ۱۸۶ - دمسح په شروع کي مسافر بیا مقیم سي څوورځي مسح وکړي

**الإستفتاء:** که یوڅوک دموزو دمسح دشروع په وخت کي مسافر وي، وروسته بیا مقیم سي نودغه انسان ته څومره وخت پر موزوباندي مسح روا ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه انسان دموزو دمسح د درې شباروزه مودې څخه دیوه شباروز ترپوره کېدلو دمخه مقیم سي نودیوه شباروز تر پوره کېدلو پوري مسح ورته روا ده.

---

[1] في الهداية : ومن ابتدأ المسح وهو مقيم فسافر قبل تمام يوم وليلة مسح ثلاثة أيام ولياليها " عملا بإطلاق الحديث ولأنه حكم متعلق بالوقت فيعتبر فيه آخره بخلاف ما إذا استكمل المدة للإقامة ثم سافر لأن الحدث قد سرى إلى القدم والخف ليس برافع " ولو أقام وهو مسافر إن استكمل مدة الاقامة نزع " لأن رخصة السفر لا تبقى بدونه " وإن لم يستكمل أتمها " لأن هذه مدة الاقامة وهو مقيم . ( ج ۱ ص ۶۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۱۱ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۳ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

اوکه دموزو دمسح د درې شباروزه موده ځخه دیوه شباروز ترپوره کېدلو وروسته مقیم سي نوبیاددغه انسان دموزو مسح ماته بلل کیږي اودا لازمه ده چي موزې به کاږي، پښې به پرېولي[1].

## ۱۸۷ - دموزودمسح یویادرې شباروزه دکوم وخته حسابیږي

**الإستفتاء:** دمقیم دپاره چي یوشباروزپرموزو مسح رواده اودمسافر دپاره درې شباروزه، ایادغه دموزو د په پښوکولودوخت ځخه یوشباروز یادرې شباروزه حسابیږي اوکه دبې اودسۍ دوخت ځخه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دبې اودسۍ دوخت ځخه حسابیږي، یعني هرکله چي دغه انسان دموزوپه پښوکولووروسته بې اودسه سوددغه وخت ځخه یو شباروز، یادرې شباروزه حسابیږي مثلا یوچا سهاراودس وکړي، موزې یې په پښو کړې اوبیادماځیګر په وخت کي بې اودسه سو نودغه انسان ترسباماځیګر ه پوري مسح کولای سي که مقیم وي.

---

[1] في الهداية : ومن ابتدأ المسح وهو مقيم فسافر قبل تمام يوم وليلة مسح ثلاثة أيام ولياليها عملا بإطلاق الحديث ولأنه حكم متعلق بالوقت فيعتبر فيه آخره بخلاف ما إذا استكمل المدة للإقامة ثم سافر لأن الحدث قد سرى إلى القدم والخف ليس برافع " ولوأقام وهو مسافر إن استكمل مدة الاقامة نزع " لأن رخصة السفر لا تبقى بدونه " وإن لم يستكمل أتمها " لأن هذه مدة الاقامة وهو مقيم . ( ج ۱ ص ۶۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ،كذا في البحر ج ۱ ص ۳۱۱ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۳ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

اوکه مسافروي نو دځلورمي ورځې ترماځيګره پوري مسح کولای سي[1].

## ۱۸۸- دمعذورلکه سلسل البول دپاره پرموزوباندي مسح کول

**الإستفتاء:** هغه معذور چي دوخت په وتلوسره يې اودس ماتيږي دغه هم پرموزوباندي يوشباروز، يادرې شباروزه مسح کولای سي اوکه دوخت تروتلو وروسته چي نوی اودس کوي نوموزې به کاږي او پښې به پرېولي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که داسي وي چي ددغه معذور داوداسه کولواودموزوپه پښوکولوپه وخت کي دده عذر بندوي اودموزو ترپه پښوکولووروسته يې بيرته عذر روان سي نودغه معذورپردغه موزوباندي دجوړانسان په شان يوشباروز، يادرې شباروزه مسح کولای سي.

اوکه داسي وي چي داودس تازه کولو اودموزوپه پښوکولودواړوپه وخت کي اويايوازي داودس تازه کولوپه وخت کي اويايوازي دموزوپه پښوکولوپه وخت کي دده عذر روان وي نوپه دغه درې سره صورته کي دغه معذورکه په دغه وخت کي دننه بل اودس تازه کوي نوپردغه موزوباندي مسح کولای سي اوهرکله

[1] في الهندية : وابتداء المدة يعتبر من وقت الحدث بعد اللبس حتى إن توضأ في وقت الفجر ولبس الخفين ثم أحدث وقت العصر فتوضأ ومسح على الخفين فمدة المسح باقية إلى الساعة التي أحدث فيها من الغد إن كان مقيما هكذا في المحيط ومن اليوم الرابع إن كان مسافرا . ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۹۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، وردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۹ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الاان يقال )

چي وخت ووزي اودده اودس مات وبلل سي نوبياچي نوی اودس تازه کوي موزې به کاږي پښې به پرېولي پردغه موزوباندي مسح ورته روانه ده[۱].

## ۱۸۹ - اول پښې پرېولي موزې په پښوکړي وروسته اودس پوره کړي

**الإستفتاء:** که يوڅوک اول وارپښې پرېولي، موزې په پښوکړي اووروسته بيانوراودس پوره کړي، ايادغه شخص ته پردغه موزوباندي مسح کول روادي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه شخص ته ترموزو په پښوکولووروسته، داوداسه ترپوره کولو دمخه داوداسه يوماتونکی شی پېښ سوی نه وي نوده ته پردغه موزوباندي مسح کول روادي.

اوکه داوداسه ترپوره کولودمخه داوداسه يوماتونکی شی ورته پېښ سوی وي نوبيا پردغه موزوباندي مسح ورته روا نه ده[۲].

---

[۱] في ردالمحتار : ثم إنه لا يخلو إما أن يكون العذر منقطعا وقت الوضوء واللبس معا أو موجودا فيهما أو منقطعا وقت الوضوء موجودا وقت اللبس أو بالعكس فهي رباعية ففي الأول حكمه كالأصحاء لوجود اللبس على طهارة كاملة فمنع سراية الحدث للقدمين وفي الثلاثة الباقية يمسح في الوقت فقط فإذا خرج نزع وغسل . ( ج ۱ ص ۱۹۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الاان يقال ، كذا في البحر ج ۱ ص ۲۹۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والبدائع ج ۱ ص ۸۰ كتاب الطهارة مطلب بيان مدة المسح )

[۲] في الهندية : (ومنها) أن يكون الحدث بعد اللبس طارئا على طهارة كاملة كملت قبل اللبس أو بعده . ( ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في

**۱۹۰ - دکوم چا چي پښه پرې وي دهغه دپاره دمسح حکم**

**الإستفتاء:** که ديو چا يوه پښه پرې وي دغه انسان ته پرموزو باندي مسح رواده او که نه؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دد غه انسان پښه تربجلکي لوړه پرې سوې وي نو پردغه انسان باندي ددغه پرې پښې نه پرېولل لازم دي او نه مسح پرلازمه ده او دهغه بلي پښې پرموزه باندي مسح ورته رواده.

او که ددغه انسان پښه تربجلکي لوړه نه وي پرې سوې نو بيا که ددغه پښې دمخ حصه د درو ګوتو په اندازه باندي پاته وي نو دغه انسان ته پرموزو باندي مسح رواده خو پدې شرط چي ددغه موزې دمخ پرهغه حصه باندي مسح وکړي چي په هغه حصه کي د پښې دغه پاته ځای موجود وي؛ ځکه دموزې پرهغه خالي ځای باندي مسح نه صحيح کيږي چي په هغه حصه کي پښه نه وي موجوده.

او که ددغه پښې دمخ حصه د درو ګوتو په اندازه نه وي پاته نو بيا دغه انسان ته پرموزو باندي مسح نه ده روا ددغه پښې پاته حصه او هغه بله پښه به دواړي پرېولي[1].

الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ،كذا في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الاان يقال ، والبحر ج ۱ ص ۲۹۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[1] في المحيط البرهاني : وإن كان القطع فوق الكعب وفوق المرفق لم يجب غسل موضع القطع . ( ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء ،كذا في البحر ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة ، والهندية ج ۱ ص ۵ كتاب الطهارة باب الوضوء الفصل الاول في فرائض الوضوء ) = راتلونکی مخ

## ۱۹۱ -دغښي موزې پرداسي ځای مسح چي دپښې حصه هلته نه وي

**الإستفتاء:** كه ديوچا موزي غښي وي اودمسح په وخت كي مسح دموزې پرهغه حصه باندي واقع سي چي ترهغه لاندي پښه نه وه دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه مسح نه ده صحيح ځكه دموزو په مسح كي دالازمه ده چي دموزې پرهغه حصه باندي به وي چي ترهغه حصې لاندي پښه موجوده وي[1].

## ۱۹۲ - پرجرابو سربېره موزې په پښو كړي بيامسح كوي

**الإستفتاء:** كه يوڅوک پرجرابو سربېره موزې په پښو كړي، دغه انسان ته پردغه موزو باندي مسح روا ده اوكه نه ؟

---

وفي البحر : رجل ليست له إلا رجل واحدة يجوز له المسح على الخف . ( ج ۱ ص ۲۹۷ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في فتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۴۸ كتاب الطهارة باب الوضوء والغسل فصل في المسح على الخفين ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب إعراب قولهم إلا أن يقال )

وفي التاتارخانية : اذا كان الباقي مقدار ثلاث اصابع من جانب الاصابع جاز المسح وان لم يبق من جانب الاصابع شئ وانما بقي مما يلي العقب مقدار ثلاث اصابع او اقل او اكثر لم يجز المسح وهو الصحيح ، وفي الذخيرة وفي صلاة المستغني اذا كان الرجل مقطوع الاصابع وبعضه خفه خال عن القدم فمسح عليه ينظر ان وقع المسح علي المغسول مقدار ثلاث اصابع جاز والا فلا . ( ج ۱ ص ۴۲۰ كتاب الطهارة الفصل السادس في المسح على الخفين المسئلة ( ۱۰۲۲ )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) الثاني (كونه مشغولا بالرجل) ليمنع سراية الحدث، فلو واسعا فمسح على الزائد ولم يقدم قدمه إليه لم يجز . ( ج ۱ ص ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۳۲ ، والجوهرة النيرة ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه انسان ته پردغه موزو مسح رواده، دجرابو په ښنو کول تاوان نه ورته کوي[1].

## ۱۹۳-دڅرمني جوړ شيانو جرموقينو ،ماسيو باندي مسح کول

**الإستفتاء:** په اوسنۍ زمانه کي چي خلګ له څرمني څخه جوړ شيان په ښنو کوي چي ځيني خلګ يې دجرموقينو اوځيني يې بيادماسيو په نامه يادوي، پردغه باندي مسح رواده اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پردغه باندي مسح رواده؛ ځکه دغه شا اوخوا ټول څرمن لري خوپه دې شرط چي بجلکي به يې پټي کړي وي[2].

---

[1] في البحر : وكذا الخف فوق اللفافة يدل عليه ما في غاية البيان من أن ما جاز المسح عليه إذا لم يكن بينه وبين الرجل حائل جاز المسح عليه إذا كان بينهما حائل كخف إذا كان تحته خف أو لفافة اه فهذا صريح في أن اللفافة على الرجل لا تمنع المسح على الخف فوقها آه . ( ج ۱ ص ۳۱۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۶ / ۱۹۷ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب إعراب قولهم إلا أن يقال ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۴ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[2] في الهندية : ويمسح على الجورب المجلد وهو الذي وضع الجلد على أعلاه وأسفله . ( ج ۱ ص ۳۲ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۹۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب إعراب قولهم إلا أن يقال ، والبحر ج ۱ ص ۳۱۷ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

## ۱۹۴ - پرسوری موزه مسح کول

**الإستفتاء:** که په یوه موزه کي یوسوری ځای وي، دپښې یوڅه حصه تر معلومیږي پردغه موزو باندي مسح رواده اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه سوری ځای تر بجلکي لوړ وي پردغه موزه باندي مسح رواده، که لږ سوری وي اوکه ډېر وي.

اوکه دغه سوری ځای تربجلکي لوړ نه وي، بیاکه دګوتو پر برابري باندي وي نو دهرو ګوتو پر برابري چي وي، که دغتو ګوتو پربرابري وي اوکه دکوچنیو ګوتو، که په دغه ګوتوکي درې ګوتي تردغه سوري ځای معلومېدلې نوپردغه موزو باندي مسح روا نه ده اوکه تردغه لږ وي بیا رواده.

اوکه دغه سوری ځای دګوتوپر برابري نه وي نوکه دغه سوری ځای دومره وي چي دپښې د دروکوچنیو ګوتو په اندازه وي نوپردغه موزو باندي مسح روانه ده، که دغه سوری ځای دپښې پرمخ وي اوکه پر پونده، یاترپښه لاندي وي.

اوکه دغه سوري ځای دپښې د درو کوچنیو ګوتو په اندازه نه وي نوبیا پردغه موزوباندي مسح رواده[1].

---

[1] في البحر : والخرق أعلى الكعب لايمنع . ( ج ۱ ص ۳۰۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في الاختيار لتعليل المختار ج ۱ ص ۳۳ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والهندية ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح ) = راتلونکی مخ

## ۱۹۵- پر هغه موزه مسح کول چې اوږد څيري ځای ولري

**الإستفتاء:** که په يوه موزه کې يو اوږد څيري ځای وي لکه موزه په چاړه پرې سوې وي، پر دغه موزه باندي مسح روا ده اوکه نه؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه موزه داسي وي چې د تګ پر مهال د پښې د پورته کولو په وخت کې دغه سوری سره پورته کيږي او د پښې درې ګوتي يا د درو ګوتو اندازه ځای ترمعلوميږي نو پر دغه موزو باندي مسح روا نه ده.

او که دغه موزه داسي وي چې د تګ پرمهال د پښې د پورته کولو په وخت کې دغه سوری داسي نه سره پورته کېدی چې د پښې درې ګوتي يا د درو ګوتو

---

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار: (والخرق الكبير) بموحدة أو مثلثة (وهو قدر ثلاث أصابع القدم الأصاغر) بكمالها ومقطوعها يعتبر بأصابع مماثلة (يمنعه) إلا أن يكون فوقه خف آخر أو جرموق فيمسح عليه، وهذا لو الخرق على غير أصابعه وعقبه ويرى ما تحته، فلو عليها اعتبر الثلاث ولو كبارا ولو عليه اعتبر بدو أكثره.

وفي ردالمحتار : قوله ولو عليه) أي العقب اعتبر بدو: أي ظهور أكثره، كذا ذكره قاضي خان وغيره، وكذا لو كان الخرق تحت القدم اعتبر أكثره كما في الاختيار، ونقله الزيلعي عن الغاية بلفظ قيل. قال في البحر: وظاهر البدائع اختيار اعتبار ثلاث أصابع مطلقا، وهو ظاهر المتون كما لا يخفى حتى في العقب، وهو اختيار السرخسي . ( ج ۱ ص ۲۰۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۰۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۳۳ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

اندازه ځای تر معلوم سي نو بيا پر دغه موزو باندي مسح روا ده[1].

## ۱۹۶ - پر هغه موزه مسح کول چې ډېر کوچني څيري ځايونه ولري

**الإستفتاء:** که په موزو کي څوځايه لږ لږ څيري وي او په دغه ځايونو کي يوازي تريوه ځای لاهم درې ګوتي، يا د درو ګوتو اندازه نه معلومېږي خو که دغه ټول څيري ځايونه سره يوځای کړل سي نو بيا د درو ګوتو اندازې ته رسيږي، پر دغه موزو باندي مسح روا ده او که نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په دغه موزو کي ديوې موزې څيري ځايونه دومره وي چي سره يوځای سي نو د درو ګوتو اندازې ته رسيږي، پر دغه موزو باندي مسح روا نه ده.

او که يوازي ديوې موزې څيري ځايونه د درو ګوتو اندازې ته نه رسېدل په دغه صورت کي که ددواړو موزو څيري ځايونه د درو ګوتو اندازې ته رسيږي او که نه رسيږي نو پر دغه موزو باندي مسح روا ده[2].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:ولولم ير القدر المانع عند المشي لصلابته لم يمنع وإن كثر.

وفي ردالمحتار : (قوله عند المشي) أي عند رفع القدم كما في شرح المنية الصغير، سواء كان لا يرى عند الوضع على الأرض أيضا أو يرى عند الوضع فقط، وأما بالعكس فيهما فيمنع، أفاده ح، وإنما اعتبر حال المشي لا حال الوضع؛ لأن الخف للمشي يلبس . ( ج ۱ ص ۲۰۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب اعراب قولهم الا أن يقال ، كذا في شرح المنية ص ۱۱۴ شرائط الصلاة فصل في المسح على الخفين ، والجوهرة النيرة ج ۱ص ۳۴ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين)

[2] في الهداية : ويعتبر هذا المقدار في كل خف على حدة فيجمع الخرق في خف واحد ولايجمع في خفين.( ج ۱ ص ۵۹ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۰۷

### ۱۹۷- پریوه څیري او بله روغه موزه مسح کول

**الإستفتاء:** که دیوچایوه موزه د درو ګوتوپه اندازه باندي څیري وي مسح نه وي پر روا نودغه انسان ته پرهغه بله موزه باندي مسح روا ده اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه انسان ته پردغه بله موزه مسح روانه ده، دواړي پښې به پرېولي[۱].

### ۱۹۸- دتعلیم دپاره چي پر موزو مسح داودس دپاره صحیح ده که نه

**الإستفتاء:** که یواستاذ خپل شاګردانوته دتعلیم لپاره اودس وکړي اوپرموزو باندي مسح وکړي نوایادغه مسح داوداسه دمسح دپاره صحیح ده اوکه داوداسه لپاره بېرته پرموزو باندي بله مسح کول غواړي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په الفتاوی الهندیة کي فرمايي چي بله مسح نه غواړي دغه دتعلیم په نیت مسح صحیح ده[۲].

---

کتاب الطهارة باب المسح على الخفين،ومجمع الانهر ج ۱ص ۷ کتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[۱] في البحر : وإذ امتنع المسح على أحدهما بجمع الخروق المتفرقة امتنع المسح على الآخر . ( ج ۱ ص ۳۰۷ کتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في العناية على هامش فتح القدير ج ۱ ص ۱۳۴ کتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، والطحطاوي على الدرالمختار ج ۱ ص ۱۴۱ کتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

[۲] في الهندية : فلو توضأ ومسح على الخفين ونوى التعليم دون الطهارة يصح . ( ج ۱ ص ۳۳ الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الأول في الأمور التي لا بد منها في جواز المسح )

# الفصل الثاني في النواقض

# ( دوهم فصل دمسح دماتونکوشیانوپه بیان کي دی )

## ۱۹۹ - دموزودمسح ماتونکي شیان

**الإستفتاء:** دموزو مسح په څه شي باندي ماتیږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دموزو مسح په هر هغه شي باندي ماتیږي چي په هغه سره اودس ماتیږي اوهمدغه شان دیوې موزې، یادواړوپه ختلوسره او دمسح دوخت ( یوشباروز یادرې شباروزه ) په تېرېدلو سره دموزو مسح ماتیږي[۱].

## ۲۰۰ - د مسح وخت چي پوره سي مسح ماته سي پښې دي پرېولي

**الإستفتاء:** دموزومسح چي دوخت(یوشباروز یادرې شباروزه ) په تېرېدلو سره ماته سي نوپه دغه وخت کي دټول اودس کول لازم دي اوکه یوازي دپښو پرېولل لازم دي ؟

---

[۱] في الهندية : ينقضه ناقض الوضوء ونزع الخف وكذا نزع أحدهما ومضي المدة . ( ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۰۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۱ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه صورت کي يوازي د پښو پرېولل لازم دي ، د ټول اودس تازه کول نه غواړي[1].

---

[1] في الهندية : وإذا نزع الخف وهو طاهر لا يجب عليه إلا غسل رجليه وكذا إذا انقضت مدة مسح . ( ج ۱ ص ۳۴ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۱۰ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۲ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

# الفصل الثالث في المسح على الجبيرة

## ( دريم فصل دپټۍ دمسح په بيان کي دی )

### ۲۰۱ - پرپټۍ باندي مسح کول

**الإستفتاء:** پر پټۍ باندي څه وخت مسح روا ده.

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پر پټۍ باندي هغه وخت مسح صحيح کيږي چي تردغه پټۍ لاندي ځای ته هم پربولل تاوان کوي اوهم مسح اويا ددغه پټۍ خلاصول تاوان ورته کوي، اوکه ددغه پټۍ خلاصولو تاوان نه کوي اونه ددغه ځای پربولل، يامسح کول تاوان کوي، نوبيا ددغه ځای پربولل يامسح کول لازم دي پر پټۍ مسح روانه ده[1].

### ۲۰۲ - دلاس ياپښې دزخي اومېخک پرپلستر باندي مسح کول

**الإستفتاء:** که ديوچاپرلاس، ياپښه باندي مېخک يازخه وي اوکله کله خوږيږي، نوکه دغه انسان پرخپل لاس ياپښه باندي دزخو پلسترولګوي نوپردغه‌پلستر باندي داوداسه اوغسل په وخت کي مسح روا ده اوکه نه ؟

---

[1] في درر الحكام شرح غرر الاحكام : وإنما يجوز المسح على الجبيرة إذا عجز عن مسح الموضع أي موضع الجبيرة بأن كان يضره الماء أو كانت مشدودة يضر حلها أما إذا كان قادرا على مسحه فلا يجوز مسح الجبيرة . ( ج ۱ ص ۳۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين المسح على الجبيرة والعصابة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۳۵ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۷۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پر دغه پلستر باندي مسح روا ده [١].

## ٢٠٣ - دپټۍ پر څومره حصه مسح لازمه ده

**الإستفتاء:** که يو څوک پرپټۍ باندي مسح کوي نوپرڅومره اندازه باندي مسح کول لازم دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دپټۍ پراکثره حصه يعني ترنيم پر ډېره حصه باندي مسح کول لازم دي پرټوله پټۍ باندي مسح کول نه دي لازم [٢].

## ٢٠٤ - پرپټۍ مسح وسي بيا بله پټۍ پروتړي بيامسح لازمه ده که نه

**الإستفتاء:** که يو چا دزخم پرپټۍ باندي مسح وکړه اوبياهغه پټۍ ولوېده اودهغې پټۍ پرځای يې بله پټۍ وتړله نواوس پردغه نوې پټۍ باندي به دوهم وارمسح کوي اوکه نه ؟

---

[١] في البدائع : (وأما) شرائط جوازه فهو أن يكون الغسل مما يضر بالعضو المنكسر والجرح والقرح أو لا يضره الغسل لكنه يخاف الضرر من جهة أخرى بنزع الجبائر فإن كان لا يضره ولا يخاف لا يجوز ولا يسقط الغسل لأن المسح لمكان العذر ولا عذر . ( ج ١ ص ٩٠ كتاب الطهارة مطلب شرط جواز المسح )

[٢] في الهندية : ويكتفي بالمسح على أكثر الجبيرة. هكذا في الهداية وبه يفتى كذا في المضمرات ولا يجوز على النصف فما دونه إجماعا . ( ج ١ ص ٣٥ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في الهداية ج ١ ص ٦١ وخلاصة الفتاوى ج ١ ص ٢٧ كتاب الطهارة الفصل الرابع في المسح على الرأس )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دوهم وارمسح كول لازم نه دي خوښه خبره داده چي دوهم وارمسح وکړي[١].

## ٢٠٥ - پر هغه ځاى پټۍ ولګوي چي هلته زخم نه وي

**الإستفتاء:** که يو چادبدن پرداسي ځاى باندي چي زخم نه وي، پلستر، يابل شى وتړى نوپردغه باندي په اوداسه اوغسل کي مسح صحيح ده اوکه يې پرېولل لازم دي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه پلستر، يابل شى دضرورت په وجه باندي وي نومسح پر رواده پرېولل يې لازم نه دي[٢].

---

[١] في فتح القدير : لو مسح على عصابة فسقطت فأخذ أخرى لا تجب الإعادة عليه لكنه الأحسن . ( ج ١ ص ١٤١ كتاب الطهارة اخر باب المسح على الخفين ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ١ ص ٢٧ كتاب الطهارة الفصل الرابع في المسح على الرأس ، والهندية ج ١ ص ٣٥ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح )

[٢] في البدائع : (وأما) شرائط جوازه فهو أن يكون الغسل مما يضر بالعضو المنكسر والجرح والقرح أو لا يضره الغسل لكنه يخاف الضرر من جهة أخرى بنزع الجبائر فإن كان لا يضره ولا يخاف لا يجوز ولا يسقط الغسل لأن المسح لمكان العذر ولا عذر . ( ج ١ ص ٩٠ كتاب الطهارة مطلب شرط جواز المسح )

وفي الهندية : وسوى ذلك بين الجراحة وغيرها مثل الكي والكسر . ( ج ١ ص ٣٥ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص٢٠٥ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب الفرق بين الفرض العملي والقطعي والواجب)

### ۲۰۶ - تر مسح وروسته پلستر ټول یا یو څه لیري سي

**الإستفتاء:** که یوچا پلستر ومښلوی ، داوداسه یاغسل په وخت کي یې مسح پروکړه او وروسته بیادغه پلستر ټول لیري سو ، یالږ لږلیري کېدی، نوایا ددغه پلستر دځای پرېولل لازم دي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه پلستر دجوړوالي په وجه باندي لیري سي لکه عموماچي دغې پلستر طرفونه راجلاکیږي نو ددغه ځای پرېولل لازم دي او که دلمانځه په مابین کي راجلاسي نو دغه لمونځ فاسدیږي بېرته به لمونځ د سره څخه راګرځوي.
او که دجوړوالي په وجه نه وي لیري سوی، بلکه دیوعارض په وجه باندي لیري سوی وي، بیرته یې بل پلستر پرومښلوي نوبیادغه ځای پرېولل نه غواړي [۱].

### ۲۰۷ - که زخم ته یخي او به تاوان کوي ګرمي او به تاوان نه ورته کوي

**الإستفتاء:** که یو زخم ته یخي اوبه تاوان کوي او ګرمي اوبه تاوان نه ورته کوي پردغه زخم باندي مسح رواده او که په ګرمو اوبو پرېولل یې لازم دي ؟

---

[۱] في الهداية : وإن سقطت الجبيرة عن غير برء لا يبطل المسح " لأن العذر قائم والمسح عليها كالغسل لما تحتها ما دام العذر باقيا وإن سقطت عن برء بطل لزوال العذر وإن كان في الصلاة استقبل لأنه قدر على الأصل قبل حصول المقصود بالبدل والله أعلم . ( ج ۱ ص ۶۱ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب في لفظ كل اذا دخلت على منكر اومعرف ، ودررالحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۳۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين المسح على الجبيرة والعصابة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه شخص پرګرمو اوبو باندي قدرت ولري نو پردغه شخص باندي په ګرمو اوبو پرېولل لازم دي .او که پرګرمو اوبو باندي قدرت نه ولري نو بیا مسح ورته رواده[1].

## ۲۰۸ - که زخم ته اوبه تاوان نه کوي دپټۍ خلاصېدل تاوان کوي

**الإستفتاء:** که یو زخم ته پرېولل یا مسح تاوان نه کي خو دپټۍ خلاصېدل تاوان ورته کوي نو ددغه زخم پر پټۍ باندي مسح رواده او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه زخم پرپټۍ باندي مسح رواده[2].

---

[1] في البحر : وإن كان يضره الغسل بالماء البارد ولا يضره الغسل بالماء الحار يلزمه الغسل بالماء الحار، وإن كان يضره الغسل ولا يضره المسح يمسح ما تحت الجبيرة ولا يمسح فوقها اه قالوا ينبغي أن يحفظ هذا، فإن الناس عنه غافلون ولكن قال في السراج الوهاج: ولو كان لا يمكنه غسل الجراحة إلا بالماء الحار خاصة ولا يمكنه بما سواه لم يجب عليه تكلف الغسل الحار ويجزئه المسح لأجل المشقة. اه والظاهر الأول كما لا يخفى؛ ولهذا اقتصر المحقق في فتح القدير عليه ولم ينقل غيره وقيده بأن يكون قادرا عليه، وهو ظاهر . ( ج ۱ ۳۲۴ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب الفرق بين الفرض العملي والقطعي والواجب ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۴۱ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين)

[2] في الهندية : وإنما يمسح إذا لم يقدر على غسل ما تحتها ومسحه بأن تضرر بإصابة الماء أوحلها . ( ج ۱ ص ۳۵ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة باب المسح على

**۲۰۹-دزخم پرپولل اودپټۍ خلاصول كيږي خوبياپټۍ نه تړل كيږي**

**الإستفتاء**:كه يوزخم ته پرېولل يامسح تاوان نه كوي اودپټۍ خلاصېدل هم تاوان نه ورته كوي، خودغه انسان په داسي ځاى كي وي چي كه پټۍ خلاصه كړي نوبيانه پخپله دغه پټۍ تړلاى سي اونه بل داسي څوك پيداكولاى سي چي پټۍ وروتړي،نودغه انسان ته پرپټۍ باندي مسح رواده اوكه دپټۍ خلاصول پرلازم دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامداومصليا**:

دغه انسان ته پرپټۍ باندي مسح رواده، دپټۍ خلاصول پرلازم نه دي[1].

**۲۱۰ - څه پټۍ چي ترزخم اوښتې وي،ددغه ځاى دپرپوللوحكم**

**الإستفتاء**:دزخم پټۍ چي ترزخم يوڅه اوښتې وي نوتردغه اوښتي حصې لاندي ځاى پرېولل غواړي اوكه نه ؟

---

الخفين مطلب في لفظ كل اذا دخلت على منكر او معرف ، ومراقي الفلاح ص ۱۰۸ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين فصل في الجبيرة ونحوها )

[1] في الهندية : ومن ضرر الحل أن يكون في مكان لايقدر على ربطها بنفسه ولا يجد من يربطها . ( ج ۱ ص ۳۵ كتاب الطهارة الباب الخامس في المسح على الخفين الفصل الثاني في نواقض المسح ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب في لفظ كل اذا دخلت على منكر او معرف ، والبحر مع منحة الخالق ج ۱ ص ۳۲۷ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ځای چې دپټۍ تراوښتي حصې لاندي دی که ددغه ځای په پرېوللو باندي زخم ته تاوان رسېدی نوددغه ځای پرېولل نه دي لازم بلکه پرټوله پټۍ مسح رواده.

اوکه ددغه ځای چې دپټۍ تراوښتي حصې لاندي دی په پرېوللو باندي زخم ته تاوان نه رسېدی نوددغه ځای پرېولل لازم دي[1].

---

[1] في البحر : إذا زادت الجبيرة على رأس الجرح إن كان حل الخرقة وغسل ما تحتها يضر بالجراحة يمسح على الكل تبعا، وإن كان الحل والمسح لا يضر بالجرح لا يجزئه مسح الخرقة بل يغسل ما حول الجراحة ويمسح عليها لا على الخرقة، وإن كان يضره المسح ولا يضره الحل يمسح على الخرقة التي على رأس الجرح ويغسل حواليها وتحت الخرقة الزائدة إذ الثابت بالضرورة يتقدر بقدرها . ( ج ۱ ص ۳۲۶ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين ، كذا في شرح المنية ص ۱۱۷ فصل في المسح على الخفين ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۵ كتاب الطهارة باب المسح على الخفين مطلب في لفظ كل اذا دخلت على منكر او معرف )

# باب الحيض والنفاس والاستحاضة

## الفصل الاول في الحيض

## (اول فصل دحيض په بيان کي دی)

### ۲۱۱ - دحيض دکمي اوزياتي مودې اندازه

**الإستفتاء:** دحيض کمه اوزياته موده څوورځي ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دحيض کمه موده درې شبارورزه او زياته موده يې لس شبارورزه ده[۱].

### ۲۱۲ - که وينه تر درې شبارورزه لږ يا تر لس شبارورزه ډېره سي

**الإستفتاء:** هغه وينه چي تر درې شبارورزه کمه وي او يا تر لس شبارورزه ډېره وي، څه شی بلل کيږي او څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه دمرض وينه بلل کيږي دا سي حکم لري لکه دپزي وينه[۲].

---

[۱] في الهداية : اقل الحيض ثلاثة ايام ولياليها ومانقص من ذلک فهو استحاضة واکثره عشرة ايام والزائد استحاضة . ( ج ۱ ص ۶۲ کتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، کذا في الهندية ج ۱ ص ۳۶ کتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الأول في الحيض ، وتبيين الحقائق ج ۱ ص ۱۵۹ کتاب الطهارة باب الحيض )

[۲] في الهداية : اقل الحيض ثلاثة ايام ولياليها ومانقص من ذلک فهواستحاضة واکثره عشرة ايام والزائد استحاضة . ( ج ۱ ص ۶۲ کتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة، کذا في الهندية ج ۱

## ۲۱۳ - كه دښځي داول حيض وينه ترلس شباروزه ډېره سي

**الإستفتاء:** كه ديوې ښځي داول حيض وينه ترلس شباروزه ډېره سي نوپه دغه كي څو ورځي دحيض بلل كيږي اوڅو ورځي دا استحاضة (مرض) بلل كيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه ښځي دپاره لس ورځي دحيض بلل كيږي او تردغه وروسته ورځي دا استحاضه (مرض) بلل كيږي[1].

## ۲۱۴ - كه دحيض وينه دعادت ترورځو واوړي

**الإستفتاء:** كه يوه ښځه په حيض كي دعادت معلومي ورځي ولري لكه پنځه ورځي مثلانو اوس كه په يوه مياشت كي ددې وينه دغه دعادت تر ورځو واوړي نو دغه ښځه به څه كوي ؟

---

ص ۳۶ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الأول في الحيض، وتبيين الحقائق ج ۱ ص ۱۵۹ كتاب الطهارة باب الحيض ) .

وفي الهداية : ودم الاستحاضة كالرعاف. ( ج ۱ ص ۶۵ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۸۴ كتاب الطهارة باب الحيض فصل، والهندية ج ۱ ص ۳۹ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة )

[1] في الهداية: وإن ابتدأت مع البلوغ مستحاضة فحيضها عشرة أيام من كل شهر والباقي استحاضة لأنا عرفناه حيضا فلا يخرج عنه بالشك . ( ج ۱ ص ۶۶ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثالث في الاستحاضة ، والبحر ج ۱ ص ۳۷۲ كتاب الطهارة باب الحيض )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ښځه به دحيض دورځوپه شان نه لمونځ كوي اونه به روژه نيسي، ګوري به كه دغه وينه ترلس ورځي دمخه اويا پوره پر لس ورځي ودرېده نودغه ټولي ورځي ددې دپاره دحيض ورځي بلل كيږي دلمونځونوقضاء نه غواړي.

اوكه دغه وينه ترلس ورځي واوړي نوپه دغه صورت هغه دزاړه عادت ورځي دحيض بلل كيږي دلمونځونوقضاء يې نسته اوترهغه وروسته ورځي دمرض بلل كيږي ددغه ورځودپاته سوو لمونځونوقضاء به راوړي[1].

## ۲۱۵ - كه دحيض وينه دعادت تروړځودمخه بنده سي

**الإستفتاء:** كه ديوې ښځي دحيض وينه دعادت تروړځو دمخه بنده سي، لكه عادت يې پنځه ورځي وي اووينه يې پرڅلـورمه ورځ باندي بنده سي، اوس به دغه ښځه شرعاڅه كوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دڅلورمي ورځي په كوم وخت كي چي ددغه ښځي وينه بنده سي نودالازمه ده چي دغه ښځه به ترهغه وخت پوري انتظاركوي چي دمستحب وخت پرتېرېدلو باندي وېرېږي، هركله چي دمستحب وخت پرتېرېدلو وېرېده، نوغسل به وكړي اودمستحب وخت په اخيركي به خپل لمونځ وكړي، بيابه نودعادت ترپوره

---

[1] في البدائع : وإن كانت عادتها خمسة فالزيادة عليها حيض معها إلى تمام العشرة لما ذكرنا في المبتدأة بالحيض، وإن جاوز العشرة فعادتها حيض، وما زاد عليها استحاضة . ( ج ١ ص ١٥٨ كتاب الطهارة الاستحاضة ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ٨١ كتاب الطهارة باب الحيض ، والمبسوط للسرخسي ج ٢ ص ٢٨ كتاب الصلاة باب المستحاضة )

کېدلو پوري خپل لمونځ کوي، روژه به نيسي خو دخاونده سره نزدېکت ترهغه وخت پوري نه دی ورته رواچي دعادت ورځي يې پوره کيږي[۱].

## ۲۱۶- دحيض عادت په يووار بدلېدلوسره بدليږي که نه

**الإستفتاء**:دحيض عادت په يووار بدلېدو سره بدليږي اوکه نه دمثال په توګه ديوې ښځي زوړعادت شپږورځي وي خوپه دغه مياشت کي اومه ورځ هم حيض شروع وي، ايادد غه ښځي عادت تر شپږو ورځوڅخه اوو ورځوته بدليږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

پرصحيح قول په دغه يو وارسره ددغه ښځي دحيض عادت بدليږي[۲].

---

[۱] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وإن لأقله فإن لدون عادتها لم يحل وتغتسل وتصلي وتصوم احتياطا. .

وفي ردالمحتار : (قوله وإن ولأقله) اللام بمعنى بعد ط (قوله لم يحل) أي الوطء وإن اغتسلت؛ لأن العود في العادة غالب بحر (قوله وتغتسل وتصلي) أي في آخر الوقت المستحب وتأخيره إليه واجب هنا أما في صورة الانقطاع لتمام العادة فإنه مستحب كما في النهاية والبدائع وغيرهما (قوله احتياطا) علة للأفعال الثلاثة . ( ج ۱ ص ۲۱۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لوافتى مفت بشئ من هذه الاقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۱۷ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة ، وتبيين الحقائق ج ۱ ص ۱۷۱ كتاب الطهارة باب الحيض)

[۲] في الهندية : انتقال العادة يكون بمرة عند أبي يوسف وعليه الفتوى . ( ج ۱ ص ۳۹ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في احكام الحيض والنفاس

## ۲۱۷ - که په دوا سره حيض بند کړي د عادت ورځي يې څه حکم لري

**الإستفتاء:** که يوه ښځه ددوا په ذريعه سره حيض بند کړي نوتردغه وروسته چي ددغه ښځي دعادت هغه ورځي راسي چي پخوابه دې ته حيض ورتلى، په دغه ورځوکي دغه ښځه حائضه بلل کيږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه ورځوکي که وينه ښکاره نه سي نودغه ښځه حائضه نه بلل کيږي اوکه وينه ښکاره سوه نوحائضه بلل کيږي[1].

## ۲۱۸ - دحيض اونفاس په وخت کي پر ښځه کوم شيان حراميږي

**الإستفتاء:** پرښځه دحيض او نفاس په وخت کي کوم شيان حراميږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پرښځه باندي په دغه وخت کي دغه شيان حراميږي چي تفصيل يې په لاندي ډول دی:

۱- لمونځ کول ، يادتلاوت اوشکر سجده کول.

---

والاستحاضة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٢٠ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في حكم وطؤ المستحاضة ومن بذكره نجاسة وردالمحتار ج ١ ص ٢٢٢ )

[1] في الهندية : لا يثبت حكم كل منها إلا بخروج الدم وظهوره وهذا هو ظاهر مذهب أصحابنا وعليه عامة مشايخنا وعليه الفتوى . ( ج ١ ص ٣٨ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وركنه بروز الدم من الرحم . ( ج ١ ص ٢٠٨ كتاب الطهارة باب الحيض ، والبحر ج ١ ص ٣٣٢ كتاب الطهارة باب الحيض )

۲- روژه نیول.

۳- مسجد ته داخلېدل.

۴- پر کعبه شریفه باندي طواف کول.

۵- د قرآن کریم تلاوت کول.

۶- قرآن کریم او یا هغه شي ته بېله غلافه لاس وروړل چي پر هغه شي باندي د قرآن کریم آیت لیکلی وي.

۷- د خپل خاوند سره نزدېکت کول[1].

---

[1] في العناية على هامش فتح القدير : هذا بيان أحكام الحيض. قال في النهاية وغيرها: إنها اثنا عشر: ثمانية يشترك فيها الحيض والنفاس وأربعة مختصة بالحيض دون النفاس، فأما الثمانية: فترك الصلاة لا إلى قضاء، وترك الصوم إلى قضاء، وحرمة الدخول في المسجد، وحرمة الطواف بالبيت، وحرمة قراءة القرآن، وحرمة مس المصحف بدون الغلاف، وحرمة جماعها، والثامن وجوب الغسل عند انقطاع الحيض والنفاس . ( ج ۱ ص ۱۴۵ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۱۳ ومابعده كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، ومراقي الفلاح ص ۱۱۳ ومابعده كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

وفي ردالمحتار : قوله ( ولو سجدة شكر ) اى او تلاوة فيمنع صحتهما ويحرمهما . (ج ۱ ص ۲۱۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسناوالطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۱۳ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة)

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وكذا) يمنع (حمله) كلوح وورق فيه آية . ( ج ۱ ص ۲۱۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا

## ٢١٩ - دحيض په وخت کي ذکر ، دعاء ، درود ويل

**الإستفتاء:** ښځي ته دحيض اونفاس په وخت کي دقرآن کريم څخه ماسوا نور اذکار ، درود اودعاويل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ټول شيان ورته روادي[1].

## ٢٢٠ - حائض ددعاء په نيت هغه آيتونه وايي چي ددعاء معنى لري

**الإستفتاء:** ښځي ته دحيض اونفاس په وخت کي ددعا په نيت دقرآن کريم هغه آيتونه ويل څه حکم لري چي ددعا معنا پکښي موجوده وي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددعاء په نيت ددغه قسم آيتونو ويل ښځي ته دحيض اونفاس په وخت کي روادي[2].

---

للتيسير كان حسنا ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٤٩ كتاب الطهارة باب الحيض ، ومراقي الفلاح ص ١١٤ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

[1] في الهندية : ويجوز للجنب والحائض الدعوات وجواب الأذان ونحو ذلك . ( ج ١ ص ٣٨ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢١٥ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا )

وفي الجوهرة النيرة : ولا بأس للجنب والحائض والنفساء أن يسبحوا الله ويهللوه . ( ج ١ ص ٣٩ كتاب الطهارة باب الحيض )

[2] في البحر : أما إذا قرأه على قصد الثناء أو افتتاح أمر لا يمنع في أصح الروايات وفي التسمية اتفاق أنه لا يمنع إذا كان على قصد الثناء أو افتتاح أمر كذا في الخلاصة وفي العيون لأبي الليث ولو

## ۲۲۱ - که ښځه دحيض پر وخت کوچنيانوته دقرآن کريم تعليم کوي

**الإستفتاء:** يوه ښځه چي کوچنيانو ته قرآن کريم وايي نودغه ښځه به دحيض اونفاس په وخت کي څه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ښځه به دحيض اونفاس په وخت کي ماشومانوته په داسي طريقه سره قرآن کريم وايي چي يوه يوه کلمه به بېله بېله ووايي، دوې يا دېري کلمي به په يوه وار سره نه وايي اوبل داچي دغه يوه يوه کلمه به دقرآن کريم دتلاوت په نيت نه وايي، دتعليم په نيت به يې وايي[1].

## ۲۲۲ - دحيض اودنفاس په وخت کي ښځي ته لاس وروړل يامچول

**الإستفتاء:** دحيض او نفاس په حالت کي ښځي ته لاس وروړل يامچول څه حکم لري ؟

---

أنه قرأ الفاتحة على سبيل الدعاء أو شيئا من الآيات التي فيها معنى الدعاء ولم يرد به القراءة فلا بأس به اه واختاره الحلواني وذكر في غاية البيان أنه المختار . ( ج ١ ص ٣٤٦ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ( ج ١ ص ٢١٤ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، وحاشية الشلبي على هامش الزيلعي ج ١ ص ١٦٥ كتاب الطهارة باب الحيض )

[1] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : والأصح أنه لا بأس بتعليم الحائض والجنب القرآن إذا كان يلقن كلمة كلمة لا على قصد قراءة القرآن . ( ص ١١٤ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٤٨ كتاب الطهارة باب الحيض ، وحاشية الشرنبلالي على هامش درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٢٠ كتاب الطهارة فرض الغسل )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دښځي دنامه څخه ترځنګنو پوري دبدن پردغه حصه باندي بېله جامې څخه نفع اخيتسل نه دي روا اوپرجامه سربېره نفع اخيستل روادي.

اودښځي دبدن ددغه حصې څخه ماسوا نور بدن ته بېله جامې څخه لاس وروړل اومچول روادي[1].

## ۲۲۳- دوينوپه ليدو به دستي لمونځ پرېږدي که څه انتظارغواړي

**الإستفتاء:** ښځه چي دحيض په وخت کي وينه ووينې نودستي به لمونځ پرېږدي، که به تر درو ورځوپوري انتظارکوي او وروسته به لمونځ پرېږدي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ښځه به دوينوترليدلووروسته دستي لمونځ پرېږدي که څه هم دا امکان سته چي دغه وينه به تر درې ورځي دمخه بنده سي اودا استحاضة (مرض) به وبلل سي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وقربان ما تحت إزار) يعني ما بين سرة وركبة ولو بلا شهوة، وحل ما عداه مطلقا .

وفي ردالمحتار : (قوله يعني ما بين سرة وركبة) فيجوز الاستمتاع بالسرة وما فوقها والركبة وما تحتها ولو بلا حائل، وكذا بما بينهما بحائل بغير الوطء ولو تلطخ دما ... (قوله مطلقا) أي بشهوة أو لا . ( ج ۱ ص ۲۱۴ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۱۴ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة ، والبحر ج ۱ ص ۳۴۵ كتاب الطهارة باب الحيض )

[2] في حاشية الشلبي على هامش تبيين الحقائق : قال في المنبع وفي المبسوط والمجتبى مبتدأة رأت دما تركت الصلاة كما رأته عند مشايخنا وعن أبي حنيفة رضي الله عنه أنها لا تترك ما لم يستمر دمها

## ۲۲۴ - دحيض اونفاس په ورځو کي دلمانځه پرځای کښيناستل

**الإستفتاء:** دښځي دپاره دحيض اونفاس په ورځو کي دلمانځه په وخت کي دلمانځه پرځای کښېنستل څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دښځي دپاره دحيض اونفاس په ورځو کي دهرلمانځه په وخت کي دامستحب دی چي اودس تازه کړي، دلمانځه پرځای کښيني او سبحان الله او الحمد لله او الله اكبر ووايي[1].

---

ثلاثة أيام؛ لأن الطهارة متيقنة والحيض مشكوك فيه لجواز انقطاع دمها فيما دون الثلاث واليقين لا يزول بالشك والأول أصح؛ لأن الله تعالى وصف الحيض بأنه أذى وقد رأته في وقته فلا يخرج المرئي من أن يكون حيضا بتوهم انقطاعه فيما دون الثلاث؛ لأن اليقين لا يزال بالشك كصاحبة العادة تترك الصلاة بنفس رؤية الدم مع توهم انقطاعه قبل الثلاث فكذا هذا . ( ج ۱ ص ۱۶۸ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهندية ج ۱ ص ص ۳۸ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۱ كتاب الطهارة باب الحيض قبيل مطلب في احوال السقط واحكامه )

[1] في البحر : وأما أئمتنا فقالوا: إنه يستحب لها أن تتوضأ لوقت كل صلاة وتقعد على مصلاها تسبح وتهلل وتكبر وفي رواية يكتب لها ثواب أحسن صلاة كانت تصلي وصحح في الظهيرية أنها تجلس مقدار أداء فرض الصلاة كي لا تنسى العادة . ( ج ۱ ص ۳۳۶ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهندية ج ۱ ص ص ۳۸ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۴۲ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة )

### ۲۲۵ - دحيض اونفاس دوخت لمونځونه قضاء غواړي که نه

**الإستفتاء:** پرښځه باندي دحيض اونفاس دورځودلمونځونوقضاء سته اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه ورځودلمونځونو قضاء نسته[1].

### ۲۲۶-که دوخت په اخیر کي دحیض وینه ودرېږي ددغه لمانځه قضاء

**الإستفتاء:** که دلمانځه دوخت په اخير کي دښځي دحيض، يا نفاس وينه ودرېږي نوپردغه ښځه باندي ددغه وخت دلمانځه قضاء لازمه ده اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که ددغه ښځي دحيض وينه پرپوره لس (۱۰) ورځي اويادنفاس وينه پر پوره څلوېښت (۴۰) ورځي ودرېږي په دغه حالت کي که ددغه وخت اخيري حصه دومره پاته وي چي يوازي تحريمه پکښي ځايېده، نوپردغه ښځه باندي ددغه وخت دلمانځه قضاء لازمه ده.

اوکه ددغه ښځي دحيض وينه تر لس (۱۰) ورځي دمخه ودرېده، ياېې دنفاس وينه تر څلوېښت (۴۰) ورځي دمخه ودرېده، په دغه حالت کي که ددغه وخت اخيري حصه دومره پاته وه چي غسل او تحريمه دواړه پکښي ځايېدل، نو پردغه ښځه باندي ددغه وخت دلمانځه قضاء لازمه ده.

---

[1] في الهندية : (منها) أن يسقط عن الحائض والنفساء الصلاة فلا تقضي . ( ج ۱ ص ص ۳۸ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في مراقي الفلاح ص ۱۱۷ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة ، والهداية ج ۱ ص ۶۳ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة )

اوكه د وخت پاته حصه دومره نه وه چې غسل او تحريمه دواړه پکښې ځاي سي نو بيا پردغه ښځه باندي ددغه وخت دلمانځه قضاء لازمه نه ده[1].

## ۲۲۷- دخوبه راکښيني حيض يې دربدلى وي ددغه لمانځه قضاء

**الإستفتاء:** كه يوه حائضه ښځه بيده سي اووروسته پداسي حالت كي راويښه سي چې دحيض وينه يې دربدلي وي نواوس پردغه ښځه باندي دغه دخوب دوخت دلمانځه قضاء سته اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پردغه ښځه باندي دغه دخوب دوخت دلمانځه قضاء لازمه ده ځکه ددغه

---

[1] في ردالمحتار : والحاصل أن زمن الغسل من الحيض لو انقطع لأقله؛ لأنها إنما تطهر بعد الغسل، فإذا أدركت من آخر الوقت قدر ما يسع الغسل فقط لم يجب عليها قضاء تلك الصلاة؛ لأنها لم تخرج من الحيض في الوقت، بخلاف ما إذا كان يسع التحريمة أيضا؛ لأن التحريمة من الطهر فيجب القضاء. وأما إذا انقطع لأكثره فإنها تخرج من الحيض بمجرد ذلك، فيكون زمن الغسل من الطهر وإلا لزم أن تزيد مدة الحيض على العشرة، فإذا أدركت من آخر الوقت قدر التحريمة وجب القضاء وإن لم تتمكن من الغسل؛ لأنها أدركت بعد الخروج من الحيض جزءا من الوقت . ( ج ١ ص ٢١٧ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٥٥ كتاب الطهارة باب الحيض ، و الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ١١٦ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وحكمه كالحيض في كل شئ . ( ج ١ ص ٢١٩ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة باب الحيض )

ښځي حيض دبيده کېدلو دوخت څخه درېدلی بلل کيږي[1].

**۲۲۸- دلمانځه په وخت کي پاکه بيده سي چي ويښه سي حيض شروع وي**

**الإستفتاء:** که دحيض څخه پاکه ښځه ديولمانځه په وخت کي دلمانځه ترکولودمخه بيده سي، بياددغه وخت ترتېرېدلو وروسته پداسي حالت کي راويښه سي چي حيض يې شروع سوی وي، نواوس پردغه ښځه باندي دغه دخوب دوخت دلمانځه قضاء سته اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

پردغه ښځه باندي دغه دخوب دوخت دلمانځه قضاء لازمه ده؛ ځکه دغه ښځه دراوينښېدلو دوخت څخه حائضه بلل کيږي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : لو نامت طاهرة وقامت حائضة حكم بحيضها منذ قامت وبعكسه منذ نامت احتياطا . ( ج ۱ ص ۲۱۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۳۲ كتاب الطهارة باب الحيض ، والهندية ج ۱ ص ۳۶ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الأول في الحيض )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : لو نامت طاهرة وقامت حائضة حكم بحيضها منذ قامت وبعكسه منذ نامت احتياطا . ( ج ۱ ص ۲۱۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۳۲ كتاب الطهارة باب الحيض ، والهندية ج ۱ ص ۳۶ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الأول في الحيض )

## ۲۲۹ - كه دلمانځه په مابين کي حيض شروع سي ددغه لمانځه قضاء

**الإستفتاء:** كه يوه ښځه پرلمانځه ودريږي اودلمانځه په مابين کي يې حيض شروع سي نوپردغه ښځه باندي ددغه لمانځه قضاء سته اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه ددغه ښځي حيض دفرضي لمانځه په دوران کي شروع سي نوددغه فرضي لمانځه قضاء نسته . اوكه دنفلي لمانځه په مينځ کي شروع سي نوددغه نفــلي لمانځه قضاء وروسته پر لازمه ده[1].

## ۲۳۰ -دحيض اونفاس دورځود روژو قضاء

**الإستفتاء:** پرښځه باندي دحيض اونفاس دورځو دروژو قضاء سته كه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پرښځه باندي ددغه ورځو دروژو قضاء سته[2].

---

(1) في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو شرعت تطوعا فيهما فحاضت قضتهما .

وفي ردالمحتار : (قوله ولو شرعت تطوعا فيهما) أي في الصلاة والصوم؛ أما الفرض ففي الصوم تقضيه دون الصلاة وإن مضى من الوقت ما يمكنها أداؤها فيه؛ لأن العبرة عندنا لآخر الوقت . ( ج ١ ص ٢١٣ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في الهندية ج ١ ص ص ٣٨ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة )

(2) في البحر: ( فتقضيه دونها ) اى فتقضي الصوم لزوما دون الصلاة . ( ج ١ ص ٣٣٨ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهداية ج ١ ص ٦٣ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، والهندية ج ١ ص ص ٣٨ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة )

## ۲۳۱ - چې د حيض او نفاس وينه ودريږي تر غسل دمخه جماع کول

**الإستفتاء**: چې د حيض يانفاس وينه ودريږي نو تر غسل کولو دمخه جماع (دخاوند سره نزدېکت) ورته روادي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

که دغه دحيض وينه پر پوره لس (۱۰) ورځې، يادنفاس وينه پر پوره څلوېښت (۴۰) ورځې باندې ودريږي نو د دغه ښځې سره تر غسل کولو دمخه جماع (دخاوند سره نزدېکت) کول روادي، خو مستحب دادی چې تر غسل کولو وروسته د دغه ښځې سره جماع وکړل سي.

او که د حيض وينه تر لس (۱۰) ورځې، يادنفاس وينه تر څلوېښت (۴۰) ورځې دمخه ودرېده په دغه صورت کې د دغه ښځې سره تر هغه وخته پوري جماع کول روانه دي ترڅو چې غسل کوي يا تيمم وهي، په هغه وخت کې چې شرعا تيمم ورته رواوي، يعني د تيمم شرطونه پرځای وي، او يا د فرضي لمانځه داخير څخه دومره وخت پر تېرېږي چې غسل او تحريمه پکښې ځايېږي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويحل وطؤها إذا انقطع حيضها لأكثره) بلا غسل وجوبا بل ندبا(وإن) انقطع لدون أقله تتوضأ وتصلي في آخر الوقت، وإن (لأقله) فإن لدون عادتها لم يحل، وتغتسل وتصلي وتصوم احتياطا؛ وإن لعادتها، فإن كتابية حل في الحال وإلا (لا) يحل (حتى تغتسل) أو تتيمم بشرطه . ( ج ۱ ص ۲۱۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في الهندية ج ۱ ص ص ۳۹ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، والهداية ج ۱ ص ۶۴ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ) = راتلونکی مخ

**٢٣٢-په حيض کي دقرآن کريم هغه ځای ته لاس وروړل چي توري نه وي**

**الإستفتاء:** دحيض اونفاس په وخت کي دقرآن کريم بياض (خالي ځای) ته اويادهغه شي بياض (خالي ځای) ته چي دقرآن کريم آيت پرليکلى وي لاس وروړل څه حکم لرى ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دقرآن کريم دغه ځای ته لاس وروړل روانه دي، اودقرآن کريم څخه ماسوا دبل شي بياض (خالي ځای) ته لاس وروړل روادي[1].

---

وفي ردالمحتار: (قوله إذا انقطع حيضها لأكثره) مثله النفاس ... (قوله وإن لعادتها) وكذا لو كانت مبتدأة .

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وحكمه كالحيض في كل شئ . ( ج ١ ص ٢١٩ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة باب الحيض )

[1] في ردالمحتار : قوله ومسه) أي القرآن ولو في لوح أو درهم أو حائط، لكن لا يمنع إلا من مس المكتوب، بخلاف المصحف فلا يجوز مس الجلد وموضع البياض منه. وقال بعضهم: يجوز، وهذا أقرب إلى القياس، والمنع أقرب إلى التعظيم كما في البحر: أي والصحيح المنع . ( ج ١ ص ٢١٤ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٤٩ كتاب الطهارة باب الحيض ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ١١٤ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

**۲۳۳ - په حیض کي داغوستي جامې په یوه حصه قرآن کریم ته لاس وروړل**

**الإستفتاء**:دحیض اونفاس په وخت کي داغوستي جامې په یوه حصه باندي دقرآن کریم مس کول (لاس وروړل یا مچول) څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا**:

دغه عمل نه دی رواځکه په دغه جامه سره مس کول داسي دي لکه بېله جامې مس کول[1].

**۲۳۴ - دحاملې ښځي وینه حیض دی که نه**

**الإستفتاء**:که دیوې حاملې ښځي وینه پیداسي، دغه حیض بلل کیږي اوکه استحاضة (مرض) بلل کیږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا**:

دحاملې ښځي وینه استحاضة (مرض)بلل کیږي حیض نه دی[2].

---

[1] في الهندية : ولا يجوز لهم مس المصحف بالثياب التي هم لابسوها . ( ج ۱ ص ص ۳۹ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۵۰ كتاب الطهارة باب الحيض ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۱۴ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا )

[2] في مجمع الانهر : (وما تراه الحامل حال الحمل، وعند الوضع قبل خروج أكثر الولد استحاضة) ؛ لأن الحيض دم، وبالحبل ينسد فم الرحم فما تراه حينئذ يكون استحاضة . ( ج ۱ ص ۸۲ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۶۸ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۰۹ كتاب الطهارة باب الحيض )

## ۲۳۵-دحیض په وخت کي ژړي ،خړي یابل رنګ اوبه حیض دی که نه

**الإستفتاء:** که یوې ښځي ته دحیض په وخت کي دوینوپرځای ژړي، یاخړي اوبه پیداسي، دغه حیض بلل کیږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

دخالص سپين والي څخه ماسوا بل هررنګ اوبه چي پیداسي، دغه ټولي حیض بلل کیږي[1].

## ۲۳۶-ددووحیضو ،دنفاس اوحیض په مابین کي دطهر اندازه

**الإستفتاء:** دیوه حیض اوبل حیض په مابین کي دطهر ( پاکۍ ) اندازه څو ورځي ده ، اوهمدغه شان دنفاس اوحیض په مابین کي دطهر ( پاکۍ ) اندازه څو ورځي ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

طهر ( پاکي ) که د دوو حیضونو په مابین کي وي اوکه دنفاس اوحیض په مابین کي وي ددغه طهر ( پاکۍ ) کمه اندازه پنځلس ( **۱۵** ) ورځي دي، یعني که تریوه حیض یانفاس وروسته، ترپنځلس ( **۱۵** ) ورځي دمخه وینه پیداسوه، نودغه وینه دحیض نه بلکه دمرض وینه بلل کیږي.

اوددغه طهر ( پاکۍ ) دزیاتي اندازې دپاره یو معینه اندازه نسته، نوکه

---

[1] في ملتقى الابحر على هامش مجمع الانهر : وما تراه من الألوان في مدته سوى البياض الخالص فهو حيض . ( ج ۱ ص ۷۸ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۶۲ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۱۱ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا )

هرڅومره ډېر وخت وينه نه وي دغه ټول وخت دطهر ( پاکۍ ) وخت بلل کيږي[1] .

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وأقل الطهر) بين الحيضتين أو النفاس والحيض (خمسة عشر يوما) ولياليها إجماعا (ولا حد لأكثره) و إن استغرق العمر . ( ج ١ ص ٢٠٩ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ١١٢ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

# الفصل الثاني في النفاس
# ( دوهم فصل دنفاس په بيان کي دی )

## ۲۳۷ - دنفاس ترټولو کم اوزيات وخت

**الإستفتاء:** دنفاس کمه اوزياته موده څوورځي ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دنفاس دپاره کمه اندازه نسته اوزياته اندازه يې څلوېښت ورځي ده، که تردغه زياته سوه هغه وينه مرض دی نفاس نه دی[1].

## ۲۳۸ - که داول نفاس وينه تر څلوېښت ورځي زياته سي

**الإستفتاء:** که ديوې ښځي داول نفاس وينه تر څلوېښت (۴۰) ورځي زياته سي نوڅو ورځي دنفاس بلل کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه ښځي دپاره څلوېښت ورځي دنفاس بلل کيږي اونوري ورځي يې داستحاضة (مرض) بلل کيږي[2].

---

[1] في الهندية : أقل النفاس ما يوجد ولو ساعة وعليه الفتوى وأكثره أربعون . ( ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثاني في النفاس، كذا في الهداية ج ۱ص ۶۸ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة ، والبحر ج ۱ ص ۳۷۹ كتاب الطهارة باب الحيض )

[2] في تبيين الحقائق : ولو كانت المستحاضة مبتدأة بأن ابتدأت مع البلوغ مستحاضة أو مع الولد الأول فحيضها أكثر الحيض ونفاسها أكثر النفاس . ( ج ۱ ص ۱۸۰ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الهندية ج ۱ ص ص ۳۷ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثالث في الاستحاضة ، والبحر ج ۱ ص ۳۷۲ كتاب الطهارة باب الحيض )

## ٢٣٩-ښځه دنفاس عادت لري او په يوه نفاس کي وينه تر عادت واوړي

**الإستفتاء:** که يوې ښځي په نفاس کي معلوم عادت درلودی لکه شل (٢٠) ورځي مثلاً، اوس که په بل نفاس کي ددغه ښځي دنفاس وينه دعادت تورځو واوړي نو دغه ښځه به څه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه ښځه به دنفاس دورځو په شان نه لمونځ کوي اونه به روژه نيسي، اوس که داسي سي چي دغه وينه ترڅلوېښت ورځي دمخه اويا پرپوره څلوېښت ورځي ودرېده نودغه ټولي ورځي ددې دپاره دنفاس ورځي بلل کيږي دلمونځونو قضاء نه غواړي.

اوکه دغه وينه ترڅلوېښت ورځي واوښته، نوپه دغه صورت کي هغه دمخکني عادت ورځي دنفاس بلل کيږي دلمونځونو قضاء يې نسته اوترهغه وروسته ورځي دمرض بلل کيږي ددغه ورځودپاته سوو لمونځونو قضاء به راوړي[1].

---

[1] في البدائع : (وأما) صاحبة العادة في النفاس إذا رأت زيادتها على عادتها فإن كانت عادتها أربعين فالزيادة استحاضة لما مر، وإن كانت دون الأربعين فما زاد يكون نفاسا إلى الأربعين فإن زاد على الأربعين ترد إلى عادتها فتكون عادتها نفاسا، وما زاد عليها يكون استحاضة . ( ج ١ ص ١٦٠ كتاب الطهارة فصل في تفسير الحيض والنفاس والاستحاضة دم الحامل ليس بحيض ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٢٠ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في حكم وطء المستحاضة ومن بذكره نجاسة ، والتاتارخانية ج ١ ص ٥٣٩ كتاب الطهارة الفصل التاسع في الحيض المسئلة ( ١٤٦٦ )

## ۲۴۰ - دنفاس وينه چي دعادت ترور ځو مخکي بنده سي

**الإستفتاء:** که ديوې ښځي دنفاس وينه دعادت تروړځو دمخه بنده سي لکه عادت يې شل ورځي وي او وينه يې پرپنځلسمه ورځ باندي بنده سي، اوس ددغه حالت شرعي حکم څه دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

د پنځلسمي ورځي په کوم وخت کي چي ددغه ښځي وينه بنده سي نو واجب ده چي دغه ښځه به ترهغه وخت پوري انتظار کوي چي د مستحب وخت پرتېرېدلو باندي و بېرېږي، هرکله چي پردې وبېرېدله چي مستحب وخت تېرېږي نو غسل به وکړي اودمستحب وخت په اخيرکي به خپل لمونځ اداکړي، بيابه نودعادت ترپوره کېدلو پوري خپل لمونځ کوي، روژه به نيسي خو دزوج سره نزدېکت ترهغه وخت پوري ورته روانه دی چي دعادت ورځي يې پوره کېږي[1].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وإن لأقله فإن لدون عادتها لم يحل وتغتسل وتصلي وتصوم احتياطا.

وفي ردالمحتار : (قوله وإن ولأقله) اللام بمعنى بعد ط (قوله لم يحل) أي الوطء وإن اغتسلت؛ لأن العود في العادة غالب بحر (قوله وتغتسل وتصلي) أي في آخر الوقت المستحب وتأخيره إليه واجب هنا أما في صورة الانقطاع لتمام العادة فإنه مستحب كما في النهاية والبدائع وغيرهما (قوله احتياطا) علة للأفعال الثلاثة . ( ج ۱ ص ۲۱۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لوافتى مفت بشئ من هذه الاقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۱۷ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة ، وتبيين الحقائق ج ۱ ص ۱۷۱ كتاب الطهارة باب الحيض) = راتلونکی مخ

### ۲۴۱- ډېر کوچنيان چي پيداسي دکوم کوچني وروسته وينه نفاس دی

**الإستفتاء:** که ديوې ښځي تريوه ډېرکوچنيان پيداسول نوددغه ښځي نفاس ترکوم کوچني وروسته شروع بلل کيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

ددغه ښځي نفاس تراول کوچني وروسته شروع بلل کيږي[1].

### ۲۴۲- ترشپږمیاشتي دمخه ضائع سوي حمل وروسته وينه نفاس دی

**الإستفتاء:** که ديوې ښځي حمل ترشپږ مياشتي دمخه ضائع سي نوتردغه حمل وروسته چي کومه وينه راسي دغه نفاس بلل کيږي، که حيض اويا مرض ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که ددغه حمل يواندام ياډېراندامونه معلوم سوي وي لکه ګوته يانوک نوتردغه وروسته وينه دنفاس ده.

اوکه يې هيڅ اندام نه معلومېدی بلکه صرف دويني، يادغوښي يوه ټوټه وه نوتردغه وروسته وينه که دا ممکنه وي چي حيض وبلل سي يعني تردغه دمخه

---

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وحكمه كالحيض في كل شئ . ( ج ١ ص ٢١٩ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب لو أفتى مفت بشيء من هذه الأقوال في مواضع الضرورة طلبا للتيسير كان حسنا ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ٨٢ كتاب الطهارة باب الحيض )

[1] في الهداية : فإن ولدت ولدين في بطن واحد فنفاسها من الولد الأول عند أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله وإن كان بين الولدين اربعون يوما . ( ج ١ ص ٦٨ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة فصل في النفاس ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٨١ كتاب الطهارة باب الحيض ، ومجمع الانهر ج ١ ص ٨٣ كتاب الطهارة باب الحيض )

چي کوم حیض تېرسوی دی ترهغه وروسته پنځلس یاډیري شپې تیري سوي وي اودغه وینه تردرې ورځي کمه نه سي نودغه وینه حیض بلل کیږي.

اوکه داممکنه نه وه چي حیض وبلل سي لکه دمخکني حیض وروسته ترپنځلس ورځي لږتیري سوي وي اویادغه وینه تردرې ورځي کمه وي نوپه دغه صورت کي بیادغه وینه مرض بلل کیږي[1].

## ۲۴۳ - - په اپریشن دپیدا سوي کوچني وروسته وینه نفاس دی که نه

**الإستفتاء:** که دیوې ښځي څخه داپریشن په ذریعه باندي کوچنی پیدا سي نوتردغه کوچني وروسته وینه نفاس بلل کیږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که تردغه کوچني وروسته دنوروښځوپه شان ددغه ښځي دخاص اندام څخه وینه راروانه سوه نودغه دنفاس وینه بلل کیږي.

اوکه یوازي هغه دزخم وینه وه نوبیادغه دزخم وینه دنفاس نه بلل کیږي[2].

---

[1] في الهندية : والسقط إن ظهر بعض خلقه من أصبع أو ظفر أو شعر ولد فتصير به نفساء هكذا في التبيين وإن لم يظهر شيء من خلقه فلا نفاس لها فإن أمكن جعل المرئي حيضا يجعل حيضا وإلا فهو استحاضة .( ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثاني في النفاس ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۱ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احوال السقط واحكامه ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۶۵ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة فصل في النفاس )

[2] في الهندية : ولو ولدت من قبل سرتها بأن كان ببطنها جرح فانشقت وخرج الولد منها تكون صاحبة جرح سائل لا نفساء. هكذا في الظهيرية والتبيين إلا إذا خرج من الفرج دم عقيب خروج الولد من السرة فإنه حينئذ يكون نفاسا . ( ج ۱ ص ۳۷ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثاني في النفاس ، كذا في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۱۹ كتاب

## ٢٤٤ - دكوچني ترپيدا كېدلووروسته وينه ښكاره نه سي غسل سته ؟

**الإستفتاء:** كه ديوې ښځي دكوچني ترپيدا كېدلووروسته وينه خارجه نه سوه نو پردغه ښځه باندي دنفاس غسل واجبيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

راجــح قول دادى چي پردغه ښــځه باندي غسل واجب دى، اوتردغه وروسته به خپل لمونځ وكړي[1].

## ٢٤٥ - دنفاس په وخت كي پر ښځه باندي كوم شيان حراميږي

**الإستفتاء:** دنفاس په وخت كي پرښځه باندي كوم شيان حراميږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دنفاس په وخت كي پرښځه باندي هغه شيان حراميږي چي دحيض په وخت كي پرحراميږي چي تفصيل يې دحيض په مسائلو كي په (٢١٨ ) نمبرمسئله كي ذكرسو.

---

الطهارة باب الحيض مطلب في حكم وطء المستحاضة ومن بذكره نجاسة ، والبحر ج ١ ص ٣٧٨ كتاب الطهارة باب الحيض )

[1] في الهندية : ولو ولدت ولم تر دما لا يجب الغسل عند أبي يوسف ... وعن أبي حنيفة رحمه الله يجب الغسل وأكثر المشايخ أخذوا بقوله وبه كان يفتي الصدر الشهيد. هكذا في المحيط وقال أبو علي الدقاق وبه نأخذ. كذا في المضمرات وفي الفتاوى هو الصحيح . ( ج ١ ص ٣٧ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الثاني في النفاس ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٧٨ كتاب الطهارة باب الحيض ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢١٩ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في حكم وطء المستحاضة ومن بذكره نجاسة )

# الفصل الثالث في احكام المعذور

## ( دریم فصل دمعذور داحکامو په بیان کي دی )

### ۲۴۶-هغه معذور چي دوخت په وتلو يې اودس ماتیږي

**الإستفتاء**: هغه کوم معذوردی چي داوداسه ماتېدل يې دوخت تر وتلو پوري تعلق لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دامعذور هغه انسان دی چي ديوه فرضي لمانځه پوره وخت پرده باندي په داسي طريقه سره تېرسي چي په دغه ټول وخت کي دخپل عذر( اودس ماتونکي شي )څخه خلاص دومره وخت پيدا نه کړي چي اودس اولمونځ پکښي وکړي[1].

### ۲۴۷ - دلمانځه دوخت په مابين کي پيداسوی عذر چي دوام وکړي

**الإستفتاء**: که يو چاته دفرضي لمانځه دوخت په مابين کي يوعذرپيداسو اوددغه وخت تراخيره پوري يې دوام وکړی، دغه انسان معذوربلل کيږي که نه ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وصاحب عذر من به سلس بول ... إن استوعب عذره تمام وقت صلاة مفروضة بأن لا يجد في جميع وقتها زمنا يتوضأ ويصلي فيه خاليا عن الحدث ولو حكما لأن الانقطاع اليسير ملحق بالعدم وهذا شرط العذر في حق الابتداء. ( ج ۱ ص ۲۲۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۰ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في احكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، والدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ۱ ص ۸۵ كتاب الطهارة باب الحيض فصل )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه انسان په دغه سره معذورنه بلل کيږي، بلکه هغه وخت معذوربلل کيږي چي تردغه وروسته دبل فرضي لمانځه وخت ټول په داسي طريقه سره پرتېرسي چي ددغه عذرڅخه فارغه دومره وخت پيدانه کړي چي اودس اولمونځ پکښي وکړي[1].

## ۲۴۸-دلمانځه په وخت کي چي يوعذرپيداسي نوڅه وکړي

**الإستفتاء:** که يو انسان ته دفرضي لمانځه په وخت کي يوعذرپېښ سي لکه دوينوجاري کېدل، نودغه انسان خودستي معذورنه بلل کيږي نواوس څه بايد وکړي؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه انسان به ددغه وخت تراخيره پوري انتظار وکړي که يې عذرپای ته ورسېدی خومشکل نسته، اودس اولمونځ به وکړي اوکه يې عذرختم نه سو نودوخت په اخيرکي به ددغه عذرسره اودس وکړي اولمونځ به وکړي.

اوتردغه وروسته به وګوري که يې دغه عذرددوهم وخت تراخيره پوري دوام وکړی نودغه معذوربلل کيږي اوددغه زاړه لمانځه راګرځول نه غواړي.

---

[1] في ردالمحتار : ولو عرض بعد دخول وقت فرض انتظر إلى آخره، فإن لم ينقطع يتوضأ ويصلي ثم إن انقطع في أثناء الوقت الثاني يعيد تلك الصلاة وإن استوعب الوقت الثاني لا يعيد لثبوت العذر حينئذ من وقت العروض . ( ج ۱ ص ۲۲۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۷۳ كتاب الطهارة باب الحيض ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۲۰ كتاب الطهارة باب الانجاس والطهارة عنها )

اوکه عذر ددوهم وخت تراخیر پوري دوام ونه کړی نودغه شخص معذورنه بلل کيږي دغه تېرکول سوی لمونځ به بیرته راوګرځوي[1].

## ۲۴۹ - چي یو وار معذورو بلل سي نوترکوم وخت پوري معذور دی

**الإستفتاء** :یوڅوک چي یووارپه شریعت کي معذور وبلل وسي نوبیا ترکومه وخته پوري معذوربلل کيږي او اودس یې تروخته پوري تعلق لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه انسان ترهغه وخته پوري معذوربلل کيږي ترڅوچي دیوه فرضي لمانځه ټول وخت ددغه عذرڅخه خلاص په داسي طریقه باندي پرتېرېږي چي دغه عذریووارهم پکښي موجود نه سي.

اوکله چي دیوه فرضي لمانځه ټول وخت دعذرڅخه فارغ پرتېرسو نوعذر یې ختم سو معذورنه بلل کيږي[2].

---

[1] في ردالمحتار : ولو عرض بعد دخول وقت فرض انتظر إلى آخره، فإن لم ينقطع يتوضأ ويصلي ثم إن انقطع في أثناء الوقت الثاني يعيد تلك الصلاة وإن استوعب الوقت الثاني لا يعيد لثبوت العذر حينئذ من وقت العروض . ( ج ١ ص ٢٢٣ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ١٢٠ كتاب الطهارة قبيل باب الانجاس ، وتبيين الحقائق ج ١ ص ١٨٤ كتاب الطهارة باب الحيض )

[2] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: وهذا شرط العذر في حق الابتداء، وفي حق البقاء كفى وجوده في جزء من الوقت ولو مرة وفي حق الزوال يشترط استيعاب الانقطاع تمام الوقت حقيقة لأنه الانقطاع الكامل . = راتلونکی مخ

## ۲۵۰ - دمعذور په تازه کړي اودس سره قرآن کريم ته لاس وروړل

**الإستفتاء:** يو معذور انسان چي دلمانځه په وخت کي دلمانځه دپاره اودس وکړي، نودوخت تروتلودمخه خوپه دغه اوداسه سره لمونځ کولای سي ، ايا په دغه اوداسه سره دقرآن کريم مس ( لاس وروړل يامچول ) هم کولای سي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه اوداسه سره دقرآن کريم مس ( لاس وروړل يامچول )کولای سي[1].

## ۲۵۱ -دمعذوراودس دوخت په وتلو که دوخت په داخلېدلو ماتيږي

**الإستفتاء:** دمعذورانسان اودس دزاړه وخت په تېرېدلو ماتيږي اوکه دنوي وخت په داخلېدلو ماتيږي، اوکه په دواړو سره ماتيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پرصحيح قول باندي يوازي دزاړه وخت په وتلو دمعذور اودس ماتيږي[2].

---

وفي ردالمحتار : (قوله: تمام الوقت حقيقة) أي: بأن لا يوجد العذر في جزء منه أصلا فيسقط العذر من أول الانقطاع حتى لو انقطع في أثناء الوضوء أو الصلاة ودام الانقطاع إلى آخر الوقت الثاني يعيد . ( ج ۱ ص ۲۲۳ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۷۷ كتاب الطهارة باب الحيض )

[1] في الطحطاوي على مراقي الفلاح: ويصلون به" أي بوضوئهم في الوقت "ما شاؤوا من"النوافل" والواجبات كالوتر والعيد وصلاة جنازة وطواف ومس مصحف .( ص ۱۱۹ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الموسوعة الفقهية ج ۳ص۲۱۱ استحاضة احكام المستحاضة وُضُوءُ الْمُسْتَحَاضَةِ وَعِبَادَتُهَا)

[2] في الهندية: ويبطل الوضوء عند خروج وقت المفروضة بالحدث السابق. هكذا في الهداية وهو الصحيح . ( ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع

## ۲۵۲ -دوخت په وتلوسره دمعذورداودس د ماتېدلوشرطونه

**الإستفتاء:** دمعذور اودس چي دوخت په وتلو سره ماتيږي اودوخت تر وتلو دمخه نه ماتيږي دغه څوشرطونه لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دوه شرطونه لري:

۱- اول شرط دادی چي دغه اودس به يې ددغه عذردپاره تازه کړی وي، نوددغه شرط پربناء که يومعذوردفرضي لمانځه په وخت کي لکه دماپښين وخت مثلا اودس تازه کړي اوبيايې تردغه اوداسه وروسته، ترماځيګره پوري دغه عذر موجودنه سي، نواوس که دغه شخص دماځيګرپه وخت کي ددغه عذر ترپيدا کېدلودمخه بل اودس تازه کړي او وروسته بيادغه ماځيګر په وخت کي دغه عذرپيدا سي نوپه دغه سره ددغه شخص اودس ماتيږي که څه هم وخت وتلی نه وي.

اوهمدغه شان که دغه شخص ته ددغه عذره ماسوا داوداسه يوبل ماتونکی شی ورپېښ سي اودی اودس تازه کړي اوتردغه وروسته يې په دغه وخت کي دغه زوړعذرموجودسي نوپه دغه صورت کي هم په دغه عذرسره ددغه شخص اودس ماتيږي که څه هم وخت وتلی نه وي؛ ځکه په دغه دواړه صورته کي دغه انسان ددغه عذردپاره اودس نه دی تازه کړی، بلکه په اول صورت کي يې دثواب دپاره اوپه دوهم صورت کي يې داوداسه دبل ماتونکي شي دوجي اودس تازه کړی دی.

---

في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في المحيط ج ۱ ص ۵۱ كتاب الطهارة الفصل الثاني في بيان مايوجب الوضوء ومالايوجب )

اوکه داسي وي چي دغه خپل عذرهم ورته پېښ سي اوداوداسه يوبل ماتونکی شی هم ورته پېښ سي اودی تردغه وروسته اودس وکړي نودغه اودس يې په دغه وخت کي په دغه زاړه عذرباندي نه ماتيږي؛ ځکه دغه اودس يې ددغه عذرد پاره بلل کيږي.

۲- دوهم شرط دادی چي تردغه اوداسه وروسته به ددغه عذرماسوا داوداسه بل ماتونکی شی نه وي موجود سوی، نوددغه شرط پربناء که يومعذور ترخپل عذر وروسته اودس تازه کړي اوبياتردغه وروسته ددغه عذرڅخه ماسوا داوداسه يوبل ماتونکی شی موجود سي لکه داسي عذروي چي دزخم وينه يې روانه وي اوتراوداسه وروسته بيده سي ، ياپې پربدن بل زخم پيداسي اووينه ورڅخه وبهيږي، ياعذرداسي وي چي ديوې سږمې څخه يې وينه روانه وی، تراوداسه وروسته يې ددغه بلي سږمې څخه وينه راسي، نوپه دغه ټولوصورتونو کي ددغه شخص اودس ماتيږي که څه هم وخت نه وي وتلی[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و المعذور إنما تبقى طهارته في الوقت بشرطين إذا توضأ لعذره و لم يطرأ عليه حدث آخر أما إذا توضأ لحدث آخر وعذره منقطع ثم سال أو توضأ لعذره ثم طرأ عليه حدث آخر، بأن سال أحد منخريه أو جرحيه أو قرحتيه ولو من جدري ثم سال الآخر فلا تبقى طهارته .

وفي ردالمحتار : (قوله: أما إذا توضأ لحدث آخر) أي: لحدث غير الذي صار به معذورا وكان حدثه منقطعا كما في شرح المنية: أما إذا كان حدثه غير منقطع وأحدث حدثا آخر ثم توضأ فلا ينتقض بسيلان عذره كما هو ظاهر التقييد؛ لأن وضوءه وقع لهما، ثم إن ما ذكره الشارح محترز قوله إذا توضأ لعذره ووجه النقض فيه بالعذر أن الوضوء لم يقع له فكان عدما في حقه بدائع. وكذا لو توضأ على الانقطاع ودام إلى خروج الوقت ثم جدد الوضوء في الوقت الثاني ثم سال انتقض؛ لأن تجديد الوضوء

**۲۵۳ - ترلمر راختلو وروسته دمعذور په تازه کړي اودس دماپښين لمونځ**

**الإستفتاء:** که یومعذور ترلمر راختلو وروسته او دماپښين دوخت تر داخلېدلو دمخه اودس وکړي نوپه دغه اوداسه سره دماپښين لمونځ ورته روادی اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

هوورته روادی، ځکه دمعذوراودس دفرضي لمانځه دوخت په وتلوسره ماتيږي اوپه دغه صورت کي دفرضي لمانځه وخت وتلی نه دی[1].

**۲۵۴ - دمعذوراودس بېله اودس ماتونکي شي دوخت په وتلو ماتيږي که نه**

**الإستفتاء:** که یومعذوردفرضي لمانځه په وخت کي(لکه دماپښين وخت مثلا )،اودس تازه کړی اوبيايې تردغه اوداسه وروسته ترماځيګره پوري دغه عذر موجود نه سو ، نواوس چي دماپښين وخت ووزي ، ایاددغه معذوراودس ددغه وخت په وتلوسره ماتيږي اوکه نه ؟

---

وقع من غير حاجة فلا يعتد به، بخلاف ما إذا توضأ بعد السيلان. ( ج ۱ ص ۲۲۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الاول في تطهير الانجاس ، والبدائع ج ۱ ص ۱۲۸ كتاب الطهارة ماينقض الوضوء)

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : لوتوضأ بعد الطلوع ولو لعيد الاضحى لم يبطل الابخروج وقت الظهر . ( ج ۱ ص ۲۲۴ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، كذا في البحر ج ۱ ص ۳۷۷ كتاب الطهارة باب الحيض ، والهندية ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه داسي وي چي داوداسه تازه كولوپه وخت كي يې هم دغه عذر موجود نه وو نودغه دماپښين دوخت په وتلوسره ددغه شخص اودس نه ماتيږي، اوترڅو چي داوداسه يوماتونكى شى موجود سوى نه وي نودى كولاى سي چي په دغه زاړه اوداسه باندي دماځيگرپه وخت كي لمونځ وكړي.

اوكه داسي وي چي داودس تازه كولوپه وخت كي دغه عذرموجودوو، وروسته بياورك سوى وي نو دماپښين دوخت په وتلوسره ددغه شخص اودس مات بلل كيږي[1].

## ۲۵۵- معذورچي عذربندولاى سي نوددغه عذر بندول پرلازم دي؟

**الإستفتاء:** هغه څوك چي عذر (اودس ماتونكى شى) يې خپله نه بنديږي، دوام كوي خودغه انسان په يوطريقه باندي قدرت ولري چي دغه عذرددوام څخه بندكړي لكه پرزخم باندي پټۍ ولگوي، اوس كه ددې سره سره خپل عذربندنه كړي، ايادغه انسان معذوربلل كيږي، اودس يې دوخت تراخيره پوري پاته بلل كيږي اوكه نه؟

---

[1] في الهندية : وإنما تنتقض طهارتها إذا توضأت والدم سائل أو سال بعد الوضوء في الوقت حتى لو توضأت والدم منقطع ثم خرج الوقت وهي على وضوء لها أن تصلي بذلك ما لم يسل أو تحدث حدثا آخر . (ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السادس في الدماء المختصة بالنساء الفصل الرابع في أحكام الحيض والنفاس والاستحاضة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۴ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، والبحر ج ۱ ص ۳۷۷ كتاب الطهارة باب الحيض)

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه انسان معذور نه بلل کیږي اودا پر لازمه ده چي خپل عذر به بندوي[۱].

## ۲۵۶ - معذور دعذر دبندولو قدرت نه لري خود کمولو قدرت يې لري

**الإستفتاء:** که يو معذور دا قدرت نه ولري چي خپل عذر بند اوختم کړي خودا قدرت ولري چي دغه خپل عذر کم کړي لکه ببله پټۍ تړلو دزخم وينه ډېره روانه وي اود پټۍ په تړلو دغه وينه درېږي نه خو کمېږي، نو پر دغه معذور ددغه عذر کمول لازم دي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه مسئله کي دفقهاء کرامو دوه قولونه دي:

۱- يو قول يې دادی چي ددغه عذر کمول واجب دي.

۲- دوهم قول يې دادی چي ددغه عذر کمول مستحب دي نو احتياط دادی چي دغه معذور دخپل قدرت تر اندازې پوري خپل عذر کم کړي چي لمونځ يې په اتفاق سره صحيح سي[۲].

---

[۱] في البحر : ومتى قدر المعذور على رد السيلان برباط أوحشو أو كان لو جلس لايسيل ولو قام سال وجب رده وخرج برده عن أن يكون صاحب عذر . ( ج ۱ ص ۳۷۴ كتاب الطهارة باب الحيض ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۵ كتاب الطهارة باب الحيض فروع قبيل باب الانجاس)

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : يجب رد عذره أوتقليله بقدر قدرته ولو بصلاته موميا . ( ج ۱ ص ۲۲۵ كتاب الطهارة باب الحيض فروع قبيل باب الانجاس ) = راتلونکی مخ

## ۲۵۷- معذورچي په پروتي لمونځ كوي عذريې بنديږي اوكه يې په ولاړه كوي نوعذريې جاري كيږي

**الإستفتاء**:كه يومعذور داسي وي چي په ولاړه، ياپه ناسته لمونځ كوي عذريې جاري كيږي ، اوكه په پروته لمونځ كوي نوعذر نه وي، اوس به دغه معذورڅه كوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دغه معذوركه پرولاړه قدرت لري په ولاړه به لمونځ كوي اوكه نه وي په ناسته به لمونځ كوي په پروته لمونځ نه دی ورته روا[1].

## ۲۵۸-معذورچي داوداسه دځای سره نژدې چي لمونځ كوي عذريې بنديږي اوكه مسجدته ځي عذريې جاري كيږي

**الإستفتاء**:كه يوڅوک داسي وي چي كه داوداسه دځای سره نژدې لمونځ كوي نوعذر يې نه وي ،اوكه مسجد ته ځي نود حركت په وجه يې عذرجاري كيږي نو اوس به دغه شخص په دغه ځای كي لمونځ كوي اوكه به مسجد ته ځي ؟

---

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : وإذالم يمتنع العذر بذلك هل يفعله تقليلا للنجاسة بقدر الإمكان قالوا: ينبغي قال ابن أميرحاج أي يستحب لمافي الخلاصة لو لم يفعل لابأس به و قال الحلبي أي يجب . ( ص ۱۱۹ كتاب الطهارة باب الحيض والنفاس والاستحاضة )

[1] في فتح القدير : لو كان بحيث لو صلى قائما أو قاعدا سال جرحه وإن استلقى لا يسيل وجب القيام والركوع والسجود، لأن الصلاة كما لا تجوز مع الحدث إلا ضرورة لا تجوز مستلقيا إلا لها فاستويا . ( ج ۱ ص ۱۶۴ كتاب الطهارة باب الحيض والاستحاضة فصل في النفاس ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۲۵ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور قبيل باب الانجاس ، وحاشية الشلبي على الزيلعي ج ۱ ص ۲۵۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه ځای کي به لمونځ کوي، مسجد ته به نه ځي؛ ځکه ترڅوچي د معذور قدرت وي نو د عذر بندول پر لازم دي که څه هم سجده ورته پاته کيږي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : يجب رد عذره أو تقليله بقدر قدرته ولو بصلاته موميا.

وفي ردالمحتار : (قوله: أو تقليله) أي: إن لم يمكنه رده بالكلية (قوله: ولو بصلاته مومئا) أي: كما إذا سال عند السجود ولم يسل بدونه فيومئ قائماأو قاعدا، وكذا لو سال عند القيام يصلي قاعدا . ( ج ١ ص ٢٢٥ كتاب الطهارة قبيل باب الانجاس ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٧٤ كتاب الطهارة باب الحيض )

# باب الانجاس

## الفصل الاول في تطهير الانجاس

## (اول فصل دمرداري دپاکولوپه بيان کي دی)

### ۲۵۹ - دمردار بوټ، ياچمپل دپاکولوطريقه

**الإستفتاء:** بوټ ياچمپل چي مردار سي دپاکېدلو طريقه يې څه ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه مرداري خپله صورت ولري لکه وينه دغه که وچ وي اوکه لوندوي اوياخپله صورت نه لري خو عارضي صورت پيدا کړي لکه بولي چي ور ورسيږي اوبيا دلوندوالي په وخت کي خاوره، يابل شی پوري ومښلي دغه دواړه قسمه مرداري هم په پرېوللوسره پاکيږي اوهم په دې طريقه سره پاکيږي چي دغه بوټ ياچمپل په مځکه، يابل شي پوري ترداسي اندازې وموږي چي دمرداري اثر پوره ليري سي.

اوکه دغه مرداري نه خپله صورت لري اونه يې عارضي صورت پيداکړی وي لکه بولي چي وچي سي نودغه بياپه پرېوللوسره پاکيږي په بله طريقه سره نه پاکيږي.

خو که دڅپلۍ هغه حصې ته مرداري ورسېدی چي ټوکرياسفنج باندي وي نوبيابه يې درې واره پرېولي اوتر هر وار پرېوللو وروسته به يې دومره اندازه پرېږدي چي داوبوڅاڅکی ودرېږي اوډېراحتياط دادی چي په هر وار

پرېوللوکي يې تروچېدلوپوري پرېږدي[1].

## ٢٦٠ - دمردارچمني (مرغې) دپاکولوطريقه

**الإستفتاء:** چمنی (مرغه ) چي مردارسي مثلا په مردارو اوبوباندي اوبه سي بيا په څه طريقه سره پاکيږي ؟

---

[1] في الهندية : (ومنها) الحت والدلك الخف إذا أصابه النجاسة إن كانت متجسدة كالعذرة والروث والمني يطهر بالحت إذا يبست وإن كانت رطبة في ظاهر الرواية لا يطهر إلا بالغسل وعند أبي يوسف إذا مسحه على وجه المبالغة بحيث لا يبقى لها أثر يطهر وعليه الفتوى لعموم البلوى. كذا في فتاوى قاضي خان وإن لم تكن النجاسة متجسدة كالخمر والبول إذا التصق بها مثل التراب أو ألقي عليها فمسحها يطهر وهو الصحيح. هكذا في التبيين وعليه الفتوى للضرورة . ( ج ١ ص ٤٤ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس )

وفي الهداية : فان اصابه بول فيبس لم يجز حتى يغسله وكذا كل ما لاجرم له . ( ج ١ ص ٧٠ كتاب الطهارة باب الانجاس وتطهيرها ، كذا في البحر ج ١ ص ٣٨٧ كتاب الطهارة باب الانجاس)

وفي الهندية : الخف الخراساني الذي صرمه موشى بالغزل بحيث صار ظاهره كله غزلا فأصابت النجاسة تحتها فإنه يغسل ثلاثا ويجفف كل مرة وقال بعضهم: يغسل مرة ويترك حتى ينقطع التقاطر ثم يغسل ثانيا وثالثا كذلك وهذا أصح والأول أحوط . ( ج ١ ص ٤٣ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٢٧ كتاب الطهارة باب الانجاس )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دچمني حکم دمځکي دی يعني چي وچ سي اودمرداری اثريې ورک سي، نو پاک دی او لمونځ باندي روادی خو تيمم پردغه چمني باندي روانه دی[1].

**۲۶۱- دبدن، جامې دغليظه مرداری سره لمونځ کول**

**الإستفتاء:** که ديو چابدن ياجامې ته غليظه مرداري ورسېدی لمونځ يې صحيح دی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه مرداري ديوه درهم تراندازې ډېر وي نودلمانځه دپاره يې پرېولل فرض دي، لمونځ نه ورسره صحيح کيږي.

اوکه ديوه درهم په اندازه باندي وي نودلمانځه دپاره يې پرېولل واجب دي، لمونځ ورسره صحيح دی، خو مکروه تحريمي بلل کيږي اوراګرځول يې واجب دي.

اوکه دغه مرداري تريوه درهم لږوي نودلمانځه دپاره يې پرېولل مستحب دي، لمونځ ورسره صحيح دی ، خو مکروه تنزيهي دی ، راګرځول

---

[1] في البحر : (قوله: والأرض باليبس وذهاب الأثر للصلاة لا للتيمم) أي تطهر الأرض المتنجسة بالجفاف إذا ذهب أثر النجاسة فتجوز الصلاة عليها ولا يجوز التيمم منها ... ويشارك الأرض في حكمها كل ما كان ثابتا فيها كالحيطان والأشجار والكلأ والقصب وغيره ما دام قائما عليها فيطهر بالجفاف وهو المختار . ( ج ۱ ص ۳۹۱ كتاب الطهارة باب الانجاس، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۴ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الاول في تطهير الانجاس)

یې مستحب دي[۱].

## ۲۶۲ - په غلیظه مردارۍ کې دیوه درهم وزن که ځای معتبر دی

**الإستفتاء:** په مرداري غلیظه کې چې دیوه درهم اندازه ذکرکیږي دغه وزنامعتبر دی اوکه مساحة، یعنې ددغه مراد دادی چې دغه مرداري دیوه درهم وزن ولري اوکه یې مراد دادی چې دغه مرداري پربدن یاجامه یامکان باندې دیوه درهم قدرځای ونیسي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه مرداري جسم اوصورت ولري لکه ګندګي، یامثل دګندګي نو په دغه کې وزن معتبردی، یعنې چې دغه مرداري دیوه درهم وزن ولري.

اوکه جسم اوصورت ونه لري لکه مرداري اوبه، یامثل داوبو، په دغه کې مساحة او اندازه معتبره ده، یعنې چې دیوه درهم په اندازه ځای ونیسي.[۲]

---

[۱] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وعفا الشارع عن قدر درهم وإن كره تحريما فيجب غسله وما دونه تنزيها فيسن وفوقه مبطل فيفرض والعبرة لوقت الصلاة لا الإصابة على الأكثر . ( ج ۱ ص ۲۳۱ كتاب الطهارة باب الانجاس كذا في شرح المنية ص ۱۷۱ فصل في الآسار )

وفي ردالمحتار : والحق التفصيل بين كون تلك الكراهة كراهة تحريم فتجب الإعادة أو تنزيه فتستحب . ( ج ۱ ص ۳۳۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب واجبات الصلاة ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۳۶۴ كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها فصل ويكره للمصلي الخ )

[۲] في البدائع : وقال الفقيه أبو جعفر الهندواني: لما اختلفت عبارات محمد في هذا فنوفق ونقول: أراد بذكر العرض تقدير المائع، كالبول والخمر ونحوهما، وبذكر الوزن تقدير المستجسد كالعذرة ونحوها، فإن كانت أكثر من مثقال ذهب وزنا تمنع؛ وإلا فلا، وهو المختار عند مشايخنا

## ۲۶۳- دمرداري جامې دپاکولو طريقه

**الإستفتاء:** جامه چي مرداره سي په څه طريقه سره پاکيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که پردغه جامه باندي داسي مرداري وي چي په سترګومعلوميږي، نوتر هغه وخت پوري به يې پريولي چي دغه مرداري يې ليري کيږي، که په يوه وار وي، که په ډېر، که څه هم تردرې واره زيات وي.

اوکه داسي مرداري وي چي په سترګونه معلوميږي، لکه بولي چي وچي سي، نوبياکه دغه شخص دوسوسې خاوندنه وي، دغه جامه به ترهغه وخت پوري پريولي چي ددغه پريولونکي غالب ګمان سي چي اوس نوپاکه سوه، چي دغه دغالب ګمان خبره عموماپه درې واره پريوللوسره حاصليږي نودرې واره دي يې پريولي اوهرواردي ښه سم ونښتبځي په داسي اندازه سره چي دده په طاقت باندي نورڅاڅکي نه ورڅخه څڅيږي، خو که پريولونکی شخص نابالغ ياليونی وي نوبيادهغه چاغالب ګمان معتبردی چي دغه جامه استعمالوي،اوکه دغه شخص دوسوسې خاوندوو نوبيابه دغه جامه درې واره پريولي[1].

---

بما وراء النهر . ( ج ۱ ص ۲۳۳ كتاب الطهارة فصل في بيان مقدار مايصيربه المحل نجسا المقدار المعفوعنه من النجاسة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۵ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الثاني في الاعيان النجسة ، وردالمحتار ج ۱ص ۲۳۲ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار: (وكذا يطهر محل نجاسة) أما عينها فلا تقبل الطهارة (مرئية) بعد جفاف كدم (بقلعها) أي: بزوال عينها وأثرها ولو بمرة أو بما فوق ثلاث في الأصح .

## ۲۶۴ -که مرداره جامه دنرم والي په وجه نه نښتېځل کېده

**الإستفتاء:** که يو جامه داسي وه چي دنرم والي په وجه باندي نه نښتېځل کېده نو دغه جامې ته که مرداري ورسېدی په څه طريقه سره پاکيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه جامه دي په روانو اوبو کي کښېږدي اويادي پر دغه جامه باندي دومره ډېري اوبه توی کړي چي غالب گمان يې داسي چي تردغه جامه درې واره اوبه ووتلې، تردغه وروسته جامه پاکه بلل کيږي.

اوکه دغه دوې طريقې استعمال نه کړي نو بيا په دغه مسئله کي احتياطي طريقه داده چي دغه جامه درې واره په داسي طريقه سره پرېولي چي

---

( ج ۱ ص ۲۴۰ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب العرقي الذي يستقطر من دردي الخمر نجس حرام بخلاف النوشادر )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) يطهر محل (غيرها) أي: غير مرئية (بغلبة ظن غاسل) لو مكلفا وإلا فمستعمل (طهارة محلها) بلا عدد به يفتى.(وقدر) ذلك لموسوس (بغسل وعصر ثلاثا) أو سبعا (فيما ينعصر) مبالغا بحيث لا يقطر . ( ج ۱ ص ۲۴۲ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في حكم الوشم ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس )

وفي البحر : وفي السراج اعتبار غلبة الظن مختار العراقيين والتقدير بالثلاث مختار البخاريين والظاهر الأول إن لم يكن موسوسا، وإن كان موسوسا فالثاني . ( ج ۱ ص ۴۱۲ كتاب الطهارة باب الانجاس ، كذا في الدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ۱ ص ۹۰ كتاب الطهارة باب الانجاس ، وحاشية. الشرنبلالي على هامش درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۴۵ كتاب الطهارة باب تطهير الانجاس )

په هر وارکي به يې دومره اندازه نښتېځي چي دغه جامې ته تاوان نه کوي او په هروارکي به يې تر دغه نښتېځلو وروسته وچه کړي.

او په دغه طريقه کي ځکه احتياط دی چي په دغه صورت کي دغه جامه په اتفاق سره پاکه بلل کيږي[1].

## ۲۶۵-دمرداري بوی، رنګ ليري کول په ګرم اوبو، يا صابون سره

**الإستفتاء:** که يوه مرداره جامه په يخو اوبو باندي پرېولل سي نو دمرداري رنګ، يابوی پاته کيږي، نوايادالازمه ده چي ددغه بوی، يارنګ دليري کولو لپاره ګرمي اوبه، صابون، يابل شی استعمالوي اوکه نه؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : أما لو غسل في غدير أو صب عليه ماء كثير، أو جرى عليه الماء طهر مطلقا بلا شرط عصر وتجفيف .

وفي ردالمحتار : (قوله: أو صب عليه ماء كثير) أي: بحيث يخرج الماء ويخلفه غيره ثلاثا؛ لأن الجريان بمنزلة التكرار والعصر هو الصحيح سراج. (قوله: بلا شرط عصر) أي: فيما ينعصر، وقوله " وتجفيف " أي: في غيره، وهذا بيان للإطلاق . ( ج ۱ ص ۲۴۴ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في حكم الوشم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۱۲ كتاب الطهارة باب الانجاس ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۲۹ كتاب الطهارة باب الانجاس الطهارة عنها )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو لم يبالغ لرقته هل يطهر؟ الأظهر نعم للضرورة .

وفي ردالمحتار: (قوله: الأظهر نعم للضرورة) كذا في النهر عن السراج. أي: لئلا يلزم إضاعة المال قال في البحر: لكن اختار في الخانية عدم الطهارة اه قلت: وبه جزم في الدرر، وعليه فالظاهر أنه يعطى حكم ما لا ينعصر من تثليث الجفاف . ( ج ۱ ص ۲۴۳ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في حكم الوشم )

**الفتوی بعون الله تعالی حامداو مصليا:**

خپل کوشش دي په پرېوللو کي وکړي، تردغه وروسته چي دکوم رنګ يابوی ليري کول سخت وي، هغه پروانه کوي، دګرمو اوبو ياصابون يابل شي استعمال لازم نه دی[1].

### ۲۶۶ - دهغه شي چي نه نښتېځل کيږي لکه فرش دپاکولو طريقه

**الإستفتاء:** هغه شيان چي نه نښتېځل کيږي لکه فرش، غالی، چټايي، لوښي، اوداسي نور دغه چي مردار سي په څه طريقه سره پاکيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداو مصليا:**

دغه شيان دوه قسمه دي:

۱- يوهغه دي چي اوبه نه جذبوي، لکه لوښي دغه شيان په درې واره پرېوللو سره پاکيږي.

۲- دوهم هغه دي چي اوبه جذبوي، لکه غالی ، فرش دغه شيان په دوې طريقې سره پاکيږي:

۱- اوله طريقه داده چي دغه شيان يووارپرېولي، بيايې يوڅه وخت کښېږدي چي داوبوڅاڅکي يې ودريږي، بيابه يې دوهم وارپرېولي، انتظار به ورته وکړي چي داوبوڅاڅکي ودريږي، بيابه يې دريم وار همداسي

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا يضر بقاء أثر كلون وريح لازم فلا يكلف في إزالته إلى ماء حار أو صابون ونحوه . ( ج ١ ص ٢٤١ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في حكم الصبغ والاختضاب بالصبغ اوالحناء النجسين ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ١٢٧ كتاب الطهارة باب الانجاس ، والجوهرة النيرة ج ١ ص ٥١ كتاب الطهارة باب الانجاس )

پرېږدي، تردغه دريم وار وروسته چي داوبوڅاڅکي ودرېږي نودغه شيان پاک بلل کېږي.

۲- دوهمه طريقه داده چي دغه شيان په روانواوبوکي کښېږدي اويا پردغه شيانوباندي دومره ډېري اوبه توی کړي چي غالب گمان يې داسي چي درې واره اوبه تردغه شي ووتلې،نو دغه شيان پاک بلل کېږي[1].

## ۲۶۷-دجامې سخت اوکمزوري مني دواړه په گرولوپاکيږي

**الإستفتاء:** دفقهي په کتابونوکی دامسئله ذکرده چي مني چي وچ سي دجامې څخه په گرولواومښلوسره پاکيږي اوس ځيني علماء داسي وايي چي داحکم دپخوانيوخلگودپاره وو، چي هغه قوي وه، مني يې سخت وه، اوس داحکم نه دی، ايااخبره صحيح ده که نه، که صحيح وي نودليل يې څه دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

راجح قول دادی چي دغه حکم مطلق دی، نه دپخوا زمانې دخلگو اوداوس زمانې دخلگودمني فرق سته، نه دنراوښځي دمني فرق سته؛ ځکه په ټولو معتبرومتونوکي دغه مسئله مطلقه ذکر ده اوبل داچي فقهاء رحمهم الله تعالی فرمايي : چي که هغه جامې ته مني ورسيږي چي هغه استرولري

---

[1] في الهندية: وما لاينعصر يطهر بالغسل ثلاث مرات والتجفيف في كل مرة؛ لأن للتجفيف أثرا في استخراج النجاسة وحد التجفيف أن يخليه حتى ينقطع التقاطر ولا يشترط فيه اليبس. هكذا في التبيين هذا إذا تشربت النجاسة كثيرا وإن لم تتشرب فيه أو تشربت قليلا يطهر بالغسل ثلاثا . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۱۳ كتاب الطهارة باب الانجاس ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۴۳ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في حكم الوشم )

اودغه مني تردغه جامه ووزي اودغه استرته ورسيږي نوصحيح قول دادی چي دغه استرپه ګرولوسره پاکيږي اودامعلومه خبره ده چي هغه مني چي دجامې استرته رسيږي هغه به رقيق اونرم وي.

خو ددغه حکم دپاره داشرط دی چي دمني تر وتلو مخکي به يې دذکر سر دبولو څخه پاک وي، يعني تردغه مخکي به يې بولي نه وي کړي اويابه يې دبولو وروسته په اوبو باندي استنجاء وهلې وي، که دغه شرط موجودنه وي نوبيا په اوبو باندي پرېولل لازم دي[1].

## ۲۶۸ - په تېلوسره دمرداري لنګۍ پاکېدل

**الإستفتاء:** هغه لنګۍ چي په تېلو باندي پرېولل کيږي، که مرداره سي نو په تېلو باندي پاکيږي او که نه ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ويطهر مني أي محله يابس بفرك ولا يضر بقاء أثره إن طهر رأ س حشفة كأن كان مستنجيا بماء ... وإلا يكن يابسا أو لا رأسها طاهرا فيغسل كسائر النجاسات ولو دما عبيطا على المشهور بلا فرق بين منيه ولو رقيقا لمرض به ومنيها .

وفي ردالمحتار : ( قوله بلا فرق) أي في فركه يابساوغسله طريا (قوله ومنيها) أي المرأة كما صححه في الخانية وهو ظاهر الرواية عندنا كما في مختارات النوازل . والله اعلم ( ج ۱ ص ۲۲۸ كتاب الطهارة يطلق الدعاء على مايشمل الثناء ، كذا في الطحطاوي على الدرالمختار ج ۱ ص ۱۵۸ كتاب الطهارة باب الانجاس )

وفي البحر : وشمل ما إذا كان للثوب بطانة نفذ إليها وفيه اختلاف، والصحيح أن البطانة تطهر بالفرك كالظهارة؛ لأنه من أجزاء المني كما في النهاية وغيرها . ( ج ۱ ص ۳۹۰ كتاب الطهارة باب الانجاس ، كذا فی مجمع الانهر ج ۱ ص ۸۸ كتاب الطهارة باب الانجاس )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په داسي تېلوباندي پاکيږي چي نرم اودمرداري زائلونکي وي، لکه پټرول ياتېل خاک اوپه هغه شي باندي نه پاکيږي چي هغه غوړ وي، لکه غوړي؛ ځکه دغه حقيقي مرداري دی اوحقيقي مرداري په هرپاک، نرم، زائلونکي شي باندي پاکيږي[1].

## ۲۶۹ - چي دجامې مردارځای يې هېرسي

**الإستفتاء:** که ديوچادجامې يوطرف مردارسي اوبيادغه شخص څخه دغه طرف هېرسي نوددغه جامې کوم ځای به پرېولي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

اول خواحتياط دادی چي دغه جامه ټوله پرېولي،که ټوله جامه نه پرېولي نوبياښه خبره داده چي فکر وکړي، پر هرطرف چي دده غالب ګمان سو ، هغه طرف دي پريولي.

اوکه فکر ونه کړي، ببله فکرڅخه دجامې يوطرف پرېولي، په دغه کي هم مختار قول دادی چي جامه پاکه بلل کيږي، لمونځ پکښي صحيح دی[2].

---

[1] في ملتقى الابحر على هامش مجمع الانهر : يطهر بدن المصلي وثوبه من النجس الحقيقي بالماء وبكل مائع طاهر مزيل كالخل وماء الورد لا الدهن . ( ج ۱ ص ۸۶ كتاب الطهارة باب الانجاس ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، والبحر ج ۱ ص ۳۸۴ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[2] في خلاصة الفتاوى: اذا تنجس طرف من اطراف الثوب ونسيه فغسل طرفا من اطراف الثوب من غير تحر حكم بطهارة الثوب هو المختار . ( ج ۱ ص ۴۰ كتاب الطهارة الفصل السادس في

**٢٧٠-دجامې يوطرف پريولي لمونځ وکړي بيا مردار ځای معلوم سي**

**الإستفتاء:** که ديوچادجامې يوطرف مردارسو اوبياددغه شخص څخه دغه طرف هېرسو،دجامې يوطرف يې پرېولی، په دغه جامه سره يې لمونځونه وکړل، خو وروسته دجامې مردار طرف ورته معلوم سو، نواوس پردغه شخص ددغه لمونځونوراګرځول سته اوکه نه ،چي په دغه جامه کي يې کړي دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پردغه شخص باندي ددغه لمنځونو راګرځول سته چي په دغه جامه کي يې کړي دي[1].

---

غسل الثوب والدهن ونحوه ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٤٠ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب العرقی الذي يستقطر من دردي الخمر نجس حرام بخلاف النوشادر ، والهندية ج ١ ص ٤٣ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الاول في تطهير الانجاس)

[1] في خلاصة الفتاوی : ولو صلی مع هذا الثوب صلوات ثم ظهر ان النجاسة في الطرف الآخر يجب عليه اعادة الصلوات التي صلی مع هذا الثوب . ( ج ١ ص ٤٠ كتاب الطهارة الفصل السادس في غسل الثوب والدهن ونحوه ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٤٠ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب العرقی الذي يستقطر من دردي الخمر نجس حرام بخلاف النوشادر ، والهندية ج ١ ص ٤٣ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الاول في تطهير الانجاس )

## ۲۷۱ - غوړوته دمردار شي لوېدلووروسته دغوړودپاکولو طریقه

**الإستفتاء:**که په غوړو کي یومردار شی ولویږي په څه طریقه سره پاکیږی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصلیا:**

که دغه غوړي یخی وي نو دغه مردار شي اودده دشا اوخواځای غوړي به ورغورځوي.

اوکه دغه غوړي ویلي وي نوبیابه دغه غوړوته یو وارددغه غوړوپه اندازه اوبه ورواچوي اوسره وبه یې ښوروي اووروسته به یې پریږدي چي اوبه لاندي ولاړي سي اوغوړي لوړپاته سي، وروسته به یاغوړي په یوشي باندي ځیني راواخلي یابه دلاندي خواڅخه اوبه توی کړي، همداطریقه به دوهم اودریم وار تکرارکړي، هرکله چي یې دغه طریقه دري واره وکړل نوغوړي پاک بلل کیږي.

اوکه دغه غوړي دمردار شي تړورلوېدلووروسته یخی سوي وي نوبیابه اول وارغوړي ویلي کړي، وروسته به دغه مخکنۍ طریقه دري واره عملي کړي[1].

---

[1] في خلاصة الفتاوى: وان كان جامدا قور ماحوله . ( ج ۱ ص ۴۱ كتاب الطهارة الفصل السادس في غسل الثوب والدهن ونحوه )

وفي الهندية : الدهن النجس يغسل ثلاثا بأن يلقى في الخابية ثم يصب فيه مثله ماء ويحرك ثم يترك حتى يعلو الدهن فيؤخذ أو يثقب أسفل الخابية حتى يخرج الماء هكذا ثلاثا فيطهر . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس )

وفي ردالمحتار : والدهن السائل يلقى فيه الماء، والجامد يغلى به حتى يعلو . ( ج ۱ ص ۲۴۵ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في تطهير الدهن والعسل )

## ۲۷۲ - تنور په مردار لانده ټوکر پاکول او بیا ډوډۍ پرېخول

**الإستفتاء:** که یو چا په مردار لانده ټوکر باندي تنور پاک کړي ، وروسته چي ډوډۍ پرېخوي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که د تنور دغه لوندوالی وچ سو، وروسته یې بیا ډوډۍ پرېخه کړه ، نو دغه ډوډۍ پاکه ده او که یې د تنور تروچېد لو د مخه ډوډۍ پرېخه کړه نو دغه ډوډۍ ناپاکه ده.[1]

## ۲۷۳ - د مردار عسلو د پاکولو طریقه

**الإستفتاء:** که عسلو ته مرداري ورولوېدی نو په څه طریقه سره پاکیږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه عسلوته به د دغه عسلو په اندازه اوبه ورواچوي، تر داسي وخته پوري به جوش ور کړي چي دغه اوبه وچي سي، بیا به دوهم او دریم ځل همدغه طریقه تکرار کړي تر دریم وار وروسته دغه عسل پاک بلل کیږي[2].

---

[1] في خلاصة الفتاوی : امرأة سعرت التنور ثم مسحته بخرقة نجسة مبتلة انكانت حرارة النار اكلت بلة الماء قبل الصاق الخبز بالتنور لايتنجس الخبز واذا لم تأكل يتنجس . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة الفصل السادس في غسل الثوب والدهن ونحوه جنس اخر ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۴ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس )

[2] في دررالحكام شرح غرر الاحكام : ولو تنجس العسل فتطهيره أن يصب فيه ماء بقدره فيغلي حتى يعود إلى مكانه، والدهن يصب عليه الماء فيغلي فيعلو الدهن الماء فيرفع بشيء هكذا يفعل ثلاث مرات . ( ج ۱ ص ۴۵ كتاب الطهارة باب تطهير الانجاس ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۹۱ كتاب الطهارة باب الانجاس ، وردالمحتار ج ۱ ص ۲۴۵ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في تطهير الدهن والعسل )

# الفصل الثاني في الاعيان النجسة

## ( دوهم فصل دهغه شيانوپه بيان کي دی چي مردار وي )

### ۲۷۴ - دښځي شيدې پاکي دي که نه

**الإستفتاء:** دښځي شيدې پاکي دي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دښځي شيدې پاکي دي شی نه په مرداريږي[۱].

### ۲۷۵ - پرپسه دوړيو دشکو لپاره تراوبو تويولو وروسته غوښي پرېولل

**الإستفتاء:** پرپسه باندي چي دوړيو دشکولودپاره جوش اوبه توی کړل سي، وروسته ددغه پسه غوښي پرېولل غواړي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دفقهاؤ رحمهم الله تعالى دکلام څخه معلوميږي چي دغه غوښي درې واره پرېولل غواړي ځکه فرمايي: چي که پسه په جوش اوبوکي دوړيو دسستېدلو دپاره داخل کړي نوددغه پسه غوښي درې واره پرېولل غواړي؛ ځکه دغه اوبه ددغه پسه دوړيو بېخوته داخليږي.

اومعلومه خبره ده چي دا ستفتاء په ليکل سوی صورت کي هم دغه اوبه

---

(۱) في الموسوعة الفقهية : اللبن إما أن يكون من آدمي أو حيوان فإن كان من آدمي حي فهو طاهر باتفاق . ( ج ۴۰ ص ۸۸ نجاسة اللبن )

دو ړيو ښخوته داخليږي[1].

## ۲۷۶ -دپوچو خرشينو خوشايو يابل مردار شي ايرې پاکي دي که نه

**الإستفتاء:** که پوچي، خرشينه، خوشايي، يابل مردار شی وسوځول سي، ددغه ايرې پاکي دي او که نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه ټولو شيانو ايرې پاکي دي[2].

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وكذا دجاجة ملقاة حالة غلى الماء للنتف قبل شقها .

وفي ردالمحتار : (قوله: وكذا دجاجة إلخ) قال في الفتح: إنها لا تطهر أبدا لكن على قول أبي يوسف تطهر، والعلة والله أعلم تشربها النجاسة بواسطة الغليان، وعليه اشتهر أن اللحم السميط بمصر نجس، لكن العلة المذكورة لا تثبت ما لم يمكث اللحم بعد الغليان زمانا يقع في مثله التشرب والدخول في باطن اللحم، وكل منهما غير محقق في السميط حيث لا يصل إلى حد الغليان، ولا يترك فيه إلا مقدار ماتصل الحرارة إلى ظاهرالجلد لتنحل مسام الصوف، بل لو ترك يمنع انقلاع الشعر؛ فالأولى في السميط أن يطهر بالغسل ثلاثا فإنهم لا يتحرسون فيه عن النجس . ( ج ١ ص ٢٤٥ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في تطهير الدهن والعسل ، كذا في البحر ج ١ ص ٤١٥ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والحرق كالغسل وقدمنا أنه من المطهرات .

وفي ردالمحتار : (قوله والحرق كالغسل) لأن النار تأكل ما فيه من النجاسة حتى لا يبقى فيه شيء، أو تحيله فيصير الدم رمادا فيطهر بالاستحالة، ولهذا لو أحرقت العذرة وصارت رمادا طهرت للاستحالة، كالخمر إذا تخللت، وكالخنزير إذا وقع في المملحة وصار ملحا . ( ج ٥ ص ٥١٩ ( مسائل شتى )

## ۲۷۷- دهغه کباړي ټوکرانو پرېولل چي ښکاره مرداري نه وي باندي

**الإستفتاء:** که يو چا دکباړي ټوکران رانيول او ښکاره مرداري پرموجوده نه وه، دغه ټوکران پرېولل غواړي او که نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په دغه شيانوکي پتلون، نېکر، پرتوګ، يالنګ وي، دغه پرېولل غواړي، که يې نه پرېولي لمونځ پکښې مکروه دی.

اوددغه شيانو ماسوا په نورو ټوکرانوکي دراجح قول موافق لازمه نه ده چي خامخا به يې پرېولي، خو ښه خبره داده چي پرېولل سي؛ ځکه ځيني فقهاء کرام په دغه جامه کي لمونځ مکروه بولي[1].

## ۲۷۸- که لندې پښې پرمردار وچ فرش باندي کښېږدي

**الإستفتاء:** که يو څوک لندې پښې پرهغه مردار فرش باندي کښېږدي چي وچ سوی وي دغه څه حکم لري؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه فرش دپښو دلوندوالي په وجه لوندسي اوددغه ناپاکۍ اثريعني خوند، رنګ يابوی يې پرپښه باندي ښکاره سي، نو په دغه صورت کي يې پښې

---

[1] في المبسوط للشيباني : قال أبو حنيفة لا بأس بلبس ثياب أهل الذمة كلها والصلاة فيها ما لم يعلم أنه أصابه قذر إلا الإزار والسراويل فإنه كره الصلاة في ذلك حتى يغسل . ( ج ۱ ص ۶۹ كتاب الصلاة باب ثياب اهل الذمة والصلاة فيها ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۵۷ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب في الامر بالمعروف ، وفتح القدير ج ۱ ص ۱۸۶ كتاب الطهارة باب الانجاس وتطهيرها )

په مرداريږي، که دمرداري اثر پرپښه باندي ښکاره نه سي، بياپښې نه په مرداريږي[۱].

## ۲۷۹ - دخوب په وخت دخولې څخه راتوی سوي اوبه پاکي دي که نه

**الإستفتاء:** که ديوچادخولې څخه دخوب په وخت کي اوبه راتوی سوې، دغه اوبه پاکي دي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اوبه پاکي دي[۲].

---

[۱] في الموسوعة الفقهية: قال الحنفية لو ابتل فراش أو تراب نجسان من عرق نائم أو بلل قدم وظهر أثر النجاسة في البدن والقدم تنجسا وإلا فلا . ( ج ۴۰ ص ۹۴ نجاسة ما تلاقيه النجاسة ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۵۴ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب في الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء ، و مراقي الفلاح على هامش الطحطاوي ص ۱۲۶ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[۲] في حاشية الشلبي على هامش تبيين الحقائق: قال قاضي خان في فتاواه الماء الذي يسيل من فم النائم طاهر هو الصحيح؛ لأنه متولد من البلغم وقال الولوالجي ماء فم النائم إذا أصاب الثوب فهو طاهر سواء كان من البلغم أو منبعثا من الجوف لأن الغالب في الماء الذي يخرج من الفم حالة النوم متولد من البلغم فيكون طاهرا كيفما كان عند أبي حنيفة ومحمد وعليه الفتوى .( ج ۱ص ۲۰۳ كتاب الطهارة باب الانجاس ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۱۰۲ كتاب الطهارة مطلب نواقض الوضوء ، ومراقي الفلاح ص ۷۱ كتاب الطهارة فصل ينقض الوضوء اثنا عشر شيأ )

## ۲۸۰ - دمرداري جامې دپرېوللووروسته چي څاڅکي راتوی سي

**الإستفتاء:** که یوشخص یو ناپاکه جامه پرېولي، وروسته بیادغه جامه پریوشي باندي هواره کړي اودهوارېدلو وروسته داوبوڅاڅکي ورڅخه راتوی سي دغه څاڅکي پاک دي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه شخص دغه جامه تراخیر وار پرېوللو وروسته داسي نښتېځلې وه چي دپرېولونکي په طاقت یې نور څاڅکي نه کول نودغه څاڅکي پاک دي، شی نه په مرداریږي ، اوکه دغه شخص دغه جامه تراخیر ي وار پرېوللو وروسته دغسي نه وه نښتېځلې، نوبیادغه څاڅکي ناپاک دي[1].

## ۲۸۱ - که پاکواوبوته مرداره ډبره ورولویږي څاڅکي راوغورځوي

**الإستفتاء:** که پاکو اوبوته یومردار شی ورولوېدی لکه ډبره اوددغه اوبوڅخه څاڅکي راوغورځېدل، دغه څاڅکي که دیوچاجامې یابدن ته ورسیږي نودغه جامه یابدن په مرداریږي اوکه نه ؟

---

[1] في الهندية : إن غسل ثلاثا فعصر في كل مرة ثم تقاطرت منه قطرة فأصابت شيئا إن عصره في المرة الثالثة وبالغ فيه بحيث لو عصره لايسيل منه الماء فالثوب واليد وما تقاطر طاهر وإلا فالكل نجس . ( ج ۱ ص ۴۲ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس ، كذا في التاتارخانية ج ۱ ص ۴۵۱ كتاب الطهارة الفصل الثامن في تطهير النجاسات المسئلة ( ۱۱۷۸ ) ، حاشية الشلبي على هامش تبيين الحقائق ج ۱ ص ۲۰۶ كتاب الطهارة باب الانجاس )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه څاڅکي چي هرشي ته ورسيږي هغه شی ترهغه وخته پوري نه په مرداريږي چي ددغه مرداري اثر پرمعلوم سوی نه وي[1].

## ۲۸۲ - په اوبوچي مردار شی پرېولل سي دغه اوبه پاکي دي که نه

**الإستفتاء:** په کوماوبوسره چي مرداره جامه يابل مردار شی پرېولل سي دغه اوبه پاکي دي اوکه مرداري دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اوبه مرداري دي[2].

---

[1] في مراقي الفلاح : ولو ألقيت نجاسة في ماء فأصابه من وقعها لاينجسه ما لم يظهر أثر النجاسة .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "لا ينجسه" سواء كان الماء جاريا أو راكدا لأن الغالب أن الرشاش المتصاعد من صدم شيء للماء إنما هو من أجزاء الماء لا من أجزاء ذلك الشيء فيحكم بالغالب ما لم يظهر خلافه . ( ص ١٢٥ كتاب الطهارة باب الانجاس والطهارة عنها ، كذا في الهندية ج ١ ص ٤٧ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثاني في الاعيان النجسة ، ومجمع الانهر ج ١ ص ٩٥ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[2] في البدائع : أما غسالة النجاسة الحقيقية وهي ما إذا غسلت النجاسة الحقيقية ثلاث مرات فالمياه الثلاث نجسة؛ لأن النجاسة انتقلت إليها إذ لا يخلو كل ماء عن نجاسة فأوجب تنجيسها وحكم المياه الثلاث في حق المنع من جواز التوضؤ بها، والمنع من جواز الصلاة بالثوب الذي أصابته سواء لا يختلف ( ج ١ ص ٢٠٦ كتاب الطهارة فصل في الطهارة الحقيقة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٣٨ كتاب الطهارة باب الانجاس مطلب: العرقي الذي يستقطر من دردي الخمر نجس حرام، بخلاف النوشادر ، والبحر ج ١ ص ٤٠٤ كتاب الطهارة باب الانجاس )

## ۲۸۳ - دحيوان تر حلالولو وروسته درګونو او غوښود پاتهويني حکم

**الإستفتاء:** دحيوان ترحلالېدلو وروسته چي په رګونو اوياغوښوكي كومه وينه پاته سي په دغه سره جامه يابل شی مرداريږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وينه سره جامه اوبل شی نه مرداريږي[1].

## ۲۸۴ - دحلالېدلودوخت بهېدونكې وينه چي په غوښوپوري ومښلي

**الإستفتاء:** كه هغه وينه په غوښوپوري ومښلي چي هغه دذبح (حلالېدلو) په وخت كي وبهيږي نودغه وينه اوس پاكه ده اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه وينه مرداره ده[2].

---

[1] في الهندية : وما يبقى من الدم في عروق الذكاة بعد الذبح لا يفسد الثوب وإن فحش. كذا في فتاوى قاضي خان وكذا الدم الذي يبقى في اللحم؛ لأنه ليس بمسفوح . ( ج ١ ص ٤٦ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثاني في الاعيان النجسة ، كذا في التاتارخانية ج ١ ص ٤٣٢ كتاب الطهارة الفصل السابع في النجاسات واحكامها المسئلة ( ١٠٨٣ ) ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٣٤ كتاب الطهارة باب الانجاس مبحث في بول الفأرة وبعرها وبول الهرة)

[2] في الهندية : وما لزق من الدم السائل باللحم فهو نجس . ( ج ١ ص ٤٦ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثاني في الاعيان النجسة ، كذا في التاتارخانية ج ١ ص ٤٣٢ كتاب الطهارة الفصل السابع في النجاسات واحكامها المسئلة ( ١٠٧٧ ) ، والمحيط البرهاني ج ١ ص ٢١٢ كتاب الطهارة الفصل السابع في النجاسات واحكامها )

**۲۸۵-پاکه وچه جامه په لونده مرداره جامه کي وپېچل سي لونده سي**

**الإستفتاء:** که يوه وچه پاکه جامه په بله لونده مرداره جامه کي وپېچل سي، ياپرکښېښودل سي اولونده سي، دغه پاکه جامه په دغه سره مردارېږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دفقهي په عاموکتابونوکي فرمايي چي که دغه پاکه جامه دومره لونده سي چي په نښتېځلوسره څاڅکي ورڅخه توئيږي نودغه پاکه جامه په دغه لوندوالي سره مردارېږي.

اوکه دغه پاکه جامه دومره نه وه لونده سوې چي په نښتېځلوسره څاڅکي ورڅخه توئيږي نودغه پاکه جامه په دغه لوندوالي سره نه مردارېږي.

خوپه شرح المنية کي په دغه مسئله کي څه تفصيل سته، هغه دادی چي فرمايي:که دغه مرداره جامه په هغه شي سره مرداره سوې وه چي هغه په خپل ځان کي مردار وو لکه بولي مثلاً نوددغه جامې لوندوالی چي پاکي جامې ته ورسيږي هغه په مردارېږي.

اوکه دغه مرداره جامه په هغه شي سره مرداره سوې وه چي هغه په خپل ځان کي مردار نه وو، بلکه دبل مرداري په وجه مردار سوی وو، لکه اوبه چي په يوشي سره مرداري سي، نوپه دغه صورت کي که ددغه مرداري اثر پرهغه پاکه جامه معلوم سو، اوياهغه پاکه جامه دومره لونده سوه چي په نښتېځلوسره څاڅکي ورڅخه توئېدل، په دغه دواړو صورتو کي دغه پاکه جامه مردارېږي.

اوکه نه ددغه مرداري اثر پردغه پاکه جامه باندي معلومېدی، اونه دغه پاکه جامه دومره لنده وه چي په نښتېځلوسره څاڅکي ورڅخه تويېدل په دغه صورت کي دغه پاکه جامه په دغه لندوالي سره نه مرداريږي.

او په فتح القدير کي بيافرمايي: که دغه پاکه جامه دومره لونده سوه چي په نښتېځلوسره خوڅاڅکي نه ورڅخه توئېدل، خو دګوتو په کښېکښلوسره اوبه پر ښکاره کېدې، اوچي ګوتي ورڅخه ليري سي، بيرته دغه اوبه پټېدلې، دغه هم دغسي حکم لري لکه په نښتېځلوسره چي څاڅکي ورڅخه توئيږي، يعني په دغه صورت کي هم دغه پاکه جامه ناپاکه بلل کيږي.

او احتياط هم په دغه کي دی چي دغه دشرح المنيه اوفتح القديرقيدونه معتبر سي[1].

---

[1] في ردالمحتار : اعلم أنه إذا لف طاهر جاف في نجس مبتل واكتسب الطاهر منه اختلف فيه المشايخ، فقيل: يتنجس الطاهر. واختار الحلواني أنه لا يتنجس إن كان الطاهر بحيث لا يسيل منه شيء ولا يتقاطر لو عصر وهو الأصح كما في الخلاصة وغيرها، وهو المذكور في عامة كتب المذهب متونا وشروحا، وفتاوى في بعضها بلا ذكر خلاف، وفي بعضها بلفظ الأصح، وقيده في شرح المنية بما إذا كان النجس مبلولا بالماء لا بنحو البول، وبما إذا لم يظهر في الثوب الطاهر أثر النجاسة، وقيده في الفتح أيضا بما إذا لم ينبع من الطاهر شيء عند عصره ليكون ما اكتسبه مجرد ندوة؛ لأنه قد يحصل بلي الثوب وعصره نبع رءوس صغار ليس لها قوة السيلان ثم ترجع إذا حل الثوب، ويبعد في مثله الحكم بالطهارة مع وجود المخالطة حقيقة. قال في البرهان بعد نقله ما في الفتح: ولا يخفى منه أنه لا يتيقن بأنه مجرد ندوة إلا إذا كان النجس الرطب هو الذي لا يتقاطر بعصره إذ يمكن أن يصيب الثوب الجاف قدر كثير من النجاسة ولا ينبع منه شيء بعصره كما هو مشاهد عند البداية بغسله. فيتعين أن يفتى بخلاف ما صححه الحلواني اه وأقره الشرنبلالي. ووجهه ظاهر. والحاصل أنه على ما صححه الحلواني: العبرة للطاهر المكتسب إن كان بحيث لو انعصر قطر تنجس وإلا لا، سواء

كان النجس المبتل يقطر بالعصر أو لا. وعلى ما في البرهان العبرة للنجس المبتل إن كان بحيث لو عصر قطر تنجس الطاهر سواء كان الطاهر بهذه الحالة أو لا، وإن كان بحيث لم يقطر لم يتنجس الطاهر وهذا هو المفهوم من كلام الزيلعي في مسائل شتى آخر الكتاب، مع أن المتبادر من عبارة المصنف هناك كالكنز وغيره خلافه، بل كلام الخلاصة والخانية والبزازية وغيرها صريح بخلافه . ( ج ١ ص ٢٥٥ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب في الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء ، كذا في شرح المنية ص ١٧٤ كتاب الطهارة فصل في الآسار والطحاوي على مراقي الفلاح ص ١٢٧ كتاب الطهارة باب الانجاس والطهارة عنها )

وفي فتح القدير : ولا يخفى أنه قد يحصل بلي الثوب وعصره نبع رءوس صغار ليس لها قوة السيلان ليتصل بعضها ببعض فتقطر بل تقر في مواضع نبعها ثم ترجع إذا حل الثوب، ويبعد في مثله الحكم بطهارة الثوب مع وجود حقيقة المخالط، فالأولى إناطة عدم النجاسة بعدم نبع شيء عند العصر ليكون مجرد ندوة لا بعدم التقاطر . ( ج ١ ص ١٧٠ كتاب الطهارة باب الانجاس وتطهيرها )

# الفصل الثالث في الاستنجاء

# ( دريم فصل داستنجاء په بيان كي دى )

## ٢٨٦ - كه معذورخپله پراستنجاء قدرت نه لري اوروانی اوبه هم نه وي

**الإستفتاء:** كه يومعذورشخص پخپله پراستنجاء باندي قدرت نه ولري، لكه لاسونه يې پرې وي، ياكارنه كوي اوروانی اوبه هم نه وي چي دى پكښي كښيني، اويا په روانواوبوكي پركښېنستلويې قدرت نه درلودى، نودغه شخص به څه كوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه دغه معذورنارينه وي او خپله ښځه ورسره موجوده وي، دغه ښځه به استنجاء ورووهي.

اوكه دغه معذورښځه وي نوكه يې خاوندورسره موجودوي، دغه خاوندبه استنجاء ورووهي.

اوكه دنارينه سره خپله ښځه نه وي موجوده اويادښځي سره خپل خاوند موجودنه وي، بيا به دغه معذوراستنجاء پريږدي په بل چاباندي استنجاء وهل ورته روانه دي[١].

---

[١] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : فلو مشلولة ولم يجد ماء جاريا ولا صابا ترك الماء، ولو شلتا سقط أصلا كمريض ومريضة لم يجدا من يحل جماعه .

وفي ردالمحتار : (قوله: كمريض إلخ) في التتارخانية: الرجل المريض إذا لم تكن له امرأة ولا أمة وله ابن أو أخ وهو لا يقدر على الوضوء قال يوضئه ابنه أو أخوه غير الاستنجاء؛ فإنه لا يمس فرجه

## ٢٨٧ -داستنجاء په مروجه كاغذسره استنجاء وهل

**الإستفتاء:** دغه كاغذچي داستنجاء وهلودپاره استعماليږي په دغه سره استنجاء وهل روادي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه كاغذسره استنجاء وهل روادي؛ ځكه دغه كاغذپه عرف كي يومحترم شى نه دى اونه دخط دپاره جوړ سوى دى، اونه په عادت كي دخط دپاره استعماليږي[1].

---

ويسقط عنه والمرأة المريضة إذا لم يكن لها زوج وهي لا تقدر على الوضوء ولها بنت أو أخت توضئها ويسقط عنها الاستنجاء اه ولا يخفى أن هذا التفصيل يجري فيمن شلت يداه؛ لأنه في حكم المريض . ( ج ١ ص ٢٥٠ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب اذا دخل المستنجي في ماء قليل ،كذا في الهندية ج ١ ص ٥٠/٤٩ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الثالث في الاستنجاء، وفتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ١ ص ٣٣ كتاب الطهارة باب الوضوء والغسل فصل في صفة الوضوء)

[1] في ردالمحتار : وكذا ورق الكتابة لصقالته وتقومه، وله احترام أيضا لكونه آلة لكتابة العلم، ولذا علله في التتارخانية بأن تعظيمه من أدب الدين وإذا كانت العلة في الأبيض كونه آلة للكتابة كما ذكرناه يؤخذ منها عدم الكراهة فيما لا يصلح لها إذا كان قالعا للنجاسة غير متقوم كما قدمناه من جوازه بالخرق البوالي، وهل إذا كان متقوما ثم قطع منه قطعة لا قيمة لها بعد القطع يكره الاستنجاء بها أم لا؟ الظاهر الثاني؛ لأنه لم يستنج بمتقوم، نعم قطعه لذلك الظاهر كراهته لو بلا عذر، بأن وجد غيره؛ لأن نفس القطع إتلاف . ( ج ١ ص ٢٥٠ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب اذا دخل المستنجي في ماء قليل )

وفي منهاج السنن : فالكاغذ المعد لذلک في عصرنا لا يكره الاستنجاء به . ( ج ١ ص ٥٨ ابواب الطهارة باب ماجاء في كراهية مايستنجى به جواز الاستنجاء بالكاغذ المعد له )

## ۲۸۸-په بيت الخلاء کي يوازي په اوبو سره استنجاء وهل

**الإستفتاء:** په موجوده وخت کي چي په ځينو ځايونو کي په بيت الخلاء کي د استنجاء د پاره داوبو څخه ماسوابل شی موجود نه وي، نوايا په دغه يوازي اوبو سره استنجاء وهل روادي اوکه نه، اوکه رواوي نوسنت په اداء کيږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

يواځي په اوبوسره استنجاء وهل روادي اوسنت په ادا کيږي، خوپه دې شرط چي يقين يې راسي چي بولي دربدلي دي اوتردغه دمخه روا نه ده[1].

## ۲۸۹ - که بېله لڅوالي دعورت استنجاء ممکنه نه وي لکه پرعامه لار

**الإستفتاء:** که په يوځای کي داسي حالت وي چي دعورت دکشف( لڅوالي ) ماسوا په اوبو سره استنجاء وهل نه وي ممکن ، لکه په سفرکي چي پرلاره باندي دغه حالت په ډېروځايونو کي پېښيږي، نوپه دغه وخت کي به سړی استنجاء وهي اوکه نه ؟

---

[1] في ردالمحتار : ثم اعلم أن الجمع بين الماء والحجر أفضل ويليه في الفضل الاقتصار على الماء، ويليه الاقتصار على الحجر وتحصل السنة بالكل وإن تفاوت الفضل . ( ج ۱ ص ۲۴۸ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب اذا دخل المستنجي في ماء قليل ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۴۸ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثالث في الاستنجاء )

وفي الهندية : والاستبراء واجب حتى يستقر قلبه على انقطاع العود . ( ج ۱ ص ۴۹ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثالث في الاستنجاء ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۵۳ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب في الفرق بين الاستبراء والاستنقاء والاستنجاء)

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وخت کي به استنجاء نه وهي که څه هم مرداري ترخپل مخرج ډېر اوښتی وي ددغه سره به اودس اولمونځ وکړي ، خوپه ردالمحتارکي فرمايي چي هرکله چي دغه شخص داسي ځای ته ورسيږي چي ښځه دعورت دلڅوالي څخه استنجاء وهلای سي نو راجح قول دادی چي هغه لمونځونه به بيرته راگرځوي چي ښځه استنجاء يې ددهغه مرداري سره کړي وي چي تريوه درهم ډېروي[1].

## ٢٩٠ - ښځه اوبو يوازي په لوټه يابل شي استنجاء وهل

**الإستفتاء:** ښځه اوبو څخه يوازي په لوټه ، يابل شي سره استنجاوهل روادي اوکه نه ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : فلو كشف له صار فاسقا .

وفي ردالمحتار : (قوله: فلو كشف له إلخ) أي: للاستنجاء بالماء قال نوح أفندي: لأن كشف العورة حرام ومرتكب الحرام فاسق، سواء تجاوز النجس المخرج أو لا، وسواء كان المجاوز أكثر من الدرهم أو أقل، ومن فهم غير هذا فقد سها . ( ج ١ ص ٢٤٨ كتاب الطهارة فصل في الاستنجاء مطلب اذادخل المستنجي في ماء قليل ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٣٨ كتاب الطهارة فصل فيما يجوز له الاستنجاء )

وفي ردالمحتار : (قوله: فيتركه) أي: الاستنجاء بالماء وإن تجاوزت المخرج وزادت على قدر الدرهم ولم يجد ساترا أو لم يكفوا بصرهم عنه بعد طلبه منهم، فحينئذ يقللها بنحو حجر ويصلي. وهل عليه الإعادة؟ الأشبه نعم . ( ج ١ ص ٢٤٨ كتاب الطهارة فصل في الاستنجاء مطلب اذا دخل المستنجي في ماء قليل )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که مرداري ترخپل مخرج نه وي تېرسوی اویاتېرسوی وي، خودغه دمخرج مرداري اودغه تېرسوی مرداري دواړه په یوځای کولوسره دیوه درهم تراندازې نه زیاتېدی، په دغه وخت کي بېله اوبو یوازي په لوټه، یابل پاکونکي شي باندي استنجاء روادہ.

اوکه مرداري ترخپل مخرج دومره تېرسوی وي چي یوازي دغه تېرسوی مرداري دیوه درهم تر اندازې زیات وي، نوپه دغه وخت کي په اوبوسره استنجاء وهل فرض دی، په بل شي سره نه صحیح کیږي.

اوکه مرداري ترخپل مخرج تېرسوی وي اودغه تېرسوی مرداري یوازي دیوه درهم تراندازې نه زیاتېدی، خو دمخرج دمرداري سره په یوځای کولو بیاتړول دیوه درهم تراندازې زیاتېدی، په دغه کي اختلاف دی، عام او راجح قول دادی چي په دغه وخت کي بېله اوبو یوازي په لوټه یابل پاکونکي شي باندي استنجاء وهل روادي، خواحتیاط دادی چي په اوبوسره استنجاء ووهي[1].

---

[1] في الهندية : ثم الاستنجاء بالأحجار إنما يجوز إذا اقتصرت النجاسة على موضع الحدث فأما إذا تعدت موضعها بأن جاوزت الشرج أجمعوا على أن ما جاوز موضع الشرج من النجاسة إذا كانت أكثر من قدر الدرهم يفترض غسلها بالماء ولا يكفيها الإزالة بالأحجار وكذلك إذا أصاب طرف الإحليل من البول أكثر من قدر الدرهم يجب غسله وإن كان ما جاوز موضع الشرج أقل من قدر الدرهم أو قدر الدرهم إلا أنه إذا ضم إليه موضع الشرج كان أكثر من قدر الدرهم فأزالها بالحجر ولم يغسلها بالماء يجوز عند أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله تعالى ولا يكره. كذا في الذخيرة وهو الصحيح. كذا في الزاد . ( ج ۱ ص ۴۸ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثالث في

## ۲۹۱ - په راسته لاس سره د استنجاء وهلو حکم

**الإستفتاء:** په راسته لاس سره استنجاء وهل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که عذر نه وي نو بېله عذره په راسته لاس سره استنجاء وهل مکروه کاردی. اوکه عذر وي لکه چپه لاس يې پرې، يا زخمي وي، نو بيا دي په راسته لاس سره استنجاء ووهي[1].

## ۲۹۲ - په استنجاء کي دډبرو تعداد

**الإستفتاء:** استنجا په څوډبرو سره وهل کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داستنجاء دپاره يومعين عدد نسته دغه مرداري چي په هرڅو واره سره ليري سي سنت په ادا کيږي[2].

---

الاستنجاء ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٣٥ كتاب الطهارة فصل في الاستنجاء ، والبحر ج ١ ص ٤٢٠ كتاب الطهارة باب الانجاس )

[1] في البحر : وأما باليمين فللنهي المتقدم، فإن كان باليسرى عذر يمنع الاستنجاء بها جاز أن يستنجي بيمينه من غيركراهة . ( ج ١ص٤٢١ كتاب الطهارة باب الانجاس ، كذا في مجمع الانهر ج١ص ١٠٠ كتاب الطهارة باب الانجاس ، ومراقي الفلاح ص ٣٩ كتاب الطهارة فصل فيمايجوز به الاستنجاء )

[2] في الهندية : وليس في الاستنجاء عدد مسنون. كذا في التبيين وإنما الشرط هو الإنقاء حتى لو حصل بحجر واحد يصير مقيما للسنة ولم يحصل بثلاثة أحجار لا يصير مقيما للسنة . ( ج ١ ص ٤٨ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة واحكامها الفصل الثالث في الاستنجاء ، كذا في البحر

## ٢٩٣ - داستنجاء په وخت کي قبلې شريفي ته مخ ياشاگرځول

**الإستفتاء:** داستنجا په وخت کي قبلې شريفي ته مخ گرځول، ياشاگرځول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که عذرنه وي نوداستنجاء په وخت کي قبلې شريفي ته مخ گرځول، ياشا گرځول دادب خلاف کاردی اوکه عذروي بيا پروانه کوي[1].

---

ج ١ ص ٤١٨ كتاب الطهارة باب الانجاس ، والمحيط البرهاني ج ١ ص ٣٩ كتاب الطهارة الفصل الاول في الوضوء فصل في الاستنجاء وكيفيته )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (كما كره) تحريما (استقبال قبلة واستدبارها ل) أجل (بول أو غائط) فلو للاستنجاء لم يكره ... (إن أمكنه وإلا فلا) بأس .

وفي ردالمحتار : (قوله: لم يكره) أي: تحريما، لما في المنية أن تركه أدب، ولما مر في الغسل أن من آدابه أن لا يستقبل القبلة؛ لأنه يكون غالبا مع كشف العورة، حتى لو كانت مستورة لا بأس به . ( ج ١ ص ٢٥١ كتاب الطهارة باب الانجاس فصل في الاستنجاء مطلب اذا دخل المستنجي في ماء قليل ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٤١ كتاب الطهارة فصل فيمايجوز به الاستنجاء )

# كتاب الصلاة

## باب الاوقات

### ۲۹۴ - دسهار دلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء:** دسهاردلمانځه دپاره اصلي وخت دڅه وخته شروع کيږي بيا ترڅه وخته پوري دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دسهار دلمانځه اول وخت دسپېدو دراپورته کېدلو سره شروع کيږي اودلمر راختلو سره پای ته رسيږي[1].

### ۲۹۵ - دسهار دلمانځه دپاره مستحب اومکروه وختونه

**الإستفتاء:** دسهاردلمانځه مستحب اومکروه وختونه کوم دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دسهاردلمانځه دپاره دومره ځنډ مستحب دی چي ترلمانځه وروسته دلمر ترراختلو پوري دومره وخت پاته سي، چي په مناسبه طريقه باندي غسل اودوهم

---

[1] في الهندية : وقت الفجر من الصبح الصادق وهو البياض المنتشر في الأفق إلى طلوع الشمس . ( ج ۱ ص ۵۱ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة ، كذا في الهداية ج ۱ ص ۷۶ ، والبدائع ج ۱ ص ۳۱۵ كتاب الصلاة وقت الفجر والظهر )

وار لمونځ پکښې کېدلای سي ، او مکروه وخت نه لري[1].

## ۲۹۶ - په روژه کي د سهار لمونځ د پروختي کول

**الإستفتاء:** د ښارونو په اکثر مسجدونو کي د روژې د میاشتي د سهار لمونځ د جماعت د کثرت په وجه په اول وخت کي کیږي د غه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

اصلا زموږ په مذهب کي د سهار د لمانځه ځنډول افضل دي، خو که د جماعت د پروالي پر بناء باندي د غه لمونځ په اول وخت کي اداء سي نو افضل بلل کیږي ، خو په دې شرط چي وخت یقینا داخل سوی وي او د غه خبره زموږ د مذهب د قانون څخه مخالفه نه ده؛ ځکه زموږ په مذهب کي چي ځنډول افضل دي هغه هم د دغه د پاره د جماعت د پروالی راسي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والمستحب للرجل الابتداء في الفجر بإسفار والختم به هو المختار بحيث يرتل أربعين آية ثم يعيده بطهارة لو فسد .

وفي ردالمحتار : (قوله: ثم يعيده بطهارة) أي يعيد الفجر: أي صلاته مع ترتيل القراءة المذكورة ويعيد الطهارة لو فسد بفسادها أو ظهر فساده بعدمها ناسيا والحاصل أن الإسفار أن يمكنه إعادة الطهارة ولو من حدث أكبر . ( ج ۱ ص ۲۶۹ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۱۰۶ كتاب الصلاة )

[2] في فيض الباري : والزمان اذاذاک كان زمان الشدة والناس كانوايتقيدون بصلوة الليل فلم تكن الجماعة تختل بالتغليس ثم اذانشأالاسلام وكثرالمسلمون وعلم ان فيهم ضعفاعمل بالاسفارفي زمن الصحابة لئلايفضي الى تقليل الجماعة وقدعلمت فيماسبق ان بطأالناس وتعجيلهم مماقدراعاه النبي صلى الله عليه وسلم ايضافلواجتمع الناس ايضافي التغليس لقلنابه ايضاكمافي مبسوط السرخسي في

## ۲۹۷ - څه خلګ دلمر راختلو په وخت کي دسهار لمونځ کوي

**الإستفتاء:** ځيني عوام خلګ دسهار لمونځ دلمر راختلو په وخت کي کوي اوزموږ دمذهب فقهاء کرام فرمايي: چي په دغه وخت کي هيڅ لمونځ روا نه دی، نو دغه خلګ په دغه وخت کي دلمانځه دکولو څخه منع کړل سي اوکه نه؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که داسي وي چي که دغه خلګ په دغه وخت کي دلمانځه دکولو څخه منع کړل سي نودوی بله ورځ خپل لمونځ تردغه وخت دمخه په صحيح وخت کي کوي، نو بايد په دغه وخت کي دلمانځه دکولو څخه منع کړل سي.

اوکه دابېره وي چي که دوی په دغه وخت کي دلمانځه دکولو څخه منع کړل سي نو بيا دغه دسهارلمونځ بالکل پرېږدي، نو دغه خلګ به بيا په دغه وخت کي دلمانځه دکولو څخه نه منع کيږي[1].

---

باب التيمم انه يستحب التغليس في الفجروالتعجيل في الظهراذااجتمع الناس ... كنت اتسحرفي اهلي ثم يكون سرعة بي ان ادرك صلوة الفجرمع رسول الله صلى الله عليه وسلم ولعل هذاالتغليس كان في رمضان خاصة وهكذا ينبغي عندنا اذا اجتمع الناس وعليه العمل في دار العلوم بديوبند في عهد الاكابر . ( ج ٢ ص ١٣٦ كتاب مواقيت الصلاة باب الصلاة كفارة ) .

وفي المبسوط للسرخسي : ولان في الاسفار تكثير الجماعة وفي التغليس تقليلها ومايؤدي الى تكثير الجماعة فهو افضل . ( ج ١ ص ٢٩٥ كتاب الصلاة باب مواقيت الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٤٤ كتاب الصلاة )

[1] في البحر : وفي القنية كسالى العوام إذا صلوا الفجر وقت الطلوع لا ينكر عليهم؛ لأنهم لو منعوا يتركونها أصلا ظاهرا ولوصلوها تجوز عند أصحاب الحديث والأداء الجائز عند البعض أولى من الترك أصلا . ( ج ١ ص ٤٣٧ كتاب الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٤٩ كتاب الصلاة فصل في

## ٢٩٨ - دماپښين دلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء :** دماپښين دلمانځه اصلي وخت دڅه وخته شروع کيږي او پرکوم وخت پای ته رسيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا :**

دماپښين اول وخت هغه وخت شروع کيږي چي لمر ترسر واوړي ، اواخير وخت يې دامام صاحب پرقول باندي هغه دی چي دهرشي سيوری (سايه ) ددغه شي دوچنده سي خوماسوا دهغه سيوري (سايې ) څخه چي دلمردسر ددرېدلو په وخت کي ددغه شي دپاره وي[1].

## ٢٩٩ -دماپښين دلمانځه مستحب اومکروه وختونه

**الإستفتاء:** دماپښين دلمانځه مستحب وخت کوم دی اومکروه وخت يې کوم دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا :**

ددغه لمانځه دپاره په مني، ژمي او پسرلي کي اول وخت مستحب دی ، اوپه دوبي کي يې ځنډول مستحب دي.

---

الاوقات المكروهة ، والتاتارخانية ج ٢ ص ١٥ كتاب الصلاة الفصل الاول في المواقيت المسئلة (١٥١٨)

[1] في الهداية : وأول وقت الظهر إذا زالت الشمس لإمامة جبريل عليه السلام في اليوم الأول حين زالت الشمس وآخر وقتها عند أبي حنيفة رحمه الله إذا صار ظل كل شيء مثليه سوى فيء الزوال . ( ج ١ ص ٧٧ كتاب الصلاة باب المواقيت ، كذا في الهندية ج ١ ص ٥١ كتاب الصلاة الباب الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة ، وخلاصة الفتاوى ج ١ ص ٦٦ كتاب الصلاة الفصل الرابع في مواقيت الصلاة )

او په اخير کي احتياط دادی چي دومره به يې نه ځنډوي چي دهرشي سيوری (سايه ) ددغه شي تريوچندی واوړي ؛ ځکه په دغه وخت کي اختلاف دی چي دماپښين دی اوکه دماځيګر دی، که څه هم راجح قول دادی چي دغه دماپښين وخت دی.

اوکه دغه وخت ته وځنډيږي نوپه ردالمحتارکي فرمايي: چي دغه وخت مکروه دی[1].

---

[1] في مراقي الفلاح : و يستحب تعجيله أي الظهر في الشتاء وفي الربيع والخريف . ( ص ١۴٦ كتاب الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٧٢ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، والطحطاوي على الدرالمختار ج ١ ص ١٧٨ كتاب الصلاة )

وفي الهداية : والابراد بالظهر في الصيف . ( ج ١ ص ٧٩ كتاب الصلاة باب المواقيت فصل في الاوقات المستحبة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٦٩ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، ومراقي الفلاح ص ١۴۵ كتاب الصلاة )

وفي الجوهرة : والاحتياط أن لا يؤخر الظهر إلى المثل وأن لا يصلي العصر حتى يبلغ المثلين ليكون مؤديا لهما في وقتهما بالإجماع . ( ج ١ ص ۵٣ كتاب الصلاة كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٦۴ كتاب الصلاة مطلب في تعبده عليه السلام قبل البعثة ، والبحر ج ١ ص ۴٢۵ كتاب الصلاة )

وفي ردالمحتار : الوقت المكروه في الظهر أن يدخل في حد الاختلاف وإذا أخره حتى صار ظل كل شيء مثله فقد دخل في حد الاختلاف . ( ج ١ ص ٢٦٩ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، كذا في الطحطاوي على الدرالمختار ج ١ ص ١٧٧ كتاب الصلاة )

وفي ردالمحتار : (قوله: إلى بلوغ الظل مثليه) هذا ظاهر الرواية عن الإمام نهاية، وهو الصحيح بدائع ومحيط وينابيع، وهو المختار غياثية واختاره الإمام المحبوبي وعول عليه النسفي وصدر الشريعة

## ۳۰۰ - دماځیګر دلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء**: دمازیګر دلمانځه اصلي وخت دڅه وخته شروع کیږي اوڅه وخت پای ته رسیږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دماځیګر دلمانځه اول وخت هغه وخت شروع کیږي چي دماپښین وخت ووزي، اواخیر وخت یې ترلمرلوېدلوپوري دی[1].

## ۳۰۱ - دماځیګر دلمانځه مستحب اومکروه وختونه

**الإستفتاء**: دماځیګر دلمانځه مستحب اومکروه وختونه کوم کوم دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

په ټول کال کي مستحب داده چي دومره یې وځنډوي چي دلمرپه ټکی کي تغیرنه وي راغلی . اودغه دلمر دتغییر وخت یې مکروه وخت دی[2].

---

تصحيح قاسم واختاره أصحاب المتون، وارتضاه الشارحون، فقول الطحاوي وبقولهما نأخذ لا يدل على أنه المذهب . ( ج ۱ ص ۲۶۴ كتاب الصلاة مطلب في تعبده عليه السلام قبل البعثة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲۵ كتاب الصلاة )

[1] في الهداية : وأول وقت العصر إذ خرج وقت الظهر على القولين وآخر وقتها مالم تغرب الشمس . ( ج ۱ ص ۷۷ كتاب الصلاة باب المواقيت ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۱ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة ، والبحر ج ۱ ص ۴۲۶ كتاب الصلاة )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و تأخير عصر صيفا وشتاء توسعة للنوافل ما لم يتغير ذكاء بأن لا تحار العين فيها في الأصح . ( ج ۱ ص ۲۷۰ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲۹ كتاب الصلاة ، ومراقي الفلاح ص ۱۴۶ كتاب الصلاة )

## ۳۰۲ - دماښام دلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء:** دماښام دلمانځه اصلي وخت دکومه وخته څخه شروع کیږي اوڅه وخت پای ته رسیږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دماښام دلمانځه اول وخت دلمر دلوېدلوڅخه شروع کیږي اواخیروخت یې دشفق ترورکېدلوپورې دی.

اوشفق دامام صاحب پرقول باندې هغه سپین والی ته ویل کیږي چې تر سوروالي وروسته پیداکیږي[۱].

## ۳۰۳ - دماښام دلمانځه مستحب اومکروه وخت کوم دی

**الإستفتاء:** دماښام دلمانځه مستحب اومکروه وختونه کوم دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دماښام دلمانځه دپاره په ټول کال کې تلوارکول مستحب دي، خودالازمه ده چې په داسې وخت کې به یې کوي چې دایقیني سي چې وخت داخل دی.

اوبېله عذره تردغه لږځنډول مکروه تنزیهي دي ، اوبېله عذره دومره ډېرځنډول چې په اسمان کې ستورې ډېرسي مکروه تحریمي دي[۲].

---

[۱] في الهداية : وأول وقت المغرب إذا غربت الشمس وآخر وقتها مالم يغب الشفق ... ثم الشفق هو البياض الذي في الأفق بعد الحمرة عند أبي حنيفة رحمه الله تعالى . ( ج ۱ ص ۷۷ كتاب الصلاة باب المواقيت ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۲۶ كتاب الصلاة ، والهندية ج ۱ ص ۵۱ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة )

[۲] في مراقي الفلاح : و يستحب تعجيل صلاة المغرب صيفا وشتاء ... فكان تأخيرها مكروها إلا في يوم غيم وإلا من عذر سفر أو مرض وحضور مائدة والتأخير قليلا لا يكره . = راتلونکی مخ

## ٣٠٤ - دماخستن دلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء**: دماخستن دلمانځه اصلي وخت دکومه وخته څخه شروع کيږي اوڅه وخت پای ته رسيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دماخستن دلمانځه اول وخت هغه وخت شروع کيږي چي شفق ورک سي او اخير وخت يې دسپېدو تر راختلوپوري دی[1].

## ٣٠٥ - دماخستن دلمانځه مستحب اومکروه وختونه

**الإستفتاء**: دماخستن دلمانځه مستحب وخت کوم اومکروه وخت يې کوم دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دماخستن دلمانځه دپاره په دوبي کي تلوارکول مستحب دي.

اوپه ژمي کي دشپې تراولي دريمي حصې پوري يې ځنډول مستحب دي خوپه دې شرط چي جماعت نه ورڅخه تېريږي.

اوتردغه وروسته ترنيمي شپې پوري ځنډول يې مباح دی، يعني نه مکروه

---

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: والتأخير قليلا لا يكره أي تحريما بل يكره تنزيها . ( ص ١٤٧ كتاب الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٧١ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها )

[1] في الهداية : وأول وقت العشاء إذا غاب الشفق وآخر وقتها مالم يطلع الفجر الثاني . ( ج ١ ص ٧٨ كتاب الصلاة باب المواقيت ، كذا في البحر ج ١ ص ٤٢٧ كتاب الصلاة ، والهندية ج ١ ص ٥١ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة )

دي او نه مستحب دي.

اوترنيمي شپې ځنډول يې دځيني فقهاوو په نزدمکروه تنزيهي دي اوپه ردالمحتار کي دغه قول راجح بلل سوى دى اودبعض فقهاؤ په نزدمکروه تحريمي دي[1].

## ۳۰۶ - دوترلمانځه اصلي وخت

**الإستفتاء:** دماخستن دوترلمانځه اصلي وخت دکومه وخته څخه شروع کيږي او څه وخت پای ته رسيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د امام صاحب پرقول باندي دوتر او دماخستن دلمانځه يو وخت دى[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و تأخير عشاء إلى ثلث الليل قيده في الخانية وغيرها بالشتاء أما الصيف فيندب تعجيلها فإن أخرها إلى ما زاد على النصف كره لتقليل الجماعة أما إليه فمباح . ( ج ١ ص ٢٧٠ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ١ ص ٦٧ كتاب الصلاة الفصل الرابع في مواقيت الصلاة ، والتاتارخانية ج ٢ ص ١٢ كتاب الصلاة الفصل الاول في المواقيت المسئلة ( ١٥١١ )

وفي ردالمحتار (قوله وتأخير عشاء) أطلقه وظاهر ما في الهداية التقييد بعدم فوت الجماعة (قوله كره) أي تحريما كما يأتي تقييده في المتن أو تنزيها وهو الأظهر كما نذكره عن الحلية .

[2] في الهداية : وعند أبي حنيفة رحمه الله تعالى وقته وقت العشاء إلا أنه لا يقدم عليه عند التذكر للترتيب . ( ج ١ ص ٧٨ كتاب الصلاة باب المواقيت ، كذا في البحر ج ١ ص ٤٢٧ كتاب الصلاة ، والهندية ج ١ ص ٥١ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الأول في أوقات الصلاة )

## ٣٠٧ - دوتر لمانځه مستحب وخت

**الإستفتاء:** دوتر لمانځه دپاره مستحب وخت کوم دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

هغه څوک چي پرځان دشپې درا کښېښستلو باور لري، دهغه دپاره دا مستحب ده چي دشپې تراخيره پوري يې وځنډوي.

اودچاچي پرځان داباور نه وي دهغه دپاره تر خوب دمخه وتر لمونځ کول مستحب دي[1].

## ٣٠٨ - دښځو دپاره په ټولو لمونځو کي مستحب وختونه

**الإستفتاء:** دښځو دپاره په ټولو لمونځونو کي کوم وخت مستحب دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دسهار په لمانځه کي دامستحب ده چي په اول وخت کي لمونځ وکړي.

اوپه نورو لمونځونو کي دامستحب دی چي دخلګو دجماعت تر تېرېدلو پوري انتظاروکړي او وروسته خپل لمونځ اداء کړي[2] .

---

[1] في الهداية : ويستحب في الوتر لمن يألف صلاة الليل أن يؤخره إلى آخر الليل فإن لم يثق بالانتباه أوتر قبل النوم " لقوله عليه الصلاة والسلام " من خاف أن لا يقوم آخر الليل فليوتر أوله، ومن طمع أن يقوم آخر الليل فليوتر آخره . ( ج ١ ص ٨٠ كتاب الصلاة باب المواقيت فصل في الاوقات المستحبة ، كذا في البحر ج ١ ص ٤٣١ كتاب الصلاة ، والهندية ج ١ ص ٥٢ كتاب الصلاة الباب الأول في مواقيت الصلاة وما يتصل بها الفصل الثاني في بيان فضيلة الأوقات )

[2] في البحر: الأفضل للمرأة في الفجر الغلس وفي غيرها الانتظار إلى فراغ الرجال عن الجماعة .( ج ١ ص ٤٢٩ كتاب الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٤٤ كتاب الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٦٩ كتاب الصلاة مطلب في طلوع الشمس من مغربها )

## ۳۰۹ - دلمر راختلوپه وخت كي دسهار لمونځ، ياد لمانځه قضاء راوړل

**الإستفتاء:** دلمر دراختلوپه وخت كي دسهارلمونځ اداكول، يادبل فرضي لمانځه قضاء راوړل څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دلمر دراختلوپه وخت كي نه ددغه ورځي دسهار لمونځ صحيح كيږي اونه دبل فرض لمانځه قضاء پكښي صحيح كيږي[1].

## ۳۱۰ - چي لمر پر سرولاړوي پر دغه وخت دفرض لمانځه قضاء راوړل

**الإستفتاء:** په هغه وخت كي چي لمر پر سر ودريږي دفرض لمانځه قضاء راوړل څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وخت كي دهيڅ فرض لمانځه قضاء نه صحيح كيږي[2].

---

[1] في الهندية : ثلاث ساعات لا تجوز فيها المكتوبة ولا صلاة الجنازة ولا سجدة التلاوة إذا طلعت الشمس حتى ترتفع وعند الانتصاف إلى أن تزول وعند احمرارها إلى أن يغيب إلا عصر يومه ذلك فإنه يجوز أداؤه عند الغروب . ( ج ١ ص ٥٢ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٤٨ كتاب الصلاة فصل في الاوقات المكروهة ، وردالمحتار ج ١ ص ٢٧٥ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت )

[2] في الهندية : ثلاث ساعات لا تجوز فيها المكتوبة ولا صلاة الجنازة ولا سجدة التلاوة إذا طلعت الشمس حتى ترتفع وعند الانتصاف إلى أن تزول وعند احمرارها إلى أن يغيب إلا عصر يومه ذلك فإنه يجوز أداؤه عند الغروب . ( ج ١ ص ٥٢ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٤٨ كتاب

## ۳۱۱- دلمر لوېدو پروخت دمائيگرلمونځ كول يادبل لمانځه قضاء

**الإستفتاء:** دلمر دلوېدلوپه وخت كي دمائيگرلمونځ كول، يادبل فرض لمانځه قضاء راوړل څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وخت كي ددغه ورځي دمائيگرلمونځ صحيح كيږي كه څه هم تر دغه وخته پوري ځنډول مكروه كاردى ، اودبل فرض لمانځه قضاء په دغه وخت كي نه صحيح كيږي[1].

## ۳۱۲- دلمرراختلو،دلمرلوېدلو.دلمرپرسردرېدلوپروخت نفل كول

**الإستفتاء:** دلمر دراختلوپه وخت كي اوپه هغه وخت كي چي لمر پر سر ودريږي ، اودلمر دلوېدلوپه وخت كي نفل لمونځ كول څه حكم لري ؟

---

الصلاة فصل في الاوقات المكروهة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۲۷۵ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت )

[1] في الهندية : ثلاث ساعات لا تجوز فيها المكتوبة ولا صلاة الجنازة ولا سجدة التلاوة إذا طلعت الشمس حتى ترتفع وعند الانتصاف إلى أن تزول وعند احمرارها إلى أن يغيب إلا عصر يومه ذلك فإنه يجوز أداؤه عند الغروب . ( ج ۱ ص ۵۲ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، كذا في ملتقى الابحر مع مجمع الانهر ج ۱ ص ۱۱۰ كتاب الصلاة ،وردالمحتار ج ۱ ص ۲۷۵ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه درې سره وختونو کي نفل لمونځ کول مکروه تحريمي بلل کيږي[1].

## ٣١٣- که په دغه درو مکروه وختونو کي نفل شروع کړه نو څنګه وکړي

**الإستفتاء:** که يو څوک دلمر دراختلو پروخت، يا په هغه وخت کي چي لمر پر سر ودريږي، يا دلمر دلوېدلو پروخت نفل لمونځ شروع کړي، نو دغه شخص به څه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پردغه شخص باندي داواجب ده چي دغه نفل لمونځ به قطعه کوي او وروسته به يې په صحيح وخت کي قضاء راوړي.

خو که دغه شخص دغه نفل لمونځ په دغه وخت کي پوره کړي، نو لمونځ يې صحيح دی، بل وارقضاء نه غواړي، خو په دغه عمل سره ګنهګار دی[2].

---

[1] في مراقي الفلاح : والأوقات الثلاثة" المذكورة "يكره فيها النافلة كراهة تحريم ولو كان لها سبب كالمنذور وركعتي الطواف" وركعتي الوضوء وتحية المسجد والسنن الرواتب . ( ص ١٥٠ كتاب الصلاة فصل في الاوقات المكروهة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٢٧٥ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت )

[2] في البحر : وإن كانت الصلاة نفلا فهي صحيحة مكروهة حتى وجب قضاؤه إذا قطعه ويجب قطعه وقضاؤه في غير مكروه في ظاهر الرواية، ولو أتمه خرج عن عهدة ما لزمه بذلك الشروع . ( ج ١ ص ٤٣٣ كتاب الصلاة ، كذا في الهندية ج ١ ص ٥٢ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، والدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ١ ص ١٠٩ كتاب الصلاة ) = راتلونکی مخ

## ۳۱۴ - د فاسدسوي نفلو قضاء راوړل په دغه درو مکروه وختونوکي

**الإستفتاء:** که يوڅوک نفل لمونځ شروع کړي اوبيايې فاسدکړي، ددغه لمانځه قضاء دلمر دراختلوپه وخت کي، يا هغه وخت چي لمر پر سر ودريږي، يادلمر دلوېدلو په وخت کي صحيح کيږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که يوڅوک په مکروه وخت کي نفل لمونځ شروع کړي، بيايې فاسدکړي نو داواجب ده چي ددغه لمانځه قضاء به په صحيح وخت کي راوړي، خوکه ددغه لمانځه قضاء په دغه درې وختونو کي راوړي نو هم صحيح کيږي، که څه هم ګناه بلل کيږي.

اوکه يوڅوک په مستحب وخت کي نفل لمونځ شروع کړي، بيايې فاسد کړي، نو ددغه لمانځه قضاء په دغه درې وختونوکي نه صحيح کيږي[1].

---

وفي الهندية : ولو أتمه خرج عن عهدة ما لزمه بذلك الشروع ... وقد أساء ولا شيء عليه . ( ج ۱ ص ۵۲ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها )

[1] في البحر : والنفل إذا شرع فيه في وقت مستحب، ثم أفسده داخل فيه أيضا فلا يصح في هذه الأوقات كما في المحيط بخلاف ما لو قضى في وقت مكروه ما قطعه من النفل المشروع فيه في وقت مكروه حيث يخرجه عن العهدة وإن كان آثما . ( ج ۱ ص ۴۳۳ كتاب الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۷۵ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت )

وفي الهندية : ولو قضاه في وقت مكروه جاز وقد أساء . (ج ۱ ص ۵۲ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها )

## ۳۱۵ - په دغه درو مکروه وختونو کي دقرآن کريم دتلاوت سجده کول

**الإستفتاء:** دلمردراختلوپروخت اوپه هغه وخت کي چي لمر پر سر ودريږي اودلمر دلو بدلو پروخت دقرآن کريم دتلاوت سجده اداء کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که ددغه سجدې آيت په دغه وخت کي وويل سو، نو ښه خبره داده چي دغه سجده تردغه وخت وروسته اداء کړي، خوکه په همدغه وخت کي سجده اداکړي هم صحيح کيږي، که څه هم مکروه تنزيهي بلل کيږي.

اوکه دسجدې آيت په بل صحيح وخت کي ويل سوی وي، نوددغه آيت سجده بيا په دغه درې وختونو کي نه صحيح کيږي[1].

## ۳۱۶ - په دغه درو مکروه وختونو کي دجنازې لمونځ کول

**الإستفتاء:** دلمر دراختلوپروخت اوهغه وخت چي لمر پرسر ودريږي اودلمر دلو بدلو پروخت دجنازې لمونځ کول څه حکم لري ؟

---

[1] في ردالمحتار : فالنوع الأول لا ينعقد فيه شيء من الصلوات التي ذكرناها إذا شرع بها فيه، وتبطل إن طرأ عليها إلا صلاة جنازة حضرت فيها وسجدة تليت آيتها فيها وعصر يومه والنفل والنذر المقيد بها وقضاء ما شرع به فيها ثم أفسده، فتنعقد هذه الستة بلا كراهة أصلا في الأولى منها، ومع الكراهة التنزيهية في الثانية والتحريمية في الثالثة، وكذا في البواقي . ( ج ۱ ص ۲۷۵ کتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت ، كذا في الدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ۱ ص ۱۱۰ کتاب الصلاة ، ودرر الحكام شرح غرر الاحكام مع حاشية الشرنبلالي ج ۱ ص ۵۳ کتاب الصلاة اوقات الصلاة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که جنازه په دغه وخت کي حاضره سوه نوددغه جنازې لمونځ صحيح دی بلکه ښه کار دادی چي دغه لمونځ په دغه وخت کي وکړي.

اوکه جنازه تردغه وخت دمخه حاضره سوې وه، نوددغه جنازې لمونځ په دغه وخت کي نه صحيح کيږي[1].

## ۳۱۷ - په دغه درو مکروه وختونو کي نذر کړل سوی لمونځ کول

**الإستفتاء:** دلمر دراختلو پروخت اوهغه وخت چي لمر پر سر ودريږي، اودلمر دلو ېدلو پروخت دنذر کړل سوي لمانځه کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که يو شخص پرځان باندي داخبره نذرکړې وه چي په دغه مکروه وخت کي به لمونځ کوي، نوپردغه شخص باندي داواجب ده چي دغه لمونځ په بل صحيح وخت کي وکړي، خوکه دغه لمونځ په دغه مکروه وخت کي وکړي هم صحيح کيږي ، که څه هم گنهگار بلل کيږي.

---

[1] في الجوهرة النيرة : (قوله: ولا يصلي على جنازة ولا يسجد لتلاوة) هذا إذا وجبتا في وقت مباح وأخرتا إلى هذا الوقت فإنه لا يجوز قطعا أما لو وجبتا في هذا الوقت وأديتا فيه جاز؛ لأنها أديت ناقصة كما وجبت إذ الوجوب بحضور الجنازة والتلاوة فإن قلت ما الأفضل الأداء أو التأخير إلى وقت مباح قلت أما في صلاة الجنازة فالأفضل الأداء لقوله عليه السلام «عجلوا بموتاكم وقال ثلاث لا يؤخرن جنازة أتت ودين وجدت ما تقضيه وبكر وجد لها كفء» . ( ج ۱ ص ۶۹ كتاب الصلاة باب الاوقات التي تكره فيها الصلاة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۲ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۷۵ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت )

اوکه یوځوک پرځان باندي مطلق لمونځ نذر کړي اویا دصحیح وخت لمونځ نذر کړي نو دغه لمونځ بیا په دغه مکروه وخت کي نه صحیح کیږي[1].

## ۳۱۸-دسهار دلمانځه دمخه، وروسته، دماځیګر دلمانځه وروسته لمونځ

**الإستفتاء:** دسهار تر لمانځه دمخه دسهار د دوه رکعاته سنت لمانځه څخه ماسوا نور لمونځ کول، همدا شان دسهار تر لمانځه وروسته دلمر دراختلو تروخته پوري په دغه وخت کي لمونځ کول، اوهمداشان دماځیګر ترلمانځه وروسته اودلمر دلوېدلو تروخت دمخه لمونځ کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه ټولووختونو کي دفرض ، یاوتر لمانځه قضاء راوړل ، دتلاوت سجده کول، دجنازې لمونځ اداء کول بېله مکروه والي څخه صحیح دي.

اوپه دغه ټولو وختونوکي نفل لمونځ کول، دنذر لمونځ کول، دطواف دوه رکعاته لمونځ کول،اودهغه نفل اوسنت لمانځه قضاء راوړل چي ترشروع وروسته فاسد سوی وي، دغه ټول مکروه تحریمي دي[2].

---

[1] في الهندية : ولو نذر أن يصلي في الوقت المكروه فأدى فيه يصح ويأثم ويجب أن يصلي في غيره. كذا في البحر الرائق . إذا نذر مطلقا أو في غير هذه الأوقات فإنه لا يجوز الأداء فيها . ( ج ۱ ص ۵۲ كتاب الصلاة الباب الاول في مواقيت الصلاة الفصل الثالث في بيان الأوقات التي لا تجوز فيها الصلاة وتكره فيها ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۷۵ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت ، والبحر ج ۱ ص ۴۳۳ كتاب الصلاة )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وكره نفل) قصدا ولو تحية مسجد (وكل ما كان واجبا) لا لعينه بل (لغيره) وهو ما يتوقف وجوبه على فعله (كمنذور، وركعتي طواف) وسجدتي سهو (والذي شرع فيه) في وقت مستحب أو مكروه (ثم أفسده و) لوسنة الفجر (بعد صلاة فجر و) صلاة (عصر)

## ۳۱۹ - داشراق دلمانځه وخت

**الإستفتاء:** داشراق دلمانځه وخت کوم دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

ځیني علماء کرام فرمایي : چي داشراق لمونځ اودڅاښت لمونځ دواړه سره یودي، نوپردغه قول داشراق دلمانځه وخت هغه دی چي دڅاښت دلمانځه په مسئله کي ذکردی.

اوځیني نورعلماء کرام بیافرمایي : چي داشراق لمونځ دڅاښت دلمانځه څخه جلادی، اودغه علماء کرام فرمایي : داشراق دلمانځه وخت دادی چي لمر دیوې نېزې، یادوو نېزو په اندازه راپورته سي.

اوکومه چي دغه دعاموخلګوطریقه ده، چي دلمر دراښکاره کېدلوسره متصل داشراق لمونځ کوي، دغه طریقه مکروه تحریمي ده، لکه چي په مخکي

---

ولو المجموعة بعرفة (لا) يكره (قضاء فائتة و) لو وترا أو (سجدة تلاوة وصلاة جنازة وكذا) الحكم من كراهة نفل وواجب لغيره لا فرض وواجب لعينه (بعد طلوع فجر سوى سنته) لشغل الوقت به .

وفي ردالمحتار : (قوله: وكره نفل إلخ) شروع في النوع الثاني من نوعي الأوقات المكروهة وفيما يكره فيها، والكراهة هنا تحريمية أيضاكماصرح به في الحلية ولذا عبرفي الخانية والخلاصة بعدم الجواز، والمراد عدم الحل لا عدم الصحة كما لا يخفى ... (قوله: بعد صلاة فجر وعصر) متعلق بقوله وكره أي وكره نفل إلخ بعد صلاة فجر وعصر: أي إلى ما قبيل الطلوع والتغير بقرينة قوله السابق لا ينعقد الفرض إلخ، ولذا قال الزيلعي هنا: المراد بما بعد العصر قبل تغير الشمس، وأما بعده فلا يجوز فيه القضاء أيضا وإن كان قبل أن يصلي العصر . ( ج ۱ ص ۲۷۶ كتاب الصلاة مطلب يشترط العلم بدخول الوقت ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۱۵۱ كتاب الصلاة فصل في الاوقات المكروهة )

مسئله کي ذکر سوه[۱].

### ۳۲۰ - دڅاښت دلمانځه وخت

**الإستفتاء:** دڅاښت دلمانځه وخت کوم دی ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دڅاښت دلمانځه اصلي وخت هغه وخت شروع کيږي چي لمر راپورته سي، او اخير وخت يې هغه دی چي لمر پرسر ودريږي، او ښه وخت يې دادی چي دورځي اوله څلورمه حصه تېره سي[۲].

---

[۱] في اعلاء السنن : فقد قال العلامة سراج احمد في شرح الترمذي ان المتعارف في اول النهار صلاتان الاولى بعدطلوع الشمس وارتفاعها قدر رمح او رمحين ويقال لها صلاة الاشراق والثانية عند ارتفاع الشمس قدر ربع النهار الى ماقبل الزوال ويقال لها صلاة الضحى واسم الضحى في كثير من الاحاديث شامل لكليهما وقد ورد في بعضها لفظ الاشراق ايضا فقد اخرج السيوطي عن ام هانئ ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لها يا ام هانئ هذه صلاة الاشراق آه . ( ج ۷ ص ۳۰ باب السنن والنوافل )

وفي فتاوى النابلسي : وعلماؤنا الحنفية لم يتعرضوا لهذا الفرق فالظاهر ان صلاة الاشراق هي صلاة الضحى عندنا . ( ج ۲ ص ۶۵۲ النوافل صلاة الضحى )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) ندب (أربع فصاعدا في الضحى) على الصحيح من بعد الطلوع إلى الزوال ووقتها المختار بعد ربع النهار . ( ج ۱ ص ۵۰۴ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مطلب سنة الوضوء ،كذا في منحة الخالق على البحر ج ۲ ص ۹۰ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل )

# باب الاذان

## ٣٢١ - دلمانځه دپاره اذان سنت که واجب دی

**الإستفتاء:** دلمانځه دپاره اذان کول واجب دي اوکه سنت دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پر راجح قول باندي دلمانځه دپاره داذان کول سنت مؤکد دي[1].

## ٣٢٢ - دکومو لمونځونو دپاره اذان سنت دی

**الإستفتاء:** اذان دکومو لمونځونو دپاره سنت دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دپنځه وخته فرضي لمانځه دپاره سنت دی، که دغه لمونځونه په خپل وخت کي اداکوي، که يې قضاء راوړي.

اوددغه څخه ماسوا دنورو لمونځونودپاره سنت نه دی، لکه نفل، وتر، تراويح، داختر لمونځ اوداسي نور[2].

---

[1] في الهندية : الأذان سنة لأداء المكتوبات بالجماعة. كذا في فتاوى قاضي خان وقيل: إنه واجب والصحيح أنه سنة مؤكدة . (ج ١ ص ٥٣ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن , كذا في دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٥٤ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٨٢ كتاب الصلاة باب الاذان )

[2] في الهندية : الأذان سنة لأداء المكتوبات بالجماعة ... وليس لغير الصلوات الخمس والجمعة نحو السنن والوتر والتطوعات والتراويح والعيدين أذان ولا إقامة كذا في المحيط وكذا للمنذورة وصلاة الجنازة والاستسقاء والضحى والإفزاع. هكذا في التبيين وكذا لصلاة الكسوف والخسوف . ( ج ١ ص ٥٣ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن , كذا في

## ۳۲۳ - دوخت تر داخلېدلو دمخه اذان کول

**الإستفتاء:** دوخت تر داخلېدلو دمخه اذان کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

تر وخت دمخه اذان نه صحيح كيږي كه يو څوک تر وخت دمخه اذان وکړي دغه اذان دوخت تر داخلېدلو وروسته بيرته راګرځول غواړي[1].

## ۳۲۴ - دسفر په حال كي دلمانځه دپاره اذان او اقامت كول

**الإستفتاء:** يو مسافر چي يوازي لمونځ كوي، ياډېر مسافر خلګ چي لمونځ كوي، اذان او اقامت غواړي او كه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مسافركه يو انسان وي اوكه ډېر، مستحب طريقه داده چي دلمانځه دپاره اذان او اقامت دواړه وكړي[2].

---

دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٥٤ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٨٣ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المواضع التي يندب لها الاذان في غير الصلاة )

[1] في الهداية : ولا يؤذن لصلاة قبل دخول وقتها ويعاد في الوقت " لأن الأذان للإعلام وقبل الوقت تجهيل . ( ج ١ ص ٨٦ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في الهندية ج ١ ص ٥٣ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن , ومجمع الانهر ج ١ ص ١١٣ كتاب الصلاة باب الاذان )

[2] في مجمع الانهر : (وندبا) أي الأذان والإقامة معا (لهما) أي المسافر والمصلي في بيته . ( ج ١ ص ١١٥ كتاب الصلاة باب الاذان , كذا في الهداية ج ١ ص ٨٦ كتاب الصلاة باب الاذان ، والهندية ج ١ ص٥٤ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن )

## ۳۲۵- كه مسافر اذان او اقامت دواړه يا يو پرېږدي

**الإستفتاء:** كه مسافر اذان او اقامت دواړه پرېږدي ، يا يو پرېږدي دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه اذان او اقامت دواړه پرېږدي، يا يو ازي اذان وكړي او اقامت پرېږدي، دغه عمل مكروه دى. او كه يو ازي اقامت وكړي اذان پرېږدي پروانه لري[1].

## ۳۲۶- په ښار يا قريه كې په كور كې دلمانځه دپاره اذان او اقامت كول

**الإستفتاء:** كه يو شخص يا ډېر خلك په ښار يا كلي كې، په كور كې لمونځ كوي، اذان او اقامت به كوي او كه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مستحب طريقه داده چې اذان او اقامت دواړه وكړي[2].

---

[1] في الهندية : ويكره للمسافر تركهما وإن كان وحده. هكذا في المبسوط ولو ترك الإقامة أجزأه ولكنه يكره هكذا في شرح الطحاوي فإن أذن وأقام فهو حسن وكذلك إن أقام ولم يؤذن . ( ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن , كذا في البحر ج ۱ ص ۴۶۱ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۸۹ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غير محتسب في أذانه )

[2] في مجمع الانهر : (وندبا) أي الأذان والإقامة معا (لهما) أي المسافر والمصلي في بيته . ( ج ۱ ص ۱۱۵ كتاب الصلاة باب الاذان , كذا في الهداية ج ۱ ص ۸۶ كتاب الصلاة باب الاذان ، والهندية ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن )

## ۳۲۷-د کور، باغ، په لمانځه کي اذان اواقامت دواړه يايو پرېښول

**الإستفتاء:** که يوڅوک په کور ياپه باغ، يامځکه کي لمونځ کوي او اذان او اقامت دواړه پرېږدي، يايو پرېږدي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه کور په داسي کلي کي وي چي په هغه کي داسي مسجد جوړ وي چي اذان او اقامت پکښي کيږي، او دغه مځکه اوباغ په داسي ځای کي وي چي د کلي اذان ور رسيږي، نوپه دغه کور، مځکه اوباغ کي چي دلمانځه په وخت کي اذان او اقامت يو، يادواړه پاته سي پروانه کوي.

او که دغه کورپه داسي ځای کي وي چي په هغه کي داسي مسجد نه وي چي اذان او اقامت پکښي کيږي، اوهمدغه شان که دغه مځکه اوباغ په داسي ځای کي وي چي د کلي اذان نه وررسيږي، نوپه دغه وخت کي که اذان او اقامت دواړه پرېږدي، يا يوازي اذان وکړي، اقامت پرېږدي، دغه دواړي طريقې مکروه دي.

او که يوازي اذان پرېږدي اقامت وکړي دغه پروانه لري[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وكره تركهما) معا (لمسافر) ولو منفردا (وكذا تركها) لا تركه لحضور الرفقة (بخلاف مصل) ولو بجماعة (في بيته بمصر) أو قرية لها مسجد؛ فلا يكره تركهما إذ أذان الحي يكفيه .

وفي ردالمحتار : (قوله: في بيته) أي فيما يتعلق بالبلد من الدار والكرم وغيرهما قهستاني. وفي التفاريق: وإن كان في كرم أو ضيعة يكتفي بأذان القرية أو البلدة إن كان قريبا وإلا فلا. وحد القرب أن يبلغ الأذان إليه منها اهـ إسماعيل. والظاهر أنه لا يشترط سماعه بالفعل، تأمل .(قوله: لها مسجد) أي فيه أذان وإقامة، وإلا فحكمه كالمسافر . ( ج ۱ ص ۲۸۹ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في

## ۳۲۸ - دنابالغ کوچني اذان کول

**الإستفتاء:** دنابالغ کوچني اذان څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه کوچنی په اذان پوهیږي، نو اذان یې بېله مکروه والي څخه صحیح دی، خو دبالغ انسان اذان تر دغه افضل دی.

او که دغه کوچنی په اذان نه پوهیږي نو ددغه کوچني اذان صحیح نه دی، که یې وکړي بیرته به یې راګرځوي[1].

## ۳۲۹ - په ناسته د اذان کولو حکم

**الإستفتاء:** په ناسته سره اذان کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دغه شخص یوازي لمونځ کوي او ددغه خپل لمانځه دپاره په ناسته سره اذان وکړي نو دغه مکروه نه بلل کیږي.

او که دخلګو دلمانځه دپاره اذان کوي نو بیا دغه عمل مکروه بلل کیږي او په

---

المؤذن اذا كان غيرمحتسب في اذانه ، كذا في الهندية ج ١ ص ٥٤ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن )

[1] في الهندية : أذان الصبي العاقل صحيح من غير كراهة في ظاهر الرواية ولكن أذان البالغ أفضل وأذان الصبي الذي لا يعقل لا يجوز ويعاد وكذا المجنون . ( ج ١ ص ٥٤ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٨٩ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غير محتسب في أذانه ، والبحر ج ١ ص ٤٦٠ كتاب الصلاة باب الاذان )

ردالمحتار کې فرمايي: چې ددغه اذان راګرځول مستحب دي[1].

## ۳۳۰ - دفاسق انسان داذان حکم

**الإستفتاء:** دفاسق انسان اذان څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دفاسق انسان اذان مکروه دی[2].

## ۳۳۱ - د فاسق داذان دبيرته راګرځولو حکم

**الإستفتاء:** که يو فاسق اذان وکړي دغه اذان راګرځول غواړي او که نه ؟

---

[1] في الهندية : ويكره الأذان قاعدا وإن أذن لنفسه قاعدا فلا بأس به . ( ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، كذا في البحر ج ۱ ص۴۵۸ والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۸۹ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غير محتسب في أذانه )

وفي ردالمحتار : (قوله: ويعاد أذان جنب إلخ) زاد القهستاني: والفاجر والراكب والقاعد والماشي، والمنحرف عن القبلة وعلل الوجوب في الكل بأنه غير معتد به والندب بأنه معتد به إلا أنه ناقص، قال وهو الأصح كما في التمرتاشي . ( ج ۱ ص ۲۸۹ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غير محتسب في أذانه )

[2] في دررالحكام شرح غرر الاحكام : وكره للجنب وصبي لا يعقل والمرأة والمجنون والسكران والفاسق والقاعد . ( ج ۱ ص ۵۶ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۱۹ كتاب الصلاة باب الاذان )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

ددغه اذان راګرځول مستحب دي چې فاسق انسان کړی دی، واجب نه دي[1].

## ۳۳۲- فاسق عالم ،غیرفاسق بې علمه چې یوځای سي کوم یو اذان وکړي

**الإستفتاء:** که په یوځای کي یو فاسق عالم او غیرفاسق بې علمه انسان سره یوځای سول نو کوم یو به اذان او اقامت کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که په دغه ځای کي غیرفاسق علم والا پیدا کېدی نو هغه دي اذان او اقامت وکړي.

او که نه پیدا کېدی نو بیا دي دغه علم والا شخص اذان او اقامت وکړي، که څه هم فاسق دی[2].

---

[1] في تبيين الحقائق : كره أذان الجنب وإقامته وإقامة المحدث وأذان المرأة والفاسق والقاعد والسكران أما أذان الجنب ... وأما الفاسق فلأن قوله لا يوثق به ولا يقبل في الأمور الدينية ولا يلزم أحدا فلم يوجد الإعلام ... وأما السكران فلفسقه أو لعدم معرفته بدخول الوقت ويستحب إعادته . ( ج ۱ ص ۲۴۹ / ۲۵۰ كتاب الصلاة باب الاذان كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۰ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غيرمحتسب في اذانه ، والفقه الاسلامي وادلته ج ۱ ص ۷۰۰ الباب الثاني الصلاة الفصل الثالث في الاذان والاقامة شروط الاذان )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ويكره أذان جنب ... وفاسق ولو عالما لكنه أولى بإمامة وأذان من جاهل تقي .

وفي ردالمحتار : (قوله: من جاهل تقي) أي حيث لم يوجد عالم تقي .( ج ۱ ص ۲۸۹ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غيرمحتسب في اذانه ، كذا في الطحطاوي على الدرالمختار ج ۱ ص ۱۸۷ كتاب الصلاة باب الاذان)

## ۳۳۳ - كه خلك دوخت په داخلېدو خبروي اوفاسق اذان وكړي

**الإستفتاء:** كه په يوځاى كي داسي خلگ سره يوځاى سول چي ټول دوخت په دخول باندي خبروه او په دغه وخت كي يو فاسق انسان اذان وكړى، لكه پرلار باندي چي خلگ دلمانځه دپاره ودريږي، دغه اذان مكروه دى او كه نه، راگرځول غواړي او كه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په ردالمحتار كي فرمايي چي دغه اذان مكروه نه دى راگرځول نه غواړي[1].

## ۳۳۴ - ديوه نفر په يوه وخت كي په دوه مسجده كي اذان كول

**الإستفتاء:** كه يو څوك په يوه وخت كي په دوه مسجده كي اذان كوي، دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه عمل مكروه دى[2].

---

[1] في ردالمحتار : ثم الظاهر أن الإعادة إنما هي في المؤذن الراتب، أما لو حضر جماعة عالمون بدخول الوقت وأذن لهم فاسق أو صبي يعقل لا يكره ولا يعاد أصلا لحصول المقصود تأمل . ( ج ۱ ص ۲۹۰ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المؤذن اذا كان غيرمحتسب في اذانه )

[2] في المبسوط للسرخسي : قال ويكره أن يؤذن في مسجدين ويصلي في أحدهما . ( ج ۱ ص ۲۸۶ كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۵ كتاب الصلاة آخر باب الاذان مطلب هل باشر النبي صلى الله عليه وسلم الاذان بنفسه ، والبدائع ج ۱ص ۳۷۵ كتاب الصلاة صفات المؤذن )

## ٣٣٥ - په اذان کي لحن څه ته وايي

**الإستفتاء:** په اذان کي لحن څه شي ته وايي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

لحن دېته وايي چي داذان په حروف کي زيادت يانقصان وکړي، اويادحروفو په حرکاتو اوسکناتو او مداتو کي زيادت، يانقصان وکړي.[١]

## ٣٣٦ - په اذان کي دلحن حکم

**الإستفتاء:** په اذان کي لحن څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په اذان کي لحن مکروه دی[٢].

---

[١] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا لحن فيه أي تغني بغير كلماته فإنه لا يحل فعله وسماعه كالتغني بالقرآن وبلا تغيير حسن .

وفي ردالمحتار : (قوله: بغير كلماته) أي بزيادة حركة أو حرف أو مد أو غيرها في الأوائل والأواخر . ( ج ١ ص ٢٨٥ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم كذا في تبيين الحقائق مع حاشية الشلبي ج ١ ص ٢٤١ كتاب الصلاة باب الاذان ، ومجمع الانهر ج ١ ص ١١٥ كتاب الصلاة باب الاذان )

[٢] في الطحطاوي على الدرالمختار : ( قوله وانه لحن ) شرعي فيكون الاذان به مكروها . ( ج ١ ص ١٨٥ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في تبيين الحقائق ج ١ ص ٢٤١ كتاب الصلاة باب الاذان ، ومجمع الانهر ج ١ ص ١١٥ كتاب الصلاة باب الاذان )

## ٣٣٧ - دلحن والا اذان جواب په ژبه غواړي که نه

**الإستفتاء:** په کوم اذان کي چي لحن وسي، ددغه اذان جواب په ژبه سره ورکول غواړي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه اذان په ژبه سره جواب نه غواړي؛ ځکه فقهاء کرام فرمايي: چي دغه اذان ته غوږ نيول روا نه دی[1].

## ٣٣٨-د اسپيکر داذان دحی علی الصلاة ،حی علی الفلاح سره مخ اړول

**الإستفتاء:** په اذان کي چي دحی على الصلاة اوحی على الفلاح په وخت کي راسته اوچپه طرف ته مخ اړول کيږي، دغه خودديږ دپاره چي خلګوته اواز ورسيږي، اوس چي خلګ په اسپيکرکي اذانونه کوي ، په دغه اذان کي دمخ داړولو ضرورت خونسته، ايا راسته اوچپه طرف ته مخ اړول سنت دي اوکه نه ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : بأن يقول بلسانه كمقالته إن سمع المسنون منه وهو ما كان عربيا لا لحن فيه .

وفي ردالمحتار : (قوله: إن سمع المسنون منه) الظاهر أن المراد ما كان مسنونا جميعه، فمن لبيان الجنس لا للتبعيض، فلو كان بعض كلماته غير عربي أو ملحونا لا تجب عليه الإجابة في الباقي؛ لأنه حينئذ ليس أذانا مسنونا، كما لو كان كله كذلك، أو كان قبل الوقت، أو من جنب أو امرأة. ويحتمل أن المراد ما كان مسنونا من أفراد كلماته، فيجيب المسنون منها دون غيره، وهو بعيد تأمل؛ لأنه يستلزم استماعه والإصغاء إليه وقد ذكر في البحر أنهم صرحوا بأنه لا يحل سماع المؤذن إذا لحن كالقارئ . ( ج ١ ص ٢٩٢ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في الطحطاوي على الدرالمختار ج ١ ص ١٨٨ كتاب الصلاة باب الاذان )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په دغه اذان کي هم راسته او چپه طرف ته مخ اړول سنت دي؛ ځکه مخ اړول د مطلق اذان سنت دی[١].

## ۳۳۹ - په اقامت کي دحی علی الصلاة اوحی علی الفلاح سره مخ اړول

**الإستفتاء:** په اقامت کي د اذان په شان دحی علی الصلاة په وخت کي مخ راسته طرفته اړول اودحی علی الفلاح په وخت کي مخ چپه طرفته اړول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په دغه مسئله کي درې قوله ذکرسوي دي، خودالنهرالفائق مصنف دغه قول ته ترجیح ورکړې ده : چي که ځای فراخ وي نوراسته اوچپه طرفته دي مخ واړوي، اوکه ځای کوچنی وي نوبیا دي مخ نه اړوي[٢].

---

[١] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويلتفت فيه) وكذا فيها مطلقا، وقيل إن المحل متسعا (يمينا ويسارا) فقط؛ لئلا يستدبر القبلة (بصلاة وفلاح) ولو وحده أو لمولود؛ لأنه سنة الأذان مطلقا . ( ج ١ ص ٢٨٥ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم ، كذا في حاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غررالاحكام ج ١ ص ٥٥ كتاب الصلاة باب الاذان ، و مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ١٥٩ كتاب الصلاة باب الاذان )

[٢] في البحر : وأطلق في الالتفات ولم يقيده بالأذان وقدمنا عن الغنية أنه يحول في الإقامة أيضا وفي السراج الوهاج لا يحول فيها؛ لأنها لإعلام الحاضرين بخلاف الأذان فإنه إعلام للغائبين، وقيل يحول إذا كان الموضع متسعا . ( ج ١ ص ٤٥٠ كتاب الصلاة باب الاذان ) = راتلونکی مخ

## ۳۴۰ - دمؤذن دپاره په اذان او اقامت کي خبري کول

**الإستفتاء:** دمؤذن دپاره داذان په مابين کي خبري کول، اوياد اقامت کونکي دپاره د اقامت په مابين کي خبري کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د اذان او اقامت دواړو په مابين کي خبري کول مکروه دي[1].

## ۳۴۱ - داذان پروخت داذان داورېدونکي دپاره خبري کول

**الإستفتاء:** چي هغه اذان شروع وي چي پرسنت طريقه برابروي په دغه وخت کي داذان داورېدونکي دپاره خبري کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وخت کي داذان داورېدونکي خبري کول، ياپه بل شي سره مشغول کېدل دادب خلاف عمل دى[2].

---

وفي النهر الفائق : ولم يقل: فيهما إيماء إلى أنه لا يحول وجهه في الإقامة لأنها لإعلام الحاضرين بخلاف الأذان وقيل يحول إذا كان المكان متسعا ... وفي القنية يحول مطلقا وبه جزم في البحر. والثاني أعدل الأقوال . ( ج ۱ ص ۱۷۴ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح : ص ۱۵۹ كتاب الصلاة باب الاذان ، ومنحة الخالق على البحر ج ۱ ص ۴۵۰ كتاب الصلاة باب الاذان )

[1] في مراقي الفلاح : و يكره الكلام في خلال الأذان ولو برد السلام و يكره الكلام في الإقامة لتفويت سنة الموالاة . ( ص ۱۶۱ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في المبسوط للسرخسي ج ۱ ص ۲۷۸ كتاب الصلاة باب الاذان ، والبحر ج ۱ ص ۴۴۹ كتاب الصلاة باب الاذان )

[2] في ردالمحتار : وينبغي للسامع أن لايتكلم ولايشتغل بشيء في حالة الأذان والإقامة ولايرد السلام أيضا . ( ج ۱ ص ۲۹۴ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد ،

### ۳۴۲ - په اذان، اقامت کي دخبرو وروسته داذان، اقامت راګرځول

**الإستفتاء:** که یو مؤذن یا اقامت کونکی داذان یا اقامت په مابین کي خبري وکړي، دغه اذان او اقامت دوهم وار راګرځول غواړي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

اقامت به نه راګرځوي، اود اذان په مابین کي که لږخبري وکړي، یعني یوه یادوې کلمې ووایي، نوراګرځول نه غواړي.

اوکه تردغه ډېري خبري وکړي، نوبیادغه اذان راګرځول غواړي خوپه مراقی الفلاح کي فرمایي: چي دغه راګرځول مستحب دي[1].

### ۳۴۳ - مؤذن به داذان په مینځ کي د سلام جواب ورکوي که نه

**الإستفتاء:** که مؤذن ته یوچاداذان په مینځ کي سلام ووایه، نومؤذن به ددغه سلام جواب ورکوي او که نه ؟

---

كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۶۲ كتاب الصلاة باب الاذان ، والبدائع ج ۱ ص ۳۸۳ كتاب الصلاة فصل في بيان مايجب على السامعين عند الأذان )

[1] في مراقي الفلاح : ويستحب إعادته أي الأذان بالكلام فيه لأن تكراره مشروع كما في الجمعة دون الإقامة .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "بالكلام فيه" أي مطلقا وقيل لا يعاد مطلقا ثالثها يعاد بالكلام الكثير دون اليسير وهو الأشبه كما في البحر عن الخلاصة والكلمة والكلمتان يسير كما في القهستاني . ( ص ۱۶۱ كتاب الصلاة باب الاذان )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

ددغه سلام جواب نه داذان په مينځ کي لازم دی اونه وروسته تراذان[۱].

## ۳۴۴ -مؤذن ديوې کلمې وروسته دستي بله کلمه ووايي که انتظار وکړي

**الإستفتاء:** مؤذن چي داذان يوه کلمه ووايي، نوتردغه وروسته به دستي دوهمه کلمه وايي، که به يوڅه وخت انتظارکوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

مؤذن به اذان ترهري کلمې وروسته دومره اندازه انتظارکوي چي اوريدونکی ددغه کلمې جواب ورکولای سي[۲].

## ۳۴۵ - په خوله باندي داذان دجواب ورکولو حکم

**الإستفتاء:** په خوله باندي د اذان جواب ورکول څه حکم لري ؟

---

[۱] في الهندية : ويكره رد السلام في الأذان والإقامة ولا يجب الرد بعده على الأصح . ( ج ۱ ص ۵۵ كتاب الصلاة الباب الثاني في الأذان الفصل الأول في صفته وأحوال المؤذن ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۴۹ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۸۶ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في اول من بنى المنابر للاذان )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويترسل فيه) بسكتة بين كل كلمتين.

وفي ردالمحتار : (قوله: بسكتة) أي تسع الإجابة . ( ج ۱ ص ۲۸۵ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم ، كذا في شرح النقاية لملا على القاري ج ۱ ص ۲۰۲ كتاب الصلاة باب الاذان )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه کي اختلاف دی، خوراجح قول دادی چي دغه جواب واجب نه دی مستحب دی[۱].

## ۳۴۶ - په خوله سره داذان دجواب طریقه

**الإستفتاء:** داذان جواب چي په خوله سره ورکوي نو دمؤذن دهري کلمې سره به یوځای یوه یوه کلمه وایي اوکه ترهري کلمې وروسته به ددغه کلمې جواب ورکوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

داذان ترهري کلمې وروسته به ددغه کلمې جواب ورکوي[۲].

---

[۱] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : إختلف في الإجابة فقيل واجبة ... وقيل مندوبة ... والحاصل أنه اختلف التصحيح في وجوب الإجابة باللسان والأظهرعدمه . ( ص ۱۶۳ کتاب الصلاة (باب الاذان)

وفي ردالمحتار : والذي ينبغي تحريره في هذا المحل أن الإجابة باللسان مستحبة وأن الإجابة بالقدم واجبة إن لزم من تركها تفويت الجماعة، وإلا بأن أمكنه إقامتها بجماعة ثانية في المسجد أول بيته لا تجب، بل تستحب مراعاة لأول الوقت والجماعة الكثيرة في المسجد بلا تكرار . ( ج ۱ ص ۲۹۴ کتاب الصلاة باب الاذان مطلب في المواضع التي يندب لها الاذان في غير الصلاة)

[۲] في البحر : وفي حديث عمرو بن أبي أمامة التنصيص على أن لا يسبق المؤذن بل يعقب كل جملة منه بجملة منه . ( ج ۱ ص ۴۵۲ کتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۶۳ کتاب الصلاة باب الاذان ، وفتح القدير ج ۱ ص ۲۱۸ کتاب الصلاة باب الاذان ، وردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۳ کتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد)

## ۳۴۷ - د حی علی الصلاة او حی علی الفلاح د جواب طریقه

**الإستفتاء**: مؤذن چي په اذان کي د حی علی الصلاة ، حی علی الفلاح کلمې و وايي نو اورېدونکی به په جواب کي څه وايي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

که اورېدونکی په جواب کي همدغه کلمه ووايي، يعني د حی علی الصلاةپه جواب کي حی علی الصلاة او د حی علی الفلاح په جواب کي حی علی الفلاح ووايي، هم صحيح دی؛ ځکه په ځينو احاديثو کي دغه جواب راغلی دی.

او که د دغه دواړو په جواب کي د لاحول ولاقوة الابالله کلمه ووايې، دا هم صحيح دی؛ ځکه په ځينو احاديثو کي بيا دغه جواب راغلی دی.

خو په ردالمحتار او البحر الرائق کي د فتح القدير په حواله فرمايي: چي ښه خبره داده چي د دغه هري کلمې په جواب کي همدغه کلمه خپله وويل سي او هم لاحول ولاقوة الا بالله ورسره يو ځای سي[1].

---

[1] في ردالمحتار : واختار في الفتح الجمع بينهما عملا بالأحاديث، قال: فإنه ورد في بعضها صريحا «إذا قال حي على الصلاة قال حي على الصلاة إلخ» وقولهم إنه يشبه الاستهزاء لا يتم، إذ لا مانع من اعتباره مجيبا بهما داعيا نفسه مخاطبا لها، وقد رأينا من مشايخ السلوك من كان يجمع بينهما فيدعو نفسه ثم يتبرأ من الحول والقوة ليعمل بالحديثين، وقد أطال في ذلك وأقره في البحر والنهر وغيرهما. قلت: وهو مذهب سلطان العارفين سيدي محيي الدين نص عليه في الفتوحات المكية . ( ج ۱ ص ۲۹۳ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۵۲ كتاب الصلاة باب الاذان )

## ۳۴۸ - د الصلاة خير من النوم د جواب طريقه

**الإستفتاء:** د سهارپه اذان ددې کلمې ( الصلاة خير من النوم ) داورېدلو پروخت به اورېدونکی څه وايي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

ځيني فقهاء کرام فرمايي: چي د دغه کلمې په جواب کي دي داکلمه ووايي ( صدقت وبررت ) اوځيني فقهاء کرام داورسره زياته وي چي وبالحق نطقت اوځيني فقهاء کرام بيافرمايي: چي داکلمه به وايي چي صدقت وبالحق نطقت خوپه الطحطاوي کي فرمايي چي ښه خبره داده چي دغه ټول سره يوځای کړل سي، يعني داسي ووايي: ( صدقت وبررت وبالحق نطقت )اوځيني فقهاء کرام بيا فرمايي: چي داکلمه دي ووايي: چي ( ماشاء الله کان وما لم يشأ لم يکن ) نوښه خبره داده چي دغه جواب ورکول سي ( صدقت وبررت وبالحق نطقت ) اوکه په دغه کلماتوکي په بله يوه سره جواب ورکول سي،نودغلط يادبدعت حکم بايدنه پروکړل سي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وفي الصلاة خير من النوم فيقول صدقت وبررت . ( ج ۱ ص ۲۹۳ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۷ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الثاني في كلمات الأذان والإقامة وكيفيتهما ، والبحر ج ۱ ص ۴۵۰ )

وفي ردالمحتار : (قوله: فيقول صدقت وبررت) بكسر الراء الأولى وحكي فتحها: أي صرت ذا بر: أي خير كثير، قيل يقول للمناسبة، ولورود خبر فيه. ورد بأنه غير معروف وأجيب بأن من حفظ حجة على من لم يحفظ. ونقل الشيخ إسماعيل عن شرح الطحاوي زيادة وبالحق نطقت . ( ج ۱ ص ۲۹۳ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد )= راتلونکی مخ

### ۳۴۹- که داذان په وخت کي جواب پاته سي وروسته جواب ورکول

**الإستفتاء:** که يوڅوک داذان دهري کلمې سره جواب و نه وايې نوتر ټول اذان وروسته به دغه اذان ته جواب ورکوي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که تراذان وروسته ډېروخت نه وي تېرسوی، نوجواب دي ورکړي اوکه ډېروخت تېرسي بيا جواب نه ورکول کيږي[1].

### ۳۵۰- دقرآن کريم تلاوت کوي اذان شروع سي جواب ورکړي که نه

**الإستفتاء:** که يوڅوک دقرآن کريم تلاوت کوي او اذان شروع سي نودغه شخص خپل تلاوت ته دوام ورکړي اوکه تلاوت پريږدي او داذان جواب ورکړي ؟

---

وفي مراقي الفلاح : و في أذان الفجر قال المجيب صدقت وبررت بفتح الراء الأولى وكسرها أو يقول ما شاء الله كان وما لم يشأ لم يكن عند قول المؤذن في أذان الفجر الصلاة خير من النوم .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "وبررت" عطف تفسير على ما قبله من بر في كلامه إذا صدق وبر في يمينه إذا حفظها وقيل يقول صدقت وبالحق نطقت كما في مجمع الأنهر ولا خفاء في حسن الجمع . ( ص ۱۶۴ كتاب الصلاة باب الاذان )

[1] في البحر : ولم أر حكم ما إذا فرغ المؤذن ولم يتابعه السامع هل يجيب بعد فراغه وينبغي أنه إن طال الفصل لا يجيب وإلا يجيب . ( ج ۱ ص ۴۵۲ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ص ۲۹۳ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد)

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه شخص به د قرآن کريم تلاوت پرېږدي او د اذان جواب به ورکړي[۱].

## ۳۵۱- دتعليم اوتعلم په وخت کي اذان ته جواب ورکول

**الإستفتاء:** که يو ثوک د شرعي علم په تعليم او تعلم باندي اختهوي او اذان شروع سي نو دغه شخص به خپل تعليم او تعلم بندوي اذان ته به جواب ورکوي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دهغه راجح قول پربناء چي د اذان جواب په خوله سره ورکول مستحب دي دغه شخص به خپل تعليم او تعلم نه بندوي[۲].

---

[۱] في الهندية : ولا يشتغل بقراءة القرآن ولا بشيء من الأعمال سوى الإجابة، ولو كان في القراءة ينبغي أن يقطع ويشتغل بالاستماع والإجابة . ( ج ۱ ص ۵۷ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الثاني في كلمات الأذان والإقامة وكيفيتهما ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۵۰ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۲ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد )

[۲] في البحر : وفي المجتبى في ثمانية مواضع إذا سمع الأذان لا يجيب في الصلاة واستماع خطبة الجمعة وثلاث خطب الموسم والجنازة وفي تعلم العلم وتعليمه والجماع والمستراح وقضاء الحاجة والتغوط . ( ج ۱ ص ۴۵۲ كتاب الصلاة باب الاذان ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۱۶۳ كتاب الصلاة باب الاذان ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۲۹۲ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد )

## ۳۵۲ - تراذان وروسته دعاء اود دعاءدويلو طريقه

**الإستفتاء:** تراذان كولووروسته به كومه دعاء وايي اوپه څه طريقه به يې وايي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

تراذان كولووروسته ددعاء په باره كي په احاديثوكي مختلفي دعاوي رانقل سوي دي چي په هغوكي يوه دغه مشهوره دعاء ده چي امام البخاري رحمه الله تعالى هم رانقل كړې ده چي هغه دعاء داده :

(اللّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْته )اودبيهقي په روايت كي (إنَّك لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ) هم ورسره راغلي دي نودغه هم بايدورسره يوځای كړل سي.

اودويلو طريقه يې داده چي اول به درود شريف ووايي، بيابه وروسته دغه دعاء ووايي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ويدعوعند فراغه بالوسيلة لرسول الله صلى الله عليه وسلم.

وفي ردالمحتار : (قوله: ويدعو إلخ) أي بعد أن يصلي على النبي صلى الله عليه وسلم لما رواه مسلم وغيره «إذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما يقول ثم صلوا علي، فإنه من صلى علي صلاة صلى الله عليه بها عشرا ثم سلوا لي الوسيلة فإنها منزلة في الجنة لا تنبغي إلا لعبد مؤمن من عباد الله، وأرجو أن أكون أنا هو، فمن سأل الله لي الوسيلة حلت له الشفاعة » وروى البخاري وغيره «من قال حين يسمع النداء: اللهم رب هذه الدعوة التامة والصلاة القائمة آت محمدا الوسيلة والفضيلة، وابعثه مقاما محمودا الذي وعدته حلت له شفاعتي يوم القيامة» وزاد البيهقي في آخره «إنك لا تخلف الميعاد»

**۳۵۳ - اذان یو څوک وکړي اقامت بل څوک کوي**

**الإستفتاء:** که اذان یو څوک وکړي، اقامت بل څوک کوي څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه اذان کونکی څوک داقامت په وخت کي حاضر نه وي نودبل چا دپاره اقامت مکروه نه دی.

او که دغه اذان کونکی حاضروي، نوبیاکه دغه اذان کونکی په دغه نه خفه کېدی چي اقامت بل څوک وکړي، نوددغه دوهم کس اقامت مکروه نه دی.

او که دغه اذان کونکی شخص دبل چاپه اقامت کولو خفه کېدی، نودبل چادپاره اقامت کول مکروه دي[1].

---

وتمامه في الإمداد والفتح. قال ابن حجر في شرح المنهاج: وزيادة والدرجة الرفيعة وختمه بيا أرحم الراحمين لا أصل لهما . ( ج ۱ ص ۲۹۳ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في كراهة تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۲۱۸ كتاب الصلاة باب الاذان ، ومثله في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۱۶۴ كتاب الصلاة باب الاذان )

[1] في الهندية :وإن أذن رجل وأقام آخرإن غاب الأول جاز من غير كراهة وإن كان حاضرا ويلحقه الوحشة بإقامة غيره يكره وإن رضي به لايكره عندنا . ( ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، كذا في المحيط البرهاني ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة الفصل السادس عشر في التغني والالحان نوع آخرفي اذان المحدث والجنب وبيان من يكره اذانه ومن لايكره ، والبناية شرح الهداية ج ۲ص ۹۷كتاب الصلاة باب الاذان شروط المؤذن )

## ۳۵۴ - د کوچني د غوږ د اذان د حی علی الصلاة، حی علی الفلاح سره مخ اړول

**الإستفتاء:** د کوچني په غوږکي چي اذان کوي نود حی علی الصلاة اوحی علی الفلاح په وخت کي راسته او چپه طرف ته مخ اړول سنت دي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه اذان کي هم دلمانځه داذان په شان دحی علی الصلاة اوحی علی الفلاح په وخت کي راسته او چپه طرف ته مخ اړول سنت دي[1].

## ۳۵۵ - د کوچني په غوږ کي داذان پروخت قبلې ته مخ کول

**الإستفتاء:** د کوچني په غوږکي د اذان پروخت هم دلمانځه داذان په شان قبلې شريفي ته مخ کول پکار دي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

ددغه اذان په وخت کي هم د قبلې شريفي طرف ته مخ اړول پکار دي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويلتفت فيه) وكذا فيها مطلقا، وقيل إن المحل متسعا (يمينا ويسارا) فقط؛ لئلا يستدبر القبلة (بصلاة وفلاح) ولو وحده أو لمولود؛ لأنه سنة الأذان مطلقا . ( ج ۱ ص ۲۸۵ كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم ، كذا في حاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غررالاحكام ج ۱ ص ۵۵ كتاب الصلاة باب الاذان ، ومراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۱۵۹ كتاب الصلاة باب الاذان )

[2] في تقريرات الرافعي على ردالمحتار : قال السندي فيرفع المولود عند الولادة على يديه مستقبل القبلة . ( ج ۱ ص ۴۵ متلعق ج ۱ ص ۲۸۵ من ردالمحتار كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم )

## ۳۵۶ - دكوچني په يوه غوږكي به اذان كوي اوكه په دواړوكي

**الاستفتاء** :كله چي يو څوک د كوچني په غوږكي اذان كوي نو په يوه غوږكي به يې اذان كوي اوكه په دواړو غوږونو كي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

په راسته غوږكي به اذان وروكړي اوپه چپه غوږكي به اقامت وروكړي اوداهم مستحب ده چي دكوچني په غوږكي دغه آيت مبارک هم ورووايي {وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ}[1].

## ۳۵۷-دكوچني په غوږكي دولاد ت وروسته دستي كه وروسته اذان وسي

**الإستفتاء**:دكوچني په غوږ كي به څه وخت اذان كوي، يعني ترولادت وروسته سمدستي به اذان كوي اوكه يوڅوورځي وروسته ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

---

[1] في مرقاة المفاتيح : وفي شرح السنة: روي أن عمر بن عبد العزيز رضي الله عنه كان يؤذن في اليمنى ويقيم في اليسرى إذا ولد الصبي. قلت: قد جاء في مسند أبي يعلى الموصلي، عن الحسين رضي الله عنه مرفوعا: «من ولد له ولد فأذن في أذنه اليمنى وأقام في أذنه اليسرى لم تضره أم الصبيان » " كذا في الجامع الصغير للسيوطي رحمه الله. قال النووي في الروضة: ويستحب أن يقول في أذنه " {وإني أعيذها بك وذريتها من الشيطان الرجيم} . ( ج ٨ ص ٨١ كتاب الصيد والذبائح باب العقيقة الفصل الثاني )

وفي تقريرات الرافعي على ردالمحتار : قال السندي فيرفع المولود عند الولادة على يديه مستقبل القبلة ويؤذن في اذنه اليمنى ويقيم في اليسرى . ( ج ١ ص ٤٥ متلعق ج ١ ص ٢٨٥ من ردالمحتار كتاب الصلاة باب الاذان مطلب في الكلام على حديث الاذان جزم )

په دغه مسئله کي دفقهاء کرامو په کتابونوکي يوخاص عبارت موږنه دی پیداکړی، البته په کوموکتابونوکي چي ددغه اذان بيان ذکردی لکه مرقاة المفاتيح، دهغو کتابونودعباراتوڅخه دامعلوميږي چي ترولادت وروسته سمدستي به کوچنی يوصالح انسان ته يوسي، چي هغه يې په غوږکي اذان وروکړي؛ ځکه په دغه کتابونوکي داذان يوحکمت دابيان سوی دی چي ددغه اذان په سبب کوچنی ديوقسم مشکل څخه ساتل کيږي چي هغه ته ام الصبيان ويل کيږي، اوبل حکمت دابيان سوی دی چي دماشوم غوږته به اول واردالله جل جلاله ذکر په داسي طريقه سره ورسيږي چي ده ته به دايمان اولمانځه دعوت پکښي موجودوي[1].

---

[1] في مرقاة المفاتيح : قد جاء في مسند أبي يعلى الموصلي، عن الحسين رضي الله عنه مرفوعا: «من ولد له ولد فأذن في أذنه اليمنى وأقام في أذنه اليسرى لم تضره أم الصبيان» ... والأظهر أن حكمة الأذان في الأذن أنه يطرق سمعه أول وهلة ذكر الله تعالى على وجه الدعاء إلى الإيمان والصلاة التي هي أم الأركان . ( ج ٨ ص ٨١ كتاب الصيد والذبائح باب العقيقة الفصل الثاني )

# باب الشروط والارکان

## ۳۵۸ - که بندي په محبس کي پر اودس اوتیمم قدرت و نه لري

**الإستفتاء:** که یوبندي په محبس کي پراوبوباندي قدرت نه ولري اونه داسي پاک شی پیداکړي چي تیمم پرووهي نودلمانځه په باره کي به څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه بندي به بېله اوداسه اوتیمم څخه دلمونځ کونکي په شان عمل وکړي خودلمانځه نیت به نه کوي قرائت به نه وايي.

اوهرکله چي پراوداسه، یاتیمم باندي قدرت پیداکړي نوبیادغه لمنځونو قضاء پرلازمه ده[1].

## ۳۵۹ - دلمانځه دپاره دځومره ځای پاکوالی شرط دی

**الإستفتاء:** دلمانځه دپاره دځومره ځای پاکوالی شرط دی ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (والمحصور فاقد) الماء والتراب (الطهورين) بأن حبس في مكان نجس ولا يمكنه إخراج تراب مطهر، وكذا العاجز عنهما لمرض (يؤخرها عنده وقالا يتشبه) بالمصلين وجوبا، فيركع ويسجد إن وجد مكانا يابسا وإلا يومئ قائما ثم يعيد كالصوم (به يفتى وإليه صح رجوعه) أي الإمام .

وفي ردالمحتار : (قوله وقالا يتشبه بالمصلين) أي احتراما للوقت قال ط: ولا يقرأ كما في أبي السعود، سواء كان حدثه أصغر أو أكبر آه قلت: وظاهره أنه لا ينوي أيضا؛ لأنه تشبه لا صلاة حقيقية. ( ج ١ ص ١٨٥ كتاب الطهارة باب التيمم مطلب فاقد الطهورين )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دپښو، اود لاسو، اودځنګنو، اودپزي، اوتندي داېښودلودځای پاکوالی شرط دی[۱].

## ۳۶۰ - پر مردار ځای دپاک شي تر هوار پدلو وروسته لمونځ کول

**الإستفتاء:** که پریومردار ځای باندي یوپاک شی هوارسي پردغه باندي لمونځ کول څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه پاک شی داسي نرم وي چي ددغه نجاست بوی تر راوزي اویاددغه پاک شي دنرم والي په وجه باندي هغه لاندي مردار ځای معلومیږي، اومرداري هم پرداسي ځای باندي وي چي پښه باندي ایښودل کیږي اویا دسجدې پروخت مخ، لاسونه اوځنګنونه پرایښودل کیږي نوپردغه باندي لمونځ صحیح نه دی.

---

(۱) في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ومكانه) أي موضع قدميه أو إحداهما إن رفع الأخرى وموضع سجوده اتفاقا في الأصح، لا موضع يديه وركبتيه على الظاهر .

وفي ردالمحتار : (قوله على الظاهر) أي ظاهر الرواية كما في البحر، لكن قال في منية المصلي: قال في العيون: هذه رواية شاذة اهـ. وفي البحر: واختار أبو الليث أن صلاته تفسد، وصححه في العيون اهـ. وفي النهر: وهو المناسب لإطلاق عامة المتون، وأيده بكلام الخانية. قلت: وصححه في متن المواهب ونور الإيضاح والمنية وغيرها، فكان عليه المعول. وقال في شرح المنية: وهو الصحيح، لأن اتصال العضو بالنجاسة بمنزلة حملها وإن كان وضع ذلك العضو ليس بفرض . ( ج ۱ ص ۲۹۶ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، كذا في شرح المنية ص ۲۰۱ كتاب الصلاة الشرط الثاني ، ومراقي الفلاح ص ۱۶۸ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها )

اوکه دغه پاک شی دغسي نرم نه وي، اويادغه مرداري پردغه ځایونو باندي نه وي چي ذکرسول نوبیاپردغه باندي لمونځ صحیح دی[1].

[1] في ردالمحتار : وكذا الثوب إذا فرش على النجاسة اليابسة؛ فإن كان رقيقا يشف ما تحته أو توجد منه رائحة النجاسة على تقدير أن لها رائحة لا يجوز الصلاة عليه، وإن كان غليظا بحيث لا يكون كذلك جازت اه ثم لا يخفى أن المراد إذا كانت النجاسة تحت قدمه أو موضع سجوده لأنه حينئذ يكون قائما أو ساجدا على النجاسة لعدم صلوح ذلك الثوب لكونه حائلا، فليس المانع هو نفس وجود الرائحة حتى يعارض بأنه لو كان بقربه نجاسة يشم ريحها لا تفسد صلاته فافهم . ( ج ۱ ص ۴۶۳ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة وما يكره فيها مطلب في التشبه باهل الكتاب ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۶۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، وشرح المنية ص ۲۰۲ كتاب الصلاة الشرط الثاني )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ومكانه) أي موضع قدميه أو إحداهما إن رفع الأخرى وموضع سجوده اتفاقا في الأصح، لا موضع يديه وركبتيه على الظاهر إلا إذا سجد على كفه كما سيجيء .

وفي ردالمحتار (قوله على الظاهر) أي ظاهر الرواية كما في البحر، لكن قال في منية المصلي: قال في العيون: هذه رواية شاذة اه. وفي البحر: واختار أبو الليث أن صلاته تفسد، وصححه في العيون اه. وفي النهر: وهو المناسب لإطلاق عامة المتون، وأيده بكلام الخانية. قلت: وصححه في متن المواهب ونور الإيضاح والمنية وغيرها، فكان عليه المعول. وقال في شرح المنية: وهو الصحيح، لأن اتصال العضو بالنجاسة بمنزلة حملها وإن كان وضع ذلك العضو ليس بفرض . ( ج ۱ ص ۲۹۶ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۶۸ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، وقاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۲۹ كتاب الطهارة فصل في النجاسة التي تصيب الثوب او الخف او البدن او الارض )

## ۳۶۱ - پر مردار ځای دخاوري تر هوار پدلو وروسته لمونځ کول

**الإستفتاء:** که پريومردار ځای باندي خاوره هواره سي نوپردغه خاوره باندي لمونځ صحيح دی او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دومره خاوره پرهواره سي چي ددغه مرداری بوی نه ځيني راوزي نو لمونځ پرصحيح دی، اوکه دمرداری بوی ځيني راووزي نوبيالمونځ پرصحيح نه دی[1].

## ۳۶۲ - دپټوچي يوطرف مرداروي، پرهغه بل طرف يې لمونځ کول

**الإستفتاء:** که يوچا پر يوپټويابل کوچني شي باندي لمونځ کوی، اوددغه پټويابلي جامې يوطرف مردار وو، خودغه شخص يې پرهغه مردار ځای باندي ولاړنه وو اودسجدې پروخت يې لاسونه، مخ اوځنګنونه هم نه پرلګول، نوايا ددغه شخص لمونځ پردغه شي باندي روا دی اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

صحيح قول دادی چي پردغه جامه باندي پردغه طريقه لمونځ روادی[2].

---

[1] في الهندية : إذا أراد أن يصلي على الأرض عليها نجاسة فكبسها بالتراب ينظر إن كان التراب قليلا بحيث لو استشمه يجد رائحة النجاسة لا يجوز وإن كان كثيرا لا يجد الرائحة يجوز . ( ج ۱ ص ۶۲ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثاني في طهارة ما يستر به العورة وغيره ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۴۶۳ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها مطلب في التشبه باهل الكتاب ، ومراقي الفلاح ص ۱۶۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها )

[2] في الهندية : ولو صلى على بساط وفي ناحية منه نجاسة إن لم تكن في موضع قدميه ولا في موضع سجوده لا تمنع أداء الصلاة سواء كان البساط كبيرا أو صغيرا بحيث لو حرك أحد طرفيه

### ۳۶۳- دخښتي يوطرف مرداروي پرهغه پاک طرف يې لمونځ کول

**الإستفتاء**: که ديوې خښتي يوطرف مردار وي، نوپرهغه بل پاک طرف باندي يې لمونځ کول روادي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

ددغه خښتي پرهغه پاک طرف باندي لمونځ کول روادي[1].

### ۳۶۴- دتختې يوطرف مرداروي پرهغه بل پاک طرف يې لمونځ کول

**الإستفتاء**: که ديوې تختې يوطرف ته مرداري ورسيږي، نو اوس که دغه تخته واړول سي اويوڅوک يې پرهغه بل طرف باندي لمونځ وکړي دغه روادی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

که دغه تخته دومره پنډه وي چي په دغه پنډوالي کي په پرې کېدلوسره دوې نرمي تختې ورڅخه جوړېدلې، نوددغه تختې پرهغه پاک طرف باندي

---

يتحرك الطرف الآخر هو المختار . ( ج ١ ص ٦٢ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثاني في طهارة ما يستر به العورة وغيره ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٢٩٦ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، والبدائع ج ١ ص ٢٣٨ كتاب الطهارة فصل في بيان مقدار مايصير به المحل نجسا طهارة مكان المصلي )

[1] في التاتارخانية : اذا كانت النجاسة على باطن اللبنة او الآجرة وهو على ظاهرهما قائم يصلي لم يفسد صلاته . ( ج ٢ ص ٣٢ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ١٥٩٨ ) ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٤٦٣ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة وما يكره فيها مطلب في التشبه باهل الكتاب ، والهندية ج ١ ص ٦٢ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثاني في طهارة ما يستر به العورة وغيره )

لمونځ روادی، اوکه داسي نه وي نوبيايې پرهغه پاک طرف باندي هم لمونځ روا نه دی.[1]

## ۳۶۵ - په لمانځه کي دعورت پټول يوازي دبل چا څخه لازم دي

**الإستفتاء:** په لمانځه کي دعورت پټول يوازي دبل چاڅخه فرض دي اوکه دخپل ځان څخه هم فرض دي ، يعني که يوسړی عورت په داسي طريقه سره پټ کړي چي بل څوک يې نه ويني، خودغه شخص يې خپله ويني، مثلا دقميص دګريبان څخه نودغه لمونځ صحيح دی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دبل چاڅخه دعورت پټول دلمانځه دپاره فرض دي، دخپل ځان څخه فرض نه دي، نوددغه شخص لمونځ صحيح دی چي په استفتاء کي ذکرسو[2].

---

[1] في خلاصة الفتاوى : وكذا لو صلى على الخشب وفي الجانب الآخر نجاسة اكثر من قدر الدرهم وغلظ الخشب بحيث يقبل القطع يجوز . ( ج ۱ ص ۷۶ کتاب الصلاة الفصل السابع في طهارة الثوب والمكان ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۴۶۳ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة وما يكره فيها مطلب في التشبه باهل الكتاب ، والتاتارخانية ج ۲ ص ۳۲ کتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ۱۵۹۸ )

[2] في الهندية : وستر العورة في الصلاة من الغير فرض بالإجماع ومن نفسه غير فرض عند عامة المشايخ ... فإذا صلى في قميص بغير أزرار وكان لو نظر رأى عورته من زيقه فعند عامة المشايخ لا تفسد وهو الصحيح . ( ج ۱ ص ۵۸ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الأول في الطهارة وستر العورة ، كذا في التاتارخانية ج ۲ ص ۲۲ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاةوواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ۱۵۴۰ ) والبحر ج ۱ ص ۴۶۷ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

### ۳۶۶- دعورت څومره حصه چي ښکاره سي لمونځ نه صحيح کيږي

**الإستفتاء:** دلمانځه پروخت چي عورت څومره اندازه ښکاره وي، لمونځ نه ورسره صحيح کيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دلمانځه په وخت کي چي دعورت داندامونو څخه ديو اندام څلورمه حصه ښکاره وي، لمونځ نه ورسره صحيح کيږي[۱].

### ۳۶۷- که په لمانځه کي دعورت داندامونو يوڅه يوڅه حصه ښکاره وي

**الإستفتاء:** که دعورت داندامونوڅخه د دوو يادرو اندامونو لږ لږحصه ښکاره وي، اودهراندام ښکاره حصه ددغه اندام څلورمي حصې ته نه رسيږي، په دغه حالت کي لمونځ صحيح کيږي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

چي ددغه اندامونو دغه لڅ ځايونه سره جمع سي که دغه ټول لڅ ځايونه په دغه اندامونو کي دکوچني اندام څلورمي حصې ته رسېدل نولمونځ نه ورسره صحيح کيږي اوکه دغه اندازې ته نه رسېدل نو لمونځ ورسره صحيح کيږي[۲].

---

[۱] في مراقي الفلاح : وكشف ربع عضو من اعضاء العورة الغليظة او الخفيفة من الرجل والمرأة يمنع صحة الصلاة . ( ص ۱۹۵ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في متعلقات الشروط وفروعها ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۸ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الاول في الطهارة وستر العورة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في نظر الى وجه الامرد )

[۲] في الهندية : انكشاف ما دون الربع معفو إذا كان في عضو واحد وإن كان في عضوين أو أكثر وجمع وبلغ ربع أدنى عضو منها يمنع جواز الصلاة. كذا في شرح المجمع لابن الملك ولا يعتبر

### ۳۶۸- چي څومره وخت عورت ښکاره سي لمونځ نه صحیح کیږي

**الإستفتاء**:دلمانځه پروخت چي دعورت داندامونوڅخه دیوه اندام څلورمه حصه څومره وخت ښکاره وي نولمونځ نه ورسره صحیح کیږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصلیا**:

دغه عورت که دلمانځه دشروع ، یعني دتکبیر تحریمه دویلوپروخت ښکاره وي، نودلمانځه شروع نه ورسره صحیح کیږي، په دغه کي لږ اوډېر وخت فرق نه لري.

اوکه دغه دعورت ښکاره کېدل دلمانځه په مابین کي راسي نوکه دغه دعورت ښکاره کېدل دلمونځ کونکي په عمل سره راسـي په دغه سره لمونځ فاسدیږي که لږوخت وي اوکه ډېروخت وي.

اوکه دغه دعورت ښکاره کېدل دلمونځ کونکي په عمل سره نه وي نوبیاکه دغه دعورت دښکاره کېدلوپه وخت کي دلمانځه یورکن اداء سي اویاددرې تسبیح دویلوپه اندازه وخت دغه عورت ښکاره پاته سي نولمونځ په فاسدیږي اوکه تردغه دمخه بیرته دغه عورت پټ کړل سي نوبیالمونځ نه په فاسدیږي[1].

---

الجمع بالأجزاء كالأسداس والأتساع بل بالقدر حتى لو انكشف من الأذن تسعها ومن الساق تسعها يمنع؛ لأن المكشوف قدر ربع الأذن . ( ج ۱ ص ۵۸ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الاول في الطهارة وستر العورة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۱ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في نظر الى وجه الامرد ، وحاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۵۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويمنع) حتى انعقادها (كشف ربع عضو) قدر أداء ركن بلا صنعه . = راتلونکی مخ

## ۳۶۹ -په داسي نرمه جامه کي لمونځ کول چي عورت ترمعلوميږي

**الإستفتاء:** په داسي نرمه جامه کي لمونځ کول څه حکم لري چي عورت ترمعلوميږي، لکه دځيني ښځو نرم پړوني چي و ښېتان ترمعلوميږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه شان جامه سره عورت پټ نه بلل کيږي، نوکه دغه جامه دعورت پردومره حصه باندي وي چي دهغه حصې دلڅوالي په صورت کي لمونځ نه صحيح کېدی چي تفصيل يې ( ۳۲۲ / ۳۲۷ / ۳۲۸ ) مسئلو کي ذکرسو، نو په دغه

---

وفي ردالمحتار : (قوله ويمنع إلخ) هذا تفصيل ما أجمله بقوله وستر عورته ح (قوله حتى انعقادها) منصوب عطفا على محذوف أي ويمنع صحة الصلاة حتى انعقادها. والحاصل أنه يمنع الصلاة في الابتداء. ويرفعها في البقاء ح (قوله قدر أداء ركن) أي بسنته منية. قال شارحها: وذلك قدر ثلاث تسبيحات اه وكأنه قيد بذلك حملا للركن على القصير منه للاحتياط، وإلا فالقعود الأخير والقيام المشتمل على القراءة المسنونة أكثر من ذلك، ثم ما ذكره الشارح قول أبي يوسف. واعتبر محمد أداء الركن حقيقة، والأول المختار للاحتياط كما في شرح المنية، واحترز عما إذا انكشف ربع عضو أقل من قدر أداء ركن فلا يفسد اتفاقا لأن الانكشاف الكثير في الزمان القليل عفو كالانكشاف القليل في الزمن الكثير، وعما إذا أدى مع الانكشاف ركنا فإنها تفسد اتفاقا قال ح: واعلم أن هذا التفصيل في الانكشاف الحادث في أثناء الصلاة، أما المقارن لابتدائها فإنه يمنع انعقادها مطلقا اتفاقا بعد أن يكون المكشوف ربع العضو، وكلام الشارح يوهم أن قوله قدر أداء ركن قيد في منع الانعقاد أيضا. اه. (قوله بلا صنعه) فلو به فسدت في الحال عندهم قنية قال ح: أي وإن كان أقل من أداء ركن . ( ج ۱ ص ۳۰۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في نظر الى وجه الامرد )

وفي الطحطاوي على الدرالمختار : ( قوله حتى انعقادها ) عطف علي محذوف اى يمنع صحة الصلاة حتي انعقادها كما اذا احرم مكشوف العورة لاتنعقد وان لم يكن قدر اداء ركن . ( ج ۱ ص ۱۹۱ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

جامه کي لمونځ نه صحيح کيږي[۱].

## ٣٧٠ - که دمریض وینه جاري وي په مردار بدن او جامه لمونځ وکړي

**الإستفتاء:** چي یو سړی زخمي وي دمرداري پرېولل اویادپاکوجامو اغوستل ئی په طاقت نه وي ځکه ویني يې جاري وي نوپه مرداروجامواوپه مردار بدن باندی تقریبایوه نیمه میاشت لمونځ وکړي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه سړی چي په مردار بدن او مرداره جامه لمونځونه وکړي که چيري داسي حالت وي چي که دی دلمانځه دپاره جامه اوبدن پرېولي نودغه بدن اوجامه بيرته دلمانځه تراداکولومخکي په وينوکيږي اويادجامې اوبدن دپرېوللواوبدلولو قدرت نه لري نودغه لمونځونه يې صحيح دي قضاء نلري[۲].

---

[۱] في الهندية : والثوب الرقيق الذي يصف ما تحته لا تجوز الصلاة فيه . ( ج ١ ص ٥٨ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الاول في الطهارة وستر العورة ، كذا في البحر ج ١ ص ٤٦٧ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، والمبسوط للسرخسي ج ١ ص ١٣٣ كتاب الصلاة كيفية الدخول في الصلاة )

[۲] في الهندية : إذا كان به جرح سائل وقد شد عليه خرقة فأصابها الدم أكثر من قدر الدرهم أو أصاب ثوبه إن كان بحال لو غسله يتنجس ثانيا قبل الفراغ من الصلاة جاز أن لا يغسله وصلى قبل أن يغسله وإلا فلا هذا هو المختار هكذا في المضمرات . ( ج ١ ص ٤١ كتاب الصلاة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الأول في تطهير الأنجاس كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٢٢٤ كتاب الطهارة باب الحيض مطلب في احكام المعذور ، وفتح القدير ج ١ ص ١٦٤ باب الحيض والاستحاضة فصل في الاستحاضة ) = راتلونکی مخ

### ٣٧١ - كه پر بدن يا جامه دغوماشووينه وي

**الإستفتاء:** كه ديو چا پر بدن يا جامه باندي دغوماشووينه موجوده وي، ددغه سره لمونځ كول څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه ويني سره لمونځ كول روا دي كه څه هم دغه وينه ډېره وي[1].

### ٣٧٢ -جامه مرداره وي دپرېوللو شى ،پاكه جامه نه وي نو څنګه وكړي

**الإستفتاء:** كه ديو چا جامه مرداره وي، نه دجامې دپاره پاكونكى شى پيدا كولاى سي، او نه بله پاكه جامه پيدا كولاى سي، دغه شخص به څه كوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

كه ددغه جامې څلورمه حصه يا تردغه ډېره حصه پاكه وي، نودافرض ده چي په دغه جامه كي به لمونځ كوي، كه په لڅ بدن سره لمونځ وكړي نو لمونځ يې

---

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وإذا لم يجد) المكلف المسافر (ما يزيل به نجاسته) أو يقللها لبعده ميلا أو لعطش (صلى معها) أو عاريا (ولا إعادة عليه) .( ج ١ ص ٣٠٤ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في النظر الى وجه الامرد ، كذا في الهداية ج١ ص ٨٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، ومجمع الانهر ج ١ ص ١٢٣ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

وفي ردالمحتار : (قوله أو لعطش) أي خوفه حالا أو مآلا على نفسه أو على من تلزمه مؤنته فإنه لا يلزمه إزالة تلك النجاسة شراح المنية، ومثله خوف العدو وعدم وجود ثمنه ونحو ذلك .

[1] في الهندية : ودم البق والبراغيث والقمل والكتان طاهر وإن كثر . ( ج ١ ص ٤٦ كتاب الطهارة الباب السابع في النجاسة وأحكامها الفصل الثاني في الاعيان النجسة ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٢٢ كتاب الطهارة باب الانجاس والطهارة عنها ، والبدائع ج ١ ص ١٩٥ كتاب الطهارة فصل في الطهارة الحقيقية )

صحيح نه دی. او که د جامې ترڅلور مه حصه لږ پاکه وي نوره مرداره وي نو ښه خبره داده چي په دغه مرداره جامه کي لمونځ وکړي خو که په دغه صورت کي په لڅ بدن باندي لمونځ وکړي هم روا دی[1].

## ۳۷۳ - مسجداومحراب وي او قبله ورته معلومه نه وي څه وکړي

**الإستفتاء:** که یو څوک په داسي ځای کي وي چي مسجد او محراب موجود وي، خو نورانسان ته پخپله د قبلې شريفي طرف نه معلوميږي نو څه به کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه انسان به د دغه محراب طرف ته لمونځ وکړي په خپل فکر باندي عمل کول ورته روانه دي[2].

---

[1] في الهندية : وجد ثوبا ربعه طاهر وصلى عاريا لم يجز وإن كان أقل من ربعه طاهرا أو كله نجسا خير بين أن يصلي عاريا قاعدا بإيماء وبين أن يصلي فيه قائما بركوع وسجود وهو أفضل . ( ج ۱ ص ۶۰ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثاني في طهارة ما يستر به العورة وغيره ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۳ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في النظر الى وجه الامرد ، وفتح القدير ج ۱ ص ۲۲۹ كتاب الصلاة الصلاة باب شروط الصلاة التي تتقدمها)

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويتحرى) هو بذل المجهود لنيل المقصود (عاجز عن معرفة القبلة) بما مر (فإن ظهر خطؤه لم يعد) لما مر . .

وفي ردالمحتار : (قوله بما مر) متعلق بمعرفة، والذي مر هو الاستدلال بالمحاريب والنجوم والسؤال من العالم بها، فأفاد أنه لا يتحرى مع القدرة على أحد هذه . ( ج ۱ ص ۳۱۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب كرامات الاولياء ثابتة ،كذا في الهندية ج ۱ ص ۶۴ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة )

### ۳۷۴- مسجد نه وي ،داسي څوک وي چي دقبلې طرف ور معلوم وي

**الإستفتاء:** که یوڅوک په داسي ځای کي وي چي هلته مسجد اومحراب موجود نه وي،اودغه شخص ته پخپله دقبلې شریفي طرف نه معلومېدی، خو په دغه ځای کي داسي څوک وو چي دقبلې شریفي طرف ورته معلوم وي، نواوس به دغه شخص څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه شخص به ددغه چاڅخه پوښتنه وکړي چي دقبلې شریفي طرف ورته معلوم وي او په خپل فکرسره عمل ورته روا نه دی[1].

### ۳۷۵- محراب،اوداسي څوک نه وي چي دقبلې پوښتنه ور څخه وکړي

**الإستفتاء:** که یوڅوک په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد اومحراب وي، اونه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شریفي طرف معلوم وي، نواوس به دغه شخص څه کوي ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويتحرى) هو بذل المجهود لنيل المقصود (عاجز عن معرفة القبلة) بما مر (فإن ظهر خطؤه لم يعد) لما مر .

وفي ردالمحتار : (قوله بما مر) متعلق بمعرفة، والذي مر هو الاستدلال بالمحاريب والنجوم والسؤال من العالم بها، فأفاد أنه لا يتحرى مع القدرة على أحد هذه . ( ج ۱ ص ۳۱۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب كرامات الاولياء ثابتة ،كذا في الهندية ج ۱ ص ۶۴ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، والبحر ج ۱ ص ۴۹۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه انسان به خپله فکر وکړي پرهرطرف چي دده غالب گمان دقبلې شريفي سو، هغه طرف دده دپاره دقبلې شريفي طرف بلل کيږي، هغه طرف ته به لمونځ اداکړي[1].

## ٣٧٦ - محراب او دپوښتني څوک نه وي دبل چاپه فکر عمل وکړي

**الإستفتاء:** که يو څوک په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد او محراب وي اونه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شريفي طرف معلوم وي، اوس که دغه انسان پخپله دقبلې شريفي په طرف کي فکر ونه کړي، بلکه دبل چاپه فکرسره عمل وکړي، دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

پردغه انسان باندي پخپله فکر کول لازم دي، اودبل چاپه فکرسره عمل کول نه دي ورته روا[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويتحرى) هو بذل المجهود لنيل المقصود (عاجز عن معرفة القبلة) بما مر (فإن ظهر خطؤه لم يعد) لما مر .

وفي ردالمحتار : (قوله بما مر) متعلق بمعرفة، والذي مر هو الاستدلال بالمحاريب والنجوم والسؤال من العالم بها، فأفاد أنه لا يتحرى مع القدرة على أحد هذه . ( ج ١ ص ٣١٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب كرامات الاولياء ثابتة ،كذا في الهندية ج ١ ص ٦٤ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، والبحر ج ١ ص ٤٩٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

[2] في ردالمحتار : واستفيد مما ذكر أنه بعد العجز عن الأدلة المارة عليه أن يتحرى ولا يقلد مثله لأن المجتهد لا يقلد مجتهدا . ( ج ١ ص ٣١٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب كرامات الاولياء

## ۳۷۷-محراب او دپوښتني څوک نه وي اوس که بېله فکره يوطرف ته لمونځ وکړي

**الإستفتاء:** که يوڅوک په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد اومحراب وي اونه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شريفي طرف معلوم وي، اوس که دغه شخص خپله دقبلې شريفي په طرف کي فکر ونه کړي، بېله فکروهلو څخه يوطرف ته لمونځ وکړي، دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

پردغه انسان باندي دالازمه ده چي پخپله به فکرکوي، که بېله فکرکولو لمونځ وکړي، پرهرصورت ددغه لمانځه راګرځول پرلازم دي،خوپه يوه صورت کي يې دغه لمونځ راګرځول نه غواړي، هغه دا چي دغه انسان ته ترلمانځه وروسته دامعلومه سي چي دقبلې شريفي طرف ته يې لمونځ اداکړی وو[1].

---

ثابتة ،کذا في الهندية ج ١ ص ٦٤ کتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، والبحر ج ١ ص ٤٩٩ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وإن شرع بلا تحر لم يجز وإن أصاب) لترکه فرض التحري إلا إذا علم إصابته بعد فراغه فلا يعيد اتفاقا . ( ج ١ ص ٣٢١ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب إذا ذکر في مسألة ثلاثة أقوال فالأرجح الأول أو الثالث لا الوسط ، کذا في شرح المنية ص ٢٢٢ شرائط الصلاة الشرط الرابع ، وفتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ١ ص ٧٥ کتاب الصلاة باب الاذان مسائل اشتباه القبلة )

## ۳۷۸ - که په خپل فکر لمونځ یوطرف ته وکړي بیا معلومه سي چي قبله بل طرف ته وه

**الإستفتاء:** که یوڅوک په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد او محراب وي او نه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شریفي طرف معلوم وي او دی په خپل فکرسره یوطرف ته لمونځ وکړي، خو وروسته معلومه سوه چي دغه دقبلې شریفي طرف نه وو، نو اوس پردغه شخص باندي ددغه لمانځه راګرځول سته او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

پردغه انسان باندي ددغه لمانځه راګرځول نسته، که څه هم دقبلې شریفي دطرف دمعلومولو په فکرکي خطا وتلی وي[1].

## ۳۷۹-یوطرف ته لمونځ شروع کړي ,بیا یې یقین یاغالب ګمان سي چي قبله بل طرف ته ده

**الإستفتاء:** که یوڅوک په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد او محراب وي او نه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شریفي طرف معلوم وي، اودی په خپل فکرسره یوطرف ته لمونځ شروع کړي، خو وروسته دلمانځه په مابین کي

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ويتحرى) هو بذل المجهود لنيل المقصود (عاجز عن معرفة القبلة) بما مر (فإن ظهر خطؤه لم يعد) لما مر . ( ج ۱ ص ۳۱۹ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب کرامات الاولیاء ثابتة ،کذا في الهندیة ج ۱ ص ۶۴ کتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، والبحر ج ۱ ص ۵۰۲ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

يې پربل طرف باندي دايقين ياغالب ګمان سي چي دغه دقبلې شريفي طرف دی ، نواوس به دغه شخص څه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه شخص دي دلمانځه په مابين کي دغه بل طرف ته راوګرځي[1].

## ۳۸۰ - محراب اود پوښتني والانه وي اوپه جماعت سره لمونځ کوي

**الإستفتاء:** که يوڅه خلګ په داسي ځای کي وي چي هلته نه مسجد اومحراب وي اونه داسي څوک وي چي هغه ته دقبلې شريفي طرف معلوم وي، اودوی په خپل فکرسره يوطرف ته لمونځ کوي، نواوس په دغه حالت کي که دغه خلګ په جماعت سره لمونځ اداکوي، څه حکم يې دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه حالت کي په جماعت سره لمونځ صحيح کيږي، خو په دغه خلګو کي چي دکومو خلګو پرهغه طرف باندي دقبلې شريفي غالب ګمان وي چي پرهغه طرف باندي دامام غالب ګمان دقبلې شريفي وي، ددغه خلګو لمونځ په دغه امام پسي صحيح دی، اودکومو خلګو چي دامام دطرف څخه ماسوا پربل طرف باندي غالب ګمان دقبلې شريفي وي، نودغه خلګ که دامام پر حالت باندي علم ولري نو ددغه خلګو لمونځ په دغه امام پسي نه صحيح کيږي، اوکه دامام پرحالت علم

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وإن علم به في صلاته أو تحول رأيه) ولو في سجود سهو (استدار وبنى) حتى لو صلى كل ركعة لجهة جاز ( ج ١ ص ٣١٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب كرامات الاولياء ثابتة ،كذا في درر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٦١ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، والهداية ج ١ ص ٩٢ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة التي تتقدمها )

نه ولري لکه ډېره تاريکه وي، دامام حالت نه ورته معلومېږي چي مخ يې کوم طرف ته دی، نوپه دغه حالت کي ددغه خلګولمونځ په دغه امام پسي صحيح کيږي[1].

## ۳۸۱ -محراب نه وي تر څومره ليري اندازې دقبلې پوښتنه لازمه ده

**الإستفتاء:** که يو څوک په داسي ځای کي وي چي هلته مسجد اومحراب نه وي اوده ته خپله دقبلې شريفي طرف نه معلومېدی، نوچي څومره اندازه نژدې يوداسي څوک وي چي قبله شريفه ورته معلومه وي ، نولمونځ کونکی په دې خبره مکلف دی چي پوښتنه به ورڅخه کوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په دومره اندازه کي نژدې يوداسي څوک وي چي قبله شريفه ورته معلومېږي چي که دغه لمونځ کونکی نعره وروکړي اواز يې ور رسيږي نوپه دغه حالت کي دی مکلف دی چي ددغه شخص څخه به پوښتنه کوي په خپل فکرسره به عمل نه کوي اوکه دغه شخص دومره ليري وي چي دلمونځ کونکی نعره نه ور رسيږي نوپه دغه صورت کي لمونځ کونکی په دې نه دی مکلف چي پوښتنه به ور

[1] في الهندية : ولو صلوا بجماعة يجزيهم أيضا إلا صلاة من تقدم على إمامه أو علم بمخالفة إمامه في الصلاة وكذا لو كان عنده أنه تقدم على الإمام أو صلى إلى جانب آخر غير ما صلى إمامه . ( ج ١ ص ٦٥ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٢١ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب اذا ذكر في مسئلة ثلاثة اقوال فالارجح الاول او الثالث لا الوسط ، والبحر ج ١ ص ٥٠٤ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

ښځه کوي[۱].

### ۳۸۲-په کلي کي محراب نه وي دقبلې معلومولو دپاره به په شپه کي دروازې وټکوي که نه

**الإستفتاء:** که یوڅوک یوکلي ته راسي اودقبلې شریفي طرف نه ورته معلومیږي اوپه دغه کلي کي مسجد اومحراب هم موجود نه وي، اودکلي خلګ خپل کورونوته تللي وي، لکه په شپه کي، نو اوس به دغه شخص دقبلې شریفي دمعلومولودپاره ددغه کلي دخلګو دکورونو دروازې ورټکوي، اوکه به په خپل فکرسره عمل کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

پردغه شخص باندي دکورونوددروازو ټکول لازم نه دي، بلکه خپله به فکر وکړي، پرهرطرف چي دده غالب ګمان دقبلې شریفي سو ، هغه طرف ته به خپل لمونځ اداکړي[۲].

---

[۱] في الهندية : وحد الحضرة أن يكون بحيث لو صاح به سمعه . ( ج ۱ ص ۶۵ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۱۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مبحث في استقبال القبلة )

[۲] في الهندية : رجل صلى في المسجد في ليلة مظلمة بالتحري فتبين أنه صلى إلى غير القبلة جازت صلاته؛ لأنه ليس عليه أن يقرع أبواب الناس للسؤال عن القبلة . ( ج ۱ ص ۶۴ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الثالث في استقبال القبلة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۱۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب مسائل التحري في القبلة ، والبحر ج ۱ ص ۵۰۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

## ۳۸۳ - دلمانځه نيت څه شي ته ويل کيږي

**الإستفتاء:** دلمانځه دپاره چي نيت فرض دی ددغه نيت معنی څه شی دی، يعني په خوله الفاظ ويل لازم دي اوکه دزړه اراده لازمه ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

نيت په حقيقت کي دزړه ارادې ته ويل کيږي، اودغه دزړه اراده دلمانځه دپاره فرض ده دخولې الفاظ فرض نه دي، بلکه مستحب دي[1].

## ۳۸۴-دلمانځه نيت په زړه کي سم وکړي دخولې په توروکي خطا وزي

**الإستفتاء:** که يوڅوک دلمانځه دپاره په زړه کي سمه ټينګه اراده وکړي، خو دخولې په الفاظوکي خطاسي، مثلا په زړه کي دماپښين دلمانځه اراده لري، خوپه خوله باندي په خطاء سره ماځيګر ورڅخه يادسي، دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

اصلا دزړه اراده معتبر ه ده، دخولې الفاظ که څه هم ورسره مخالف سي پروانه کوي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والمعتبر فيها عمل القلب اللازم للإرادة ... والتلفظ عند الإرادة بها مستحب هو المختار . ( ج ۱ ص ۳۰۵ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة بحث النية ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۸۲ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، والتاتارخانية ج ۲ ص ۳۴ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ۱۶۰۹ )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والمعتبر فيها عمل القلب اللازم للإرادة فلا عبرة للذكر باللسان إن خالف القلب لأنه كلام لا نية . = راتلونکی مخ

## ۳۸۵ - دلمانځه درکعتودتعدادنیت شرط دی که نه که څوک خطاوزي

**الإستفتاء:** دلمانځه دپاره په نیت کي درکعتونو دتعداد نیت شرط دی اوکه نه ، اوکه یوڅوک په دغه کي خطاسي، لکه دسهار په لمانځه کي دڅلور رکعاته نیت وکړي، دغه لمونځ يې صحیح دی اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

درکعتونو دتعداد نیت لازم نه دی،که پکښې خطاوزي نولمونځ يې صحیح دی پروانه کوي[1].

## ۳۸۶ - دلمانځه دنیت سره دقبلې دمخامخ کېدلونیت ضروي نه دی

**الإستفتاء:** دلمانځه دپاره په نیت تړلوکي قبلې شریفي ته دمخامخ کېدلو نیت هم لازم دی اوکه نه ؟

---

وفي ردالمحتار : (قوله إن خالف القلب) فلو قصد الظهر وتلفظ بالعصر سهوا أجزأه . (ج ۱ ص ۳۰۵ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة بحث النية ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۹۱ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، وحاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۶۳ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

[1] في الهندية : ولا يشترط عدد الركعات هكذا في شرح الوقاية حتى لو نواها خمس ركعات وقعد على رأس الرابعة أجزأه وتلغو نية الخمس . (ج ۱ ص ۶۶ کتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ۱ ص ۶۳ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، وتبيين الحقائق ج ۱ ص ۲۶۲ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دلمانځه دنيت سره قبلې شريفي ته دمخامخ کېدلو نيت لازم نه دی[۱].

## ۳۸۷ - دکومو لمونځونو دپاره دمطلق لمانځه نيت کافي دی

**الإستفتاء:** دکومو لمونځونو دپاره دمطلق لمانځه نيت کافي دی، يعني چي د نيت دتړلو پروخت ديوه خاص لمانځه تعيين ضروروي نه وي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

نفل او سنت لمونځ اودتراويح لمونځ دغه ټول دمطلق لمانځه په نيت سره صحيح کيږي، ديو خاص لمانځه نيت کول ورته لازم نه دي[۲].

## ۳۸۸ - دکومو لمونځونو دپاره دمطلق لمانځه نيت کفايت نه کوي

**الإستفتاء:** هغه کوم لمونځونه دي چي دمطلق لمانځه په نيت سره نه صحيح کيږي، بلکه خاص دشروع کېدونکي لمانځه نيت ورته شرط دی ؟

---

(۱) في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ونية استقبال القبلة ليست بشرط مطلقا على الراجح . ( ج ۱ ص ۳۱۳ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب مضى عليه سنوات وهو يصلي الظهر قبل وقتها ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۷۹ كتاب الصلاة الفصل الثامن في النية ، والبحر ج ۱ ص ۴۸۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

(۲) في الهندية : ويكفيه مطلق النية للنفل والسنة والتراويح هو الصحيح . ( ج ۱ ص ۶۵ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في البحر ج ۱ ص ۴۸۴ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة بحث النية )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

فرض لمونځ ، وتر لمونځ ، داخترونو لمونځ ، دجنازې لمونځ ، دنذر لمونځ ، دهغه نفلي لمانځه قضاء چې ترشروع وروسته فاسد سوی وي ، او دطواف دوه رکعاته لمونځ، دغه ټول لمونځونه دمطلق لمانځه په نيت سره نه صحيح کيږي، بلکه خاص ددغه لمانځه نيت ورته لازم دی چې شروع پکښې کوي لکه دماځيګر مثلا[1].

## ۳۸۹ - دتراويح لمونځ په کوم نيت باندې صحيح کيږي

**الإستفتاء:** دتراويح لمونځ په کوم نيت باندي صحيح کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

احتياط دادی چې دتراويح دلمانځه په نيت، يا ددغه وخت دسنت په نيت، يا دشپې دلمانځه په نيت باندي اداکړل سي.

---

[1] في درر الحكام شرح غرر الاحكام : لا بد لمصل الفرض كالرواتب الخمس والجمعة والواجب كالوتر وصلاة العيد والجنازة ونحوها من تعيينه.

وفي حاشية الشرنبلالي على درر الحكام شرح غرر الاحكام : (قوله والواجب كالوتر) الكاف للتمثيل فلا يحتاج إلى قوله بعدها ونحوها والمراد بنحوها ما أوجبه بنذر أو إفساد وركعتا الطواف . ( ج ۱ ص۶۳ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۶۶/۶۵ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، ومراقي الفلاح ص ۱۷۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها )

او دمطلق لمانځه په نيت سره يې په اداکولوکي اختلاف دی، خوډېرقوي قول دادی چي دغه هم صحيح دی[۱].

## ۳۹۰ - دامام دپاره دلمانځه دنيت سره دامامت نيت کول

**الإستفتاء:** دامام دپاره دلمانځه دنيت سره دامامت نيت هم لازم دی که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دامام دپاره يوازي دلمانځه نيت لازم دی، دامامت نيت پرلازم نه دی[۲].

---

[۱] في البحر : (قوله: ويكفيه مطلق النية للنفل والسنة والتراويح) ... وأما في السنة والتراويح فظاهر الرواية ما في الكتاب كما في الذخيرة والتجنيس وجعله في الهداية هو الصحيح وفي المحيط أنه قول عامة المشايخ وفي منية المفتي وخزانة الفتاوى أنه المختار ورجحه في فتح القدير ونسبه إلى المحققين ... والاحتياط في التراويح أن ينوي التراويح أو سنة الوقت أو قيام الليل . ( ج ۱ ص ۴۸۴ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب في حضور القلب والخشوع ، والهندية ج ۱ ص ۶۵ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية )

[۲] في الهندية : والإمام ينوي ما ينوي المنفرد ولا يحتاج إلى نية الإمامة . (ج ۱ ص ۶۶ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۳۱۲ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب مضى عليه سنوات وهو يصلي الظهر قبل وقتها ، والبحر ج ۱ ص ۴۹۳ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

## ۳۹۱ - امام نیت وکړي چې زه ددغه نفر امام نه یم اقتداء یې څنګه ده

**الإستفتاء:** که امام دیونارینه په باره کې دانیت وکړي چې زه به ددغه نارینه امام نه یم، دی به په ماپسې اقتداء نه کوي، بیادغه شخص په دغه امام پسې په لمانځه کې اقتداء وکړي، نوددغه شخص اقتداء پسې صحیح ده او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

ددغه شخص اقتداء په دغه امام پسې صحیح ده که څه هم امام دغه نیت کړی دی چې زه به دده امام نه یم[1] .

## ۳۹۲ - دشروع سوي لمانځه په مینځ کې دبل لمانځه نیت کول

**الإستفتاء:** که یو څوک پرلمانځه ودریږي اوبیاددغه لمانځه په مابین کې په زړه کې دبل لمانځه نیت وکړي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که داسې وي چې ددغه بل لمانځه نیت چې کوي ددغه دپاره الله اکبر ورسره ووایي نوهغه زوړ لمونځ یې پردغه ځای ختم سوپه نوي لمانځه کې یې شروع صحیح سوه.

اوکه ددغه بل لمانځه دپاره صرف په زړه کې نیت وکړي الله اکبر نه ورسره ووایي نوبیایوازې دغه دزړه په نیت سره اول لمونځ نه قطع کیږي اوپه دوهم

---

[1] في الهندية : والإمام ينوي ما ينوي المنفرد ولا يحتاج إلى نية الإمامة حتى لو نوى أن لا يؤم فلانا فجاء فلان واقتدى به جاز . ( ج ۱ ص ۶۶ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۳۱۲ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة مطلب مضى عليه سنوات وهو يصلي الظهر قبل وقتها )

لمانځه کي شروع نه راځي[۱].

### ۳۹۳-دلمانځه په مابين کي ددغه لمانځه دشروع په نيت دوهم تکبير

**الإستفتاء:** که يوڅوک پرلمانځه باندي ودريږي اوبيا دلمانځه په مابين کي مثلاپردوهم رکعت ددغه لمانځه دسرڅخه دشروع کولوپه نيت باندي دوهم تکبير ووايي، اوس په دغه تکبيرسره ددغه شخص لمونځ دسر څخه نوی شروع سو، هغه زوړختم سو، اوکه دسرڅخه نوی نه دی شروع سوی، هغه زوړ پرخپل حال پاته دی، مثلاکه دوه رکعتيز لمونځ وي، نودغه شخص به اوس دوه رکعاته کوي اوکه به يورکعت بل کوي اويوهغه زوړحسابيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که دغه شخص ددغه دوهم تکبير دويلوپه وخت کي په خوله باندي دنيت الفاظ ووايي، نوپه دغه الفاظوسره يې هغه زوړ لمونځ فاسدسو، تردغه دوهم تکبير وروسته نوی لمونځ شروع سوپوره لمونځ به وکړي.

اوکه ددغه دوهم تکبير دويلوپروخت په خوله سره هيڅ شی ونه وايي، بلکه يوازي په زړه کي دسرڅخه دشروع کولونيت وکړي اودوهم تکبيروو ايي، په دغه دوهم تکبيرسره نه هغه زوړلمونځ ختميږي اونه نوی لمونځ دسر څخه شروع

---

[۱] في الهندية : ولو افتتح الظهر ثم نوى التطوع أو العصر أو الفائتة أو الجنازة وكبر يخرج عن الأول ويشرع في الثاني والنية بدون التكبير ليس بمخرج . ( ج ۱ ص ۶۶ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۸۰ كتاب الصلاة الفصل الثامن في النية ، وتبيين الحقائق مع حاشية الشلبي ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها )

کیږي، بلکه هغه اداسوی لمونځ یې صحیح او معتبردی، هغه پاته به ورسره پوره کړي، مثلاپه یادسوی مثال کي به یوبل رکعت وکړي دوه به نه کوي[1].

## ۳۹۴ - دلمانځه دپاره یوازي تکبیر ویل یا یوازي دزړه نیت کول

**الإستفتاء:** که یوڅوک دلمانځه دپاره په زړه کي نیت وکړي خوتکبیر نه وواییي اویاپه زړه کي نیت ونه کړي یوازي په خوله سره تکبیروواییي، نویوازي دغه دزړه په نیت اویایوازي په دغه تکبیرسره ددغه شخص شروع په لمانځه کي صحیح کیږي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصلیا:**

په دغه طریقه سره ددغه شخص شروع په لمانځه کي نه صحیح کیږي ځکه دشروع دپاره نیت اوتکبیر دواړه لازم دي[2].

---

[1] في خلاصة الفتاوى : اما اذا صلى ركعة من الظهر ثم كبر ينوي الظهر فهي هي ويجزئ بتلك الركعة هذا اذا نوى بقلبه اما اذا نوى بلسانه وقال نويت ان اصلي الظهر انتقض ظهره ولايجزئ بتلك الركعة . ( ج ۱ ص ۸۰ كتاب الصلاة الفصل الثامن في النية ، كذا في تبيين الحقائق مع حاشية الشلبي ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة ومايكره فيها )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : و إنما يصير شارعا بالنية عند التكبير لا به وحده ولا بها وحدها بل بهما . ( ج ۱ ص ۳۵۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في حديث الاذان جزم ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۲۶ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في كيفية افعال الصلاة )

## ۳۹۵ - په زړه کي نیت وکړي بیاځه وخت وروسته تکبیرتحریمه ووایي

**الإستفتاء**: که یو څوک په زړه کي دلمانځه دپاره نیت وکړي، څو یوڅه وخت وروسته تکبیر ووایي او په لمانځه کي شروع وکړي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

مستحب دادی چي دنیت او دتکبیرپه مابین کي وخت او بل عمل رانه سي.

اوکه په مابین کي بل عمل راغی نو که دغه عمل دلمانځه متعلق وي، لکه دلمانځه ځای ته تګ کول، یااودس کول، نوپروانه لري په لمانځه کي شروع صحیح ده.

اوکه دغه عمل دلمانځه سره اړه نلري، لکه یوشی خرڅول یارانیول اوداسي نور، نوبیاپه دغه زاړه نیت سره شروع صحیح نه ده، بل نیت به کوي اودهغه سره به تکبیروایي[1].

---

[1] في البحر : والمراد بقوله بلا فاصل أي بين النية والتكبير الفاصل الأجنبي وهو عمل لا يليق في الصلاة كالأكل والشرب؛ لأن هذه الأفعال تبطل الصلاة فتبطل النية وشراء الحطب والكلام، وأما المشي والوضوء فليس بأجنبي ... وفي منية المصلي والأحوط أن ينوي مقارنا للتكبير ومخالطا له كما هو مذهب الشافعي اه وبه قال الطحاوي لكن عندنا هذا الاحتياط مستحب وليس بشرط . ( ج ۱ ص ۴۸۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۶ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة بحث النية ، والهندية ج ۱ ص ۶۷ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية )

## ۳۹۶ - اول وار تکبیرووايي، بیاوروسته په زړه کي نیت وکړي

**الإستفتاء:** که دلمانځه دپاره نيت ترتکبير وروسته کړي، يعني اول وار تکبير تحريمه ووايي، وروسته بيانيت وکړي، په دغه طريقه سره شروع صحيح کيږي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه طريقه سره په لمانځه کي شروع نه صحيح کيږي؛ ځکه دالازمه ده چي نيت به ترتحريمې وروسته نه وي[1].

## ۳۹۷ - تکبیرتحریمه داسي کراروواېي چي خپله يې هم نه واوري

**الإستفتاء:** که يوڅوک تکبير تحريمه داسي کرار ووايي چي خپله يې هم نه اوري دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دتکبير تحريمه دومره په زوره ويل فرض دي چي که عذرنه وي (لکه کوڼ والی يانور اوازونه ) نولمونځ کونکی يې پخپله اوري، نوکه يوڅوک تکبير تحريمه په داسي طريقه سره ووايي چي ببله عذره يې پخپله هم نه اوري، نوپه دغه تحريمه سره ددغه شخص شروع په لمانځه کي نه صحيح کيږي[2].

---

[1] في الهندية : ولا يعتد بالنية المتأخرة عن التكبير . ( ج ۱ ص ٦٧ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الرابع في النية ، كذا في مراقي الفلاح ص ۱۷٦ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۰۷ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة بحث النية )

[2] في ردالمحتار : (ونطقه) اعترض بأن النطق ركن التحريمة فكيف يكون شرطا؟ وأجيب بأن المراد نطقه على وجه خاص، وهو أن يسمع بها نفسه، فمن همس بها أو أجراها على قلبه لا تجزيه، وكذا

### ۳۹۸ - امام پر ركوع وي ځوک اقتداء پسي وکړي او يو تكبير ووايي

**الاستفتاء :** كه امام پرركوع وي اويوځوک اقتداء پسي وكړي خويوتكبير ووايي نو ددغه شخص شروع صحيح كيږي اوكه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا :**

شروع يې صحيح كيږي ځكه دغه يو تكبيريې تكبيرتحريمه بلل كيږي كه څه هم دى دغه تكبيردركوع دتكبيرپه نيت ووايي[1].

---

جميع أقوال الصلاة من ثناء وتعوذ وبسملة وقراءة وتسبيح وصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم وكعتاق وطلاق ويمين . ( ج ۱ ص ۳۳۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب مجمل الكتاب إذا بين بالظني فالحكم بعده مضاف إلى الكتاب )

وفي مراقي الفلاح : و الرابع منها النطق بالتحريمة بحيث يسمع نفسه بدون صمم ولا يلزم الأخرس تحريك لسانه على الصحيح وغير الأخرس يشترط سماعه نطقه .وفي الطحطاوي : قوله: "بدون صمم" أما لو كان به صمم أو كانت جلبة أصوات فالشرط أن يكون بحيث لو أزيل المانع لأمكن السماع ولا يشترط أن يسمع نفسه حقيقة في تلك الحالة كما لا يشترط إسماع غيره إلا في العقود كبيع وهبة ونكاح فلا بد من إسماع غيره أيضا . ( ص ۱۷۶ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها)

[1] في الهندية : ومدرك الإمام في الركوع لا يحتاج إلى تكبيرتين خلافا لبعضهم ولو نوى بتلك التكبيرة الواحدة الركوع لا الافتتاح جاز ولغت نيته . ( ج ۱ ص ۱۲۰ كتاب الصلاة الباب العاشر في ادراک الفريضة ، كذا في حاشية الشلبي على تبيين الحقائق ج ۱ ص ۴۵۷ كتاب الصلاة باب ادراک الفريضة ، والبحر ج ۲ ص ۱۳۵ كتاب الصلاة باب ادراک الفريضة )

## ۳۹۹ - که څوک په لمانځه کي دالله اکبر په لفظ کي مدوکړي

**الإستفتاء:** که یوڅوک په لمانځه کي دالله اکبر په لفظ کي مدوکړي لمونځ يې صحیح دی اوکه نه؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه مد دالله دلفظ په الف کي وکړي اويايې داکبردلفظ په الف کي وکړي، په دغه دوه صورته کي که دغه مد په تکبیرتحریمه یعني اول الله اکبر کي وي ، نودلمانځه شروع يې نه صحیح کیږي اوکه دلمانځه په مابین کي وي نولمونځ په فاسدیږي.

اوکه دغه مد داکبرد لفظ په با، یا په را کلمه کي وکړي نوپه دغه کي اختلاف دی ځیني علماء فرمايې: چي پروانه لري صحیح دی، اوځیني علماء فرمايې: چي دمخکي دوو صورتونو په شان حکم لري، یعني که په اول الله اکبر کي وي نو په لمانځه کي يې شروع نه صحیح کیږي اوکه دلمانځه په مابین کي وي نولمونځ په فاسدیږي، او دبا په باره کي په الدرالمختارکي دغه دوهم قول اصح بلل سوی دی اود راء په باره هم کي د ردالمحتاردعبارت څخه دغه دوهم قول راجح معلومیږي، اوبل داچي لمونځ یوأهم عبادت دی اودعباداتو بنا پراحتیاط ده نو په دغه لمانځه سره دي اکتفا نه کوي، بلکه بیرته دي دوهم وار خپل لمونځ په سمه طریقه سره اداکړي.

اوکه دغه مد دالله دلفظ پرلام باندي وکړي نوکه دیوه الف ترمقدار زائدنه سي نودغه ښه کاردی؛ ځکه پردغه لام باندي الف سته اوکه تردغه زائدسي دوه الفه ته ورسیږي نوبیامکروه بلل کیږي.

اوکه دغه مد دالله دلفظ پر هاء باندي وسي نوکه په دي قصد سره وي چي

دغه لفظ جمع دلاه لفظ سي نو په ردالمحتار کي فرمايي چي دغسي حکم يې دی لکه داول، يعني که په اول الله اکبر کي وي نو دلمانځه شروع يې نه صحيح کيږي اوکه دلمانځه په مابين کي وي نولمونځ په فاسديږي ، اوکه په دغه قصد سره نه وي بيالمونځ نه فاسدوي[1].

---

[1] في ردالمحتار : اعلم أن المد إن كان في الله فإما في أوله أو وسطه أوآخره فإن كان في أوله لم يصر به شارعا وأفسد الصلاة لو في أثنائها ولا يكفر إن كان جاهلا لأنه جازم والإكفار للشك في مضمون الجملة وإن كان في وسطه فإن بالغ حتى حدث ألف ثانية بين اللام والهاء كره قيل والمختار أنها لاتفسد وليس ببعيد وإن كان في آخره فهو خطأ ولا يفسد أيضا وقياس عدم الفساد فيهما صحة الشروع بهما وإن كان المدفي أكبرفإن في أوله فهوخطأمفسد وإن تعمده قيل يكفر للشك وقيل لا ولاينبغي أن يختلف في أنه لا يصح الشروع به وإن في وسطه أفسد ولا يصح الشروع به وقال الصدر الشهيد يصح وينبغي تقييده بما إذا لم يقصد به المخالفة كما نبه عليه محمد بن مقاتل وفي المبتغى لا يفسد لأنه إشباع وهو لغة قوم وقيل يفسد لأن (أكبار) اسم ولد إبليس آه فإن ثبت أنه لغة فالوجه الصحة وإن في آخره فقد قيل يفسد الصلاة وقياسه أن لا يصح الشروع به أيضا كذا في الحلية ملخصا. وتمام أبحاث هذه المسألة في البحر والنهر عند قوله وكبر بلا مد و ركع. أقول وينبغي الفساد بمد الهاء لأنه يصير جمع لاه كما صرح به بعض الشافعية تأمل . ( ج ١ ص ٣٥٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة الى انتهائها ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٤٨ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٢٢٦ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة فصل في كيفية افعال الصلاة )

وفي تقريرات الرافعي قوله ( وينبغي الفسادبمدالهاء ) ظاهره اذاقصدانه جمع لاه والافالنقل انه خطأولايفسد .

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وكذا الباء في الاصح . ( ج ١ ص ٣٥٥ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة الى انتهائها ، كذا في شرح المنية ص ٢٦٠ كتاب الصلاة فرائض الصلاة الاول تكبيرة الافتتاح )

## ۴۰۰ -ترامام مخکي تکبیرتحریمه ویل

**الإستفتاء:** که یوڅوک په تکبیرتحریمه کي ترامام مخته سي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دالله دلفظ ځخه دامام ترالله لفظ مخکي فارغ سي اویادالله لفظ دامام سره ووایې لکن داکبردلفظ ځخه دامام تراکبرلفظ مخکي فارغ سي په دغه دواړه صورته کي ددغه سړی نه په امام پسي اقتداء صحیح ده اونه یې په خپل یوازي لمانځه کي شروع صحیح ده[1].

## ۴۰۱ - په امام پسي اقتداء وکړي خوتکبیر تحریمة په ولاړه سره نه ووایي درکوع دتګ په حال کي یې ووایي

**الإستفتاء:** که امام پررکوع وي اویوڅوک راسي اقتداء پسي وکړي خو په داسي طریقه سره چي تکبیرتحریمه په ولاړه نه ووایي بلکه رکوع ته دتګ په حالت کي یې ووایي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

که دغه شخص دغه تکبیرپه داسي وخت کي پای ته ورسوي چي ولاړي ته

---

[1] في الهندية : فإن قال المقتدي الله أكبر ووقع قوله الله مع الإمام وقوله أكبر وقع قبل قول الإمام ذلك قال الفقيه أبو جعفر الأصح أنه لا يكون شارعا عندهم ... وأجمعوا على أن المقتدي لو فرغ من قوله الله قبل فراغ الإمام من ذلك لا يكون شارعا في الصلاة في أظهر الروايات . ( ج ۱ ص ۶۸ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في شرح المنية ص ۲۶۰ كتاب الصلاة فرائض الصلاة الاول تكبيرة الافتتاح ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة الى انتهائها )

نژدې وي نو په لمانځه کي يې شروع صحيح ده.

او که يې په داسي وخت کي پای ته ورسوي چي رکوع ته نژدې وي، لکه عموماچي خلګ هم دغسي کوي نوبياددغه شخص شروع په لمانځه کي نه صحيح کيږي اودغه عمل يې لمونځ نه بلل کيږي[1].

## ۴۰۲ - په فرض او وتر لمانځه کي دولاړي حکم

**الإستفتاء:** په فرض او وتر لمانځه کي ولاړه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په فرض او وترلمانځه کي پرهغه چاباندي ولاړه فرض ده چي پرولاړه قدرت ولري که څه هم پرلکړه وي دغه شخص که پرټوله ولاړه قدرت ولري نوټوله ولاړه پرفرض ده او که پريوڅه ولاړه قدرت ولري پرټول يې نه ولري، نوبيا په هغه اندازه ولاړه پر فرض ده چي قدرت پر لري، او که يوڅوک پرولاړه باندي هيڅ نوعه قدرت نه لري نه پرټوله ولاړه اونه پريوڅه ولاړه ، نوپردغه شخص باندي بياولاړه

---

[1] في مراقي الفلاح : و الثاني من شروط صحة التحريمة الإتيان بالتحريمة قائما أو منحيا قليلا قبل وجود انحنائه بما هو أقرب للركوع قال في البرهان لو أدرك الإمام راكعا فحنى ظهره ثم كبر إن كان إلى القيام أقرب صح الشروع ولو أراد به تكبير الركوع وتلغو نيته لأن مدرك الإمام في الركوع لا يحتاج إلى تكبير مرتين خلافا لبعضهم وإن كان إلى الركوع أقرب لا يصح الشروع . ( ص ۱۷۵ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۰۸ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۵۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة الى انتهائها )

لازمه نه ده لکه چي د مريض په باب کي ذکر کيږي[١].

## ۴۰۳ - دسهارپه دوه رکعاته سنت لمانځه کي دولاړي حکم

**الإستفتاء:** د سهار په دوه رکعته سنت لمانځه کي ولاړه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د سهار په دوه رکعته سنت لمانځه کي قوي قول دادی چي ولاړه پکښي لازمه ده بېله عذره په ناسته سره نه صحيح کيږي[٢].

---

[١] في الهندية : (ومنها القيام) وهو فرض في صلاة الفرض والوتر . ( ج ١ ص ٦٩ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح ص ١٨١ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها ، وحاشية الشرنبلالي على دررالحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٦٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي الهندية : ولو كان قادرا على بعض القيام دون تمامه يؤمر بأن يقوم قدر مايقدر حتى إذا كان قادرا على أن يكبر قائما ولايقدر على القيام للقراءة أو كان قادرا على القيام لبعض القراءة دون تمامها يؤمر بأن يكبر قائما ويقرأ قدر مايقدر عليه قائما ثم يقعد إذا عجز قال شمس الأئمة الحلواني رحمه الله تعالى هو المذهب الصحيح ولوترك هذا خفت أن لا تجوز صلاته، كذا في الخلاصة. ولو قدر على القيام متكئا الصحيح أنه يصلي قائما متكئا ولا يجزيه غير ذلك لو قدر على أن يعتمد على عصا أوعلى خادم له فإنه يقوم ويتكئ . ( ج ١ ص ١٣٦ كتاب الصلاة الباب الرابع عشر في صلاة المريض ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٥٦٠ كتاب الصلاة باب صلاة المريض ، والدرالمنتقى على هامش مجمع الانهر ج ١ ص ٢٢٧ كتاب الصلاة باب صلاة المريض )

[٢] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ومنها القيام ... في فرض وملحق به كنذر وسنة فجر في الاصح لقادر عليه . ( ج ١ ص ٣٢٨ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مبحث القيام ، كذا في البحر ج ٢ ص ١١١ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل ، والمبسوط للسرخسي ج ٢ ص ١٩٩ كتاب التراويح الفصل السابع في ادائها قاعدا من غير عذر )

## ۴۰۴ - په نفل لمانځه کي دولاړي حکم

**الإستفتاء:** په نفل لمانځه کي ولاړه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

نفل لمونځ په ناسته سره روادی که څه هم پر ولاړه باندي قدرت ولري، خو که یوڅوک بېله عذره په ناسته سره نفل لمونځ وکړي نودولاړي دلمانځه نیمایي ثواب یې دی، اوکه دعذر په وجه باندي په ناسته سره نفل لمونځ وکړي نوپوره ثواب یې دی[1].

## ۴۰۵ - بېله عذره په لمانځه کي کوږ درېدل

**الإستفتاء:** که یوڅوک بېله عذره په لمانځه کي کوږ ودرېږي په دغه درېدلو سره دولاړي فرض ادا کیږي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که دومره کوږ ودرېږي چي لاسونه یې څنګنوته رسیږي نوپه دغه سره دولاړي فرض نه اداکیږي اوکه تردغه اندازې لږ کوږ والی ولري نوبیاپه دغه سره دولاړي فرض اداکیږي[2].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار:(ويتنفل مع قدرته على القيام قاعدا) لا مضطجعا إلا بعذر (ابتداء و) كذا (بناء) بعد الشروع بلا كراهة في الأصح كعكسه بحر.وفيه أجر غير النبي صلى الله عليه وسلم على النصف إلا بعذر.

وفي ردالمحتار : (قوله على النصف إلا بعذر) أما مع العذر فلا ينقص ثوابه عن ثوابه قائما . (ج ۱ ص ۵۱۵ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مبحث المسائل الستة عشرية ، كذا في البحرج۲ص۱۱۰ كتاب الصلاة باب الوتروالنوافل،وشرح المنية ص ۲۷۰ فرائض الصلاة الثاني القيام )

[2] في البحر: وحد القيام ان يكون بحيث اذا مد يديه لاتنال ركبتيه . ( ج ۱ ص ۵۰۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۲۸ كتاب الصلاة باب

## ۴۰۶ - په لمانځه کي دفرض قرائت اندازه

**الإستفتاء:** په لمانځه کي د فرض قرائت اندازه څومره ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه مسئله کي دامام صاحب څخه درې قولونه راغلي دي:

۱- ظاهرالروایة دادی چي فرض قرائت یو آیت دی.

۲- دوهم دادی چي دغه اندازه هغه ده چي پرهغه باندي دقرآن اطلاق کیږي او دبنده دخطاب سره مشابهت نه ولري، په ردالمحتارکي فرمايي: چي علامه قدوري اوعلامه زيلعي دغه قول راجح بللی دی.

۳- دریم دادی چي دغه اندازه یوغټ آیت یادرې لنډ اياتونه ده ، اودغه دصاحبينوقول هم دی او دلمانځه دصحيح والي په مسئله کي احتياط هم په دغه قول کي دی اوپه دغه وجه سره ښه قول هم بلل سوی دی، نو دلمانځه دصحيح والي په مسئله کي چي هم په دغه قول سره عمل وکړل سي[1].

---

صفة الصلاة مبحث القيام ، والهندية ج ۱ ص ۶۹ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وفرض القراءة آية على المذهب .

وفي ردالمحتار (قوله على المذهب) أي الذي هو ظاهر الرواية عن الإمام وفي رواية عنه ما يطلق عليه اسم القرآن ولم يشبه قصد خطاب أحد. وجزم القدوري بأنه الصحيح من مذهب الإمام ورجحه الزيلعي . ( ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب تحقيق مهم فيما لو تذكر في ركوعه أنه لم يقرأ فعاد تقع القراءة فرضا وفي معنى كون القراءة فرضا وواجبا وسنة )

وفي الهداية: وأدنى مايجزئ من القراءة في الصلاة آية عند أبي حنيفة رحمه الله وقالا ثلاث آيات قصار أو آية طويلة . ( ج ۱ ص ۱۰۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة )= راتلونکی مخ

## ۴۰۷ - په يوازي فاتحه ويلو فرض قرائت اداء کيږي که نه

**الإستفتاء:** په لمانځه کي چي قرائت فرض دی دغه دفاتحې (الحمدلله) څخه ماسوا دنورقرائت ويل فرض دي اوکه دغه فرض په فاتحه سره هم اداکيږي؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

په لمانځه کي دافرض نه ده چي دسورة الفاتحه څخه ماسوابل ځای به خامخا وايي بلکه فرض داده چي دقرآن کريم يوځای به وايي نودغه فرض هم په فاتحه سره اداکيږي هم په بل ځای سره اداکيږي[1].

## ۴۰۸ - دلمانځه په څورکعاته کي قرائت ويل فرض دي

**الإستفتاء:** دلمانځه په څورکعته کي قرائت ويل فرض دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

دفرض لمانځه په دوه رکعته کي قرائت ويل فرض دي.

---

وفي خلاصة الفتاوی: وعندهما لايجزيه ما لم يقرأ في كل ركعة ثلاث آيات قصار او آية طويلة وهذا قول ابي حنيفة الاول . ( ج ۱ ص ۹۳ كتاب الصلاة الفصل الحادي عشر في القراءة )

وفي الجوهرة النيرة : وقولهما في القراءة احتياط والاحتياط في العبادات أمر حسن . ج ۱ ص ۷۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۹۱ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وفتح القدير ج ۱ ص ۲۹۰ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة )

[1] في الهداية : فقراءة الفاتحة لا تتعين ركنا عندنا وكذا ضم السورة اليها . ( ج ۱ ص ۹۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۲۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مبحث القراءة ، والبدائع ج ۱ ص ۲۹۵ كتاب الصلاة الكلام في القراءة )

اودنفل، سنت او وتر لمانځه په ټولو رکعتونو کي قرائت ویل فرض دي[۱].

## ۴۰۹- دفرض لمانځه هغه رکعتونه چي قرائت ویل پکښي فرض دي

**الإستفتاء:** دفرض لمانځه په کومودوو رکعتو کي دقرائت ویل فرض دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دفرض لمانځه په مطلق دوه رکعته کي دقرائت ویل فرض دي، یعني دفرض لمانځه په هر دوه رکعته کي چي قرائت وویل سي فرض په اداء کیږي، اودافرض نه ده چي خامخابه په اولو دوو رکعتونو کي قرائت وایې، بلکه په اولو دوورکعتونو کي قرائت ویل واجب دي[۲].

---

[۱] في الهندية : وأما محل القراءة ففي الفرائض الركعتان هكذا في المحيط ثنائيا كان أو ثلاثيا أو رباعيا وسواء كانتا أوليين أو أخريين أو مختلفتين. هكذا في شرح النقاية للشيخ أبي المكارم حتى لو لم يقرأ في واحدة منه أو قرأ في واحدة فقط فسدت صلاته. كذا في الشمني شرح النقاية وفي الوتر والنفل الركعات كلها. ( ج ۱ ص ۶۹ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۵۰۸ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مطلب في صلاة الحاجة ، والهداية ج ۱ ص ۱۳۰ كتاب الصلاة باب النوافل فصل في القراءة )

[۲] في الهندية : يجب تعيين الأوليين من الثلاثية والرباعية المكتوبتين للقراءة المفروضة حتى لو قرأ في الأخريين من الرباعية دون الأوليين أو في إحدى الأوليين وإحدى الأخريين ساهيا وجب عليه سجودالسهو . ( ج ۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۵۰۹ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مطلب في صلاة الحاجة ، ومراقي الفلاح ص ۲۰۱ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

**۴۱۰- په لمانځه کي داسي کرار قرائت ويل چي خپله يې هم نه اوري**

**الإستفتاء:** ځيني خلګ په خفيه لمانځه داسي قرائت وايي چي پخپله يې هم نه اوري او ځيني خلګ خوخوله لا هم نه ښوروي، ددې څه حکم دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ددغه خلګو لمونځ پر راجح قول صحيح نه دی، ځکه دقرائت دپاره دالازمه ده چي په دومره اندازه سره به يې وايي چي که يو عارض نه وي نو خپله يې اوري[1]

**۴۱۱- درکوع دپاره دفرض کښته والي اندازه**

**الإستفتاء:** درکوع دپاره څومره کښته والی فرض دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

درکوع دپاره دومره کښته والی لازم دی چي که لاسونه کش کړي نو ځنګنو ته به رسيږي[2].

---

[1] في الهندية : اختلفوا في حد الجهر والمخافتة قال الفقيه أبو جعفر والشيخ الإمام أبو بكر محمد بن الفضل أدنى الجهر أن يسمع غيره وأدنى المخافتة أن يسمع نفسه وعلى هذا يعتمد. كذا في المحيط وهو الصحيح كذا في الوقاية والنقاية وبه أخذ عامة المشايخ . ( ج ۱ ص ۷۲ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۸۷ الى ۵۸۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۳۹۵ كتاب الصلاة باب باب صفة الصلاة فصل في القراءة مطلب في الكلام على الجهر والمخافتة )

[2] في الهندية : (ومنهاالركوع) وقدر الواجب من الركوع مايتناوله الاسم بعد أن يبلغ حده وهو أن يكون بحيث إذا مد يديه نال ركبتيه . ( ج ۱ ص ۷۰ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۲۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة بحث الركوع والسجود ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۱۸۵ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها )

## ۴۱۲ - ډېر ضعيف ، ملا راختلی به رکوع څرنګه کوي

**الإستفتاء:** که ديوچا ملا راختلې وي اوسم نه سي درېدلای، اويا يو څوک دضعف په وجه سم نه سي درېدلای، بلکه ولاړه يې په داسي طريقه سره وي چي که لاسونه کش کړي نو ځنګنوته رسيږي، نو دغه شخص به رکوع څرنګه کوي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه شخص به درکوع پروخت سر يوڅه نورکښته کوي، که نور سر کښته نه کړي نو دغه حالت دده دپاره رکوع نه بلل کيږي چي لاسونه يې ځنګنوته رسيږي[1]
.

## ۴۱۳ - پرغالۍ ، وښو،اسفنج باندي دسجدې کولو حکم

**الإستفتاء:** پر مرغه (چمني )يانورو وښو ياپرغالۍ يااسفنج باندي سجده کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که پردغه شيانوباندي تندی قرار ونيسي نوپردغه باندي سجده کول روا دي اوکه تندی قرارنه پرنيسي نوبياپردغه شيانو سجده نه صحيح کيږي[2].

---

[1] في البحر : الأحدب إذا بلغت حدوبته إلى الركوع يخفض رأسه في الركوع فإنه القدر الممكن في حقه . ( ج ١ ص ٥١١ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في الهندية ج ١ ص ٧٠ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ١٨٥ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها )

[2] في التاتارخانية : اذا القى في المسجد حشيش كثير فسجد عليه ان وجد حجمه يجوز والا فلا ... وفي الحاوي سئل عمن صلى فوق ثياب كثيرة ان كان موضع سجوده مستقرا له جاز وان نهض مرة ويرفع اخرى لم يجز . ( ج ٢ ص ١٧٨ كتاب الصلاة الفصل الثالث في بيان مايفعله المصلي في

## ۴۱۴- داولي سجدې سم راپورته نه سي دوهمي سجدې ته ولاړسي

**الإستفتاء:** ځيني خلګ په لمانځه کي داولي سجدې څخه سم نه راپورته کيږي لږ سر راپورته کړي بيرته دوهمي سجدې ته ولاړسي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه عمل شرعا روا نه دی اوکه يوڅوک دغه شان لمونځ وکړي نودغه لمونځ به بيرته راګرځوي؛ ځکه دغه لمونځ پرهغه قول باندي بالکل فاسد دی چي دهدايې مصنف اوڅه نوروفقهاء کراموراجح بللی دی.

اودځينو نوروفقهاؤپه نزد که څه هم دغه لمونځ فاسدنه دی خوپه سخت کراهت سره مکروه دی اوددغه شان لمانځه راګرځول واجب دي[1].

---

صلاته بعد الافتتاح المسئلة ( ۲۰۷۲/۲۰۷۱ ) ، کذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۷۰ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الرکوع للجائي ، والهندية ج ۱ ص ۷۰ کتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ثم يرفع رأسه مكبرا ويكفي فيه) مع الكراهة (أدنى ما يطلق عليه اسم الرفع) كما صححه في المحيط لتعلق الركنية بالأدنى كسائر الأركان، بل لو سجد على لوح فنزع فسجد بلا رفع أصلا صح وصحح في الهداية أنه إن كان إلى القعود أقرب صح وإلا لا ورجحه في النهر والشرنبلالية .

وفي ردالمحتار : (قوله مع الكراهة) أي أشد الكراهة كما في شرح المنية ... (قوله ورجحه في النهر إلخ) قال في الخزائن: وفي الشرنبلالية عن البرهان أنه الأصح عن الإمام. وفي النهر أنه الذي ينبغي التعويل عليه، وعليه اقتصر الباقاني . ( ج ۱ ص ۳۷۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة إلى انتهائها مطلب في اطالة الرکوع للجائي ، کذا في شرح المنية ص ۳۲۲ / ۳۲۳ )

=راتلونکی مخ

## ۴۱۵ -دلمانځه داخيري ناستي فرض اندازه

**الإستفتاء:** دلمانځه په اخيره ناسته کي څومره اندازه کښېنستل فرض دي؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دلمانځه په اخيره ناسته کي دالتحيات دويلو په اندازه ناسته فرض ده[1].

## ۴۱۶ - دلمانځه دکولو شرعي طريقه

**الإستفتاء:** دلمانځه دکولو شرعي طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دلمانځه دکولو شرعي طريقه داده چي هرکله يوانسان دلمانځه دکولو اراده وکړي نواول به لاسونه غوږوته پورته کړي، که نارينه وي اويابه لاسونه تر اوږو پوري پورته کړي که ښځه وي. بيابه تکبير تحريمه په داسي طريقه سره ووايي چي که يوعذر نه وي نوخپله يې اوربدلای سي، وروسته به نارينه لاسونه ترنامه لاندي ونيسي، اوښځه به لاسونه پرځيګر باندي ونيسي، بيابه سبحانک

---

وفي الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : وكذا كل صلاة اديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها . ( ج ١ ص ٣٣٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب كل صلاة اديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها ، كذا في البحر ج ١ ص ٥۴٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وحاشية الشلبي على هامش الزيلعي ج ١ ص ٢٧٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

[1] في الهندية : (ومنها القعود الأخير) مقدار التشهد . ( ج ١ ص ٧٠ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في البحر ج ١ ص ٥١٢ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٣١ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة بحث القعود الاخير )

اللهم ووايي، بيابه اعوذ بالله او بسم الله ووايي.

بيابه الحمد لله يعني سورة الفاتحة ووايي، بيابه يوپوره سورت يا ديو سورت څخه يوغټ آيت يا درې کوچني آيتونه ياتردغه ډېر ووايي.

بيابه الله اکبر ووايي او دغه الله اکبر به درکوع دتګ په حالت کي ووايي او ترتګ وروسته په رکوع کي به يې نه وايي نوپه دغه طريقه سره به رکوع ته ولاړسي اونارينه به په داسي طريقه سره رکوع وکړي چي ملا به سمه هواره کړي اوسر به دملا سره برابر کړي، نه به يې پورته کوي اونه به يې کښته کوي اونه به ځنګنونه کږه وي بلکه پښې به سيده ودروي.

اودښځي دپاره ښه طريقه داده چي دومره اندازه به کښته سي چي لاسونه يې ځنګنوته ورسيږي. وروسته به نارينه اوښځه دواړه په ښه ارامه سره رکوع وکړي اودرکوع تسبيح يعني سبحان ربي العظيم به درې واره ياپنځه واره يا اوه واره ووايي اوکه يوځوک سبحان ربي العظيم سم نه سي ويلای نوبيابه ددغه پرځای سبحان ربي الکريم ووايي اوسبحان ربي العزيم په ډکه زاء باندي به يې نه وايي ځکه په دغه سره لمونځ فاسديږي . وروسته به درکوع څخه دراپورته کېدلو په حالت کي «سمع الله لمن حمده» ووايي اودرکوع څخه به راپورته سي اوسم په ارامه به ديوه تسبيح په اندازه وخت ودريږي. وروسته که لمونځ کونکی امام نه وي نو «ربنالک ولک الحمد» به ووايي اوکه امام وي نو«ربنا ولک الحمد» به نه وايي. وروسته به سجدې ته دتګ په حالت کي الله اکبر ووايي اوپه داسي طريقه سره به سجدې ته ولاړسي چي اول وار به ځنګنونه کت کړي، وروسته به ملا کږه کړي اواول واربه ځنګنونه پرمځکه ولګوي بيابه لاسونه ولګوي بيابه پزه لګوي، بيابه تندی ولګوي اوسجده به وکړي. نوکه نارينه وي

په داسي طريقه سره به سجده وکړي چي پښې به په داسي طريقه سره ودروي چي دپښو دګوتو سرونه به دقبلې طرف ته مخامخ کړي اوپښې به پرمځکه ولګوي، دمځکي څخه به پښې نه پورته کوي او نس به دورنو څخه پورته کړي اوکه خلګوته ضررنه رسېدی نولاسونه به دبغلو څخه ليري کړي او په ارامه سره به درې واره ياپنځه واره يا اوه واره دسجدې تسبيح يعني سبحان ربي الاعلى ووايي.

اوکه ښځه وي نوپه داسي طريقه سره به سجده وکړي چي دواړي پښې به پرې باسي اونس به دورنوسره ومښلوي اولاسونه به دبغلو څخه نه ليري کوي .وروسته به دسجدې څخه دراپورته کېدلو په حالت کي الله اکبر ووايي اوسم په ارامه به کښيني. وروسته به دوهمي سجدې ته دتللو په حالت کي الله اکبر ووايي اوداولي سجدې په شان به دوهمه سجده وکړي. وروسته به بيا ددوهمي سجدې څخه دراپورته کېدلو په حالت کي الله اکبر ووايي او دوهم رکعت ته به ولاړ سي او داول رکعت په شان به دوهم رکعت پوره کړي، خو ددوهم رکعت په اول کي به سبحانک اللهم او اعوذبالله نه وايي. هرکله چي ددوهم رکعت ددوهمي سجدې څخه راپورته سي نو نارينه به په داسي طريقه باندي کښيني چي راسته پښه به ودروي او چپه پښه به هواره کړي اوپردغه چپه پښه به کښيني.

اوښځه به په داسي طريقه سره کښيني چي دواړي پښې به راسته طرف ته وباسي .وروسته به التحيات ووايي تردغه وروسته که دغه لمونځ دوه رکعتيز لمونځ وي نودرود به ووايي، وروسته به «اللهم ربنا» ووايي، يابه دغه دعاووايي ( رَبَّنَا اغْفِرْلِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِينَ يَوْمَ يَقُومُ الْحِسَابُ ) يابه ددغه په شان بله قرآني دعاووايي، تردغه وروسته به اول وار راسته طرف ته سلام وګرځوي، بيابه

چپه طرف ته سلام وګرځوي.

اوکه دغه لمونځ درې رکعتيز ياڅلور رکعتيز فرض لمونځ وي ياوتر، يادماپښين، ياجمعې څلور رکعاته سنت لمونځ وي، نوترالتحيات وروسته به درودشريف نه وايي، دستي به دريم رکعت ته ولاړسي اوپه وتر اوسنت لمانځه کي به ددوهم رکعت په شان دريم اوڅلورم رکعت اداکړي، اوپه فرض لمانځه کي به په دريم رکعت کي يوازي بسم الله اوالحمد لله ووايي بيابه رکوع وکړي اوپه اخيرکي به داولي ناستي په شان دوهمه ناسته وکړي اوترالتحيات وروسته به درود اودعاووايي اوسلام به وګرځوي.

اوکه دغه لمونځ څلوررکعاته نفلي لمونځ وي نوداولي ناستي ترالتحيات وروسته به درود اودعاء ووايي بيابه دريم رکعت ته ولاړسي اوداول رکعت په شان به سبحانک اللهم او اعوذبالله اوبسم الله ووايي بياداول او دوهم رکعت په شان دريم اوڅلورم رکعت وکړي . دغه دلمانځه هغه لنډه شرعي طريقه ده چي فقهاء کراموپه خپل کتابونوکي ليکلې ده لکه دردالمحتار په باب صفة الصلاة کي ، اونور داتفصيل چي په دغه شيانوکي کوم فرض دي کوم واجب دي کوم سنت يامستحب دي ياددغه مثل داهره خبره دي په خپل خپل ځای کي وکتل سي.

# باب صفة الصلاة

## الفصل الاول في واجبات الصلاة

## اول فصل دلمانځه دواجباتو په بيان کي دی

### ۴۱۷-په لمانځه کي دسورة الفاتحة ويل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي دسورة الفاتحه ويل واجب دي اوکه فرض دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په لمانځه کی دسورة الفاتحة ويل واجب دي[۱].

### ۴۱۸ - دلمانځه هغه رکعاتونه چي دالحمدلله ويل پکښي واجب وي

**الاستفتاء** : دلمانځه په څورکعاته کي دالحمد لله ويل واجب دي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دفرض لمانځه په اول دوه رکعاته کي اودنفل اوسنت اووتر لمانځه په ټولو رکعتونو کي الحمد لله ويل واجب دي اودفرض لمانځه په دريم اوڅلورم رکعت کي الحمد لله ويل سنت دي[۲].

---

[۱] في الهندية : ثم واجبات الصلاة أنواع منها قراءة الفاتحة . ( ج ١ ص ١٢٦ الباب الثاني عشر في سجود السهو ، كذا في البحر ج ١ ص ٥١٥ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وخلاصة الفتاوى ج ١ ص ٥١ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها )

[۲] في البحر : الفاتحة واجبة في الأوليين من الفرض وفي جميع ركعات النفل، وفي الوتر والعيدين، وأما في الأخريين من الفرض فسنة ( ج ١ ص ٥١٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في

## ۴۱۹ - ترسورة الفاتحة وروسته نور قرائت ویل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي ترسورة الفاتحة وروسته نور قرائت ويل واجب دي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دفرض لمانځه په اولو دوو رکعتونوکي اودنفل اوسنت او وتر لمانځه په ټولو رکعتونوکي ترالحمدلله وروسته يوپوره سورت ويل يادیوسورت څخه یوغټ آیت يادرې کوچني آيتونه ويل واجب دي[1].

## ۴۲۰ - سورة الفاتحة ترنور قرائت مخکي ويل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي چي الحمد لله واجب ده ايا په دغه ځای کي داهم واجب ده چي الحمد لله به ترنو قرائت دمخه وايي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

لکه دالحمد لله ويل چي واجب دي همدغه شان دالحمد لله مخکي کول تر نور قرائت هم واجب دي.

---

الدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۳۸ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب كل صلاة اديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها ، والهندية ج۱ص۱۲۶ كتاب الصلاة الباب الثاني عشرفي سجودالسهو)

[1] في الهندية : وتجب قراءة الفاتحة وضم السورة أو ما يقوم مقامها من ثلاث آيات قصار أو آية طويلة في الأوليين بعد الفاتحة كذا في النهر الفائق وفي جميع ركعات النفل والوتر.. ( ج۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۳۸ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب كل صلاة أديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها ، والبحر ج ۱ ص ۵۱۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

او داخبره چي که تول سورت يادسورت يوڅه حصه ترالحمد لله دمخه سي نودغه څه حکم لري ددغه مسئلې تفصيل دسجدة السهو په باب کي ذکردی[1] .

## ۴۲۱-دفرض لمانځه په اول،دوهم رکعت کي چي سورة الفاتحة پاته سي

**الاستفتاء** : که ديوچاڅخه دڅلور رکعاتي يادرې رکعاتي فرض لمانځه په اول يادوهم رکعت کي سورة الفاتحة پاته سي يوازي سورت يادسورت يوڅه حصه ووايي نودغه سورة الفاتحة به په دريم اوڅلورم رکعت کي راګرځوي که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغه پاته سوې سورة الفاتحة به په دريم اوڅلورم رکعت کي نه راګرځوي اودلمانځه په اخيرکي به سجدة السهو وکړي ځکه دواجب په پاته کېدلوسره سجدة السهو لازميږي[2].

---

[1] في الهندية : ويجب تقديم الفاتحة على السورة .( ج۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۳۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب كل شفع من النفل صلاة ، و مراقي الفلاح ص ۲۰۱ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

[2] في الهندية : ومن قرأ في العشاء في الأوليين ا لسورة ولم يقرأ بفاتحة الكتاب لم يعد الفاتحة في الأخريين . ( ج ۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في المبسوط للسرخسي ج ۱ ص ۳۸۶ ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة قبيل مطلب تحقيق مهم فيما لو تذكر في ركوعه أنه لم يقرأ فعاد تقع القراءة فرضا وفي معنى كون القراءة فرضا وواجبا وسنة )

### ۴۲۲ - د فرض لمانځه په اول ،دوهم رکعت کي چي سورت پاته سي

**الاستفتاء** : که يوڅوک دفرض لمانځه په اول يادوهم رکعت کي يوازي سورة الفاتحة ووايي اوسورت ورڅخه پاته سي دغه پاته سوی سورت به په دريم اوڅلورم رکعت کي راګرځوي اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

مستحب داده چي دغه سورت په دريم اوڅلورم رکعت کي راوګرځوي خو واجب نه ده چي راګرځوي به يې. خوپه دغه دواړه حالته کي به په اخير کي سجدة السهو وکړي ځکه په اول صورت کي يې سورت ترخپل اصلي ځای وځنډوی اوپه دوهم صورت کي سورت پاته سو اودواجب په پاته کېدلو اوځنډېدلو دواړو باندي سجدة السهو لازميږي لکه چي د سجدة السهو په باب کي ذکر کيږي[1].

### ۴۲۳ - دامام دپاره په جهري لمانځه کي په زوره قرائت ويل

**الاستفتاء** : دامام دپاره په جهري لمانځه کي په زوره قرائت ويل څه حکم لري ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ولوترك سورة أوليي العشاء) مثلا ولو عمدا (قرأها وجوبا) وقيل ندبا .

وفي ردالمحتار : (قوله ولو عمدا) هذا ظاهر إطلاق المتون، وبه صرح في النهر، ولم يعزه إلى أحد، كأنه أخذه من الإطلاق، وإلاقصنيع الفتاوى والشروح يقتضي أن وضع المسألة في النسيان تأمل، أفاده الخير الرملي (قوله وجوبا وقيل ندبا) ... والحاصل أن اختيار صاحب الفتح والبحر والنهر الندب لأنه صريح كلام محمد . ( ج ۱ ص ۳۹۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة مطلب )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

امام که جهري لمونځ په خپل وخت کي په جماعت سره کوي او که د جهري لمانځه قضاء په جماعت سره کوي په دواړه حالته کي په زوره قرائت ويل پر واجب دي[1].

## ۴۲۴- دامام دپاره په خفيه لمانځه کي کرار قرائت ويل

**الاستفتاء**: دامام دپاره په خفيه لمانځه کي قرائت کرار ويل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په خفيه لمانځه کي پر امام باندي قرائت کرار ويل واجب دي[2].

## ۴۲۵- په لمانځه کي به کرار قرائت په څومره اندازه کرار وايي

**الاستفتاء**: په هغه لمونځونو کي چي کرار قرائت ويل کيږي لکه د ماپښين اوماځيګر ، لمونځ کونکی به په دغه لمونځونو کي په څومره اندازه سره کرار قرائت وايي ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ويجهر الإمام وجوبا ... في الفجر وأولى العشاءين أداء وقضاء وجمعة وعيدين وتراويح ووتر بعدها . (ج ۱ ص ۳۹۳ / ۳۹۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷۲ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، والبحر ج ۱ ص ۵۸۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (والجهر) للإمام (والإسرار) للكل (فيمايجهر) فيه (ويسر) . ( ج ۱ ص ۳۴۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب لاينبغي ان يعدل عن الدراية اذا وافقتها رواية ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷۲ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، والبحر ج ۱ ص ۵۸۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دومره اندازه سره به يې كرار وايي چي كه يوعارض نه وي لكه كوڼ و الی يانور اوازونه نو خپله يې اوري[1].

## ۴۲۶- دمنفر دسهار، ماښام، ماخستن په لمانځه كي په زوره قرائت

**الاستفتاء:** دمنفرد ( يوازي لمونځ كونكي ) دپاره دسهار ماښام اوماخستن په لمانځه كي په زوره قرائت ويل څه حكم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په دغه لمونځوكي منفرد اختيارلري كه په زوره قرائت وايي كه كرار خو ښه خبره داده چي لږ په زوره قرائت ووايي دامام تر قرائت يوڅه په كښته اوازسره[2].

---

[1] في الهندية : اختلفوا في حد الجهر والمخافتة قال الفقيه أبو جعفر والشيخ الإمام أبو بكر محمد بن الفضل أدنى الجهر أن يسمع غيره وأدنى المخافتة أن يسمع نفسه وعلى هذا يعتمد. كذا في المحيط وهو الصحيح كذا في الوقاية والنقاية وبه أخذ عامة المشايخ . ( ج ١ ص ٧٢ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٨٧ الى ٥٨٩ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وردالمحتار ج ١ ص ٣٩٥ كتاب الصلاة باب باب صفة الصلاة فصل في القراءة مطلب في الكلام على الجهر والمخافتة )

[2] في الهندية : وإن كانت صلاة يجهر فيها فهو بالخيار والجهر أفضل ولكن لا يبالغ مثل الإمام . ( ج ١ ص ٧٢ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٣٩٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة ، ودررالحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٨٠ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في الامامة )

## ۴۲۷-دمنفرد دپاره دماپښين ،ماځيګر په لمانځه کي کرار قرائت

**الاستفتاء** : دمنفرد ( يوازي لمونځ کونکي ) دپاره دماپښين اودماځيګر په لمانځه کي کرار قرائت ويل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه مسئله کي اختلاف دی بعض فقهاء کرام دغه شخص ته اختيار وايي که په زوره قرائت وايي که کرار ، اوبعض نورفقهاء کرام بياپردغه شخص کرار قرائت ويل واجب بولي نواحتياط دادی چي منفرد په دغه لمونځونو کي کرار قرائت ووايي ځکه په کرار قرائت ويلو کي دهيچا په نزد باندي نقصان نسته[1] .

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وفي السرية يخافت حتما على المذهب .

وفي ردالمحتار : (قوله على المذهب) كذا في البحر رادا على ما في العناية من أن ظاهر الرواية أنه مخير. أقول: ما في العناية صرح به أيضا في النهاية والكفاية والمعراج ونقل في التتارخانية عن المحيط أنه لاسهو عليه إذا جهر فيما يخافت لأنه لم يترك واجبا، وعلله في الهداية في باب سجود السهو بأن الجهر والمخافتة من خصائص الجماعة. وقال الشراح: إنه جواب ظاهر الرواية. وأما جواب رواية النوادر فإنه يلزمه السهو. وفي الذخيرة: إذا جهر فيما يخافت عليه السهو. وفي ظاهر الرواية لا سهو عليه، نعم صحح في الدرر تبعا للفتح والتبيين وجوب المخافتة، ومشى عليه في شرح المنية والبحر والنهر والمنح . ( ج ۱ ص ۳۹۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة )

وفي الهندية : وإن كان منفردا إن كانت صلاة يخافت فيها يخافت حتما هو الصحيح . ( ج ۱ ص ۷۲ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في البدائع ج ۱ ص ۳۹۶ كتاب الصلاة فصل في الواجبات الاصلية في الصلاة )

## ۴۲۸-دجهري لمانځه په قضاء کي قرائت په زوره که کرار ويل کيږي

**الاستفتاء** : که ديوچا ځخه دسهار يامابنام يا ماخستن لمونځ قضاء سوى وي اوبيايې يوازي قضاء راوړي په دغه قضائي لمانځه کي به په زوره قرائت وايي اوکه کرار ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

په دغه لمونځوکي منفرد اختيارلري که په زوره قرائت وايي که کرار خوافضل دادى چي په زوره قرائت ووايي[۱].

## ۴۲۹ - په لمانځه کي دارکانوتعديل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي دارکانوتعديل ( ديوه تسبيح په اندازه اطمينان يعني داندامونو ارام والى ) څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

په لمانځه کي دارکانو تعديل واجب دى[۲].

---

[۱] في الهندية : والمنفرد إذا قضى هذه الصلوات ففي الجهر فيما يجهر اختلاف المشايخ والأصح أن الجهر أفضل . (ج ۱ ص ۷۲ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في تبيين الحقائق ج ۱ ص ۳۲۸ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۳۹۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في القراءة )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (وتعديل الأركان) أي تسكين الجوارح قدر تسبيحة . ( ج ۱ ص ۳۴۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب قد يشار إلى المثنى باسم الإشارة الموضوع للمفرد ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۳۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل (۱) )

## ۴۳۰ - په لمانځه کي دارکانو دتعديل پرېښوول

**الاستفتاء**: که په لمانځه کي دارکانو تعديل پاته سي څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

لمونځ فاسدنه دی خو که دغه په سهو سره ورڅخه پاته سي نو سجدة السهو په لازميږي.

اوکه په قصد سره پاته سي اويا په سهو خو پاته سي مګر په اخيرکي سجدة السهو ونه کړي نودغه لمونځ مکروه تحريمي دی راګرځول يې واجب دی(۱).

## ۴۳۱ - قومه ، جلسه او په قومه ، جلسه کي اطمينان (ارام والی)

**الاستفتاء** : قومه ( تررکوع وروسته ولاړه ) اوجلسه ( تراولي سجدې وروسته ناسته ) او په دغه قومه اوجلسه کي اطمينان ( ارام ) څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

په دغه کي اختلاف دی خوفقهاء کرام فرمايي چي راجح قول دادی چي دغه

---

(۱) في ردالمحتار : هذا هو الواجب عند أبي حنيفة ومحمد، حتى لو تركها أو شيئا منها ساهيا يلزمه السهو ولو عمدا يكره أشد الكراهة، ويلزمه أن يعيد الصلاة وتكون معتبرة في حق سقوط الترتيب ونحوه . ( ج ۱ ص ۳۴۲ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب قد يشار الى المثنى باسم الاشارة الموضوع للمفرد ، کذا في البحر ج ۱ ص ۵۲۳ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۳۲ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ولها واجبات) لا تفسد بتركها وتعاد وجوبا في العمد والسهو إن لم يسجد له . ( ج ۱ ص ۳۳۶ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب واجبات الصلاة ، کذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۲۰۰ کتاب الصلاة باب شروط الصلاة وارکانها فصل في بيان واجب الصلاة ، والبحر ج ۱ ص ۵۱۵ کتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

ټول ( قومه ، جلسه ، په دواړوکي اطمينان ) واجب دي[1].

## ۴۳۲ - په رکوع ، سجده ، قومه ، اوجلسه کي دتعديل کمه اندازه

**الاستفتاء** : په رکوع ، سجده ، قومه ، اوجلسه کي چي تعديل ( اطمينان ) واجب دی ددغه کمه اندازه څومره ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

ددغه تعديل کمه اندازه ديوه تسبيح قدر ده[2].

---

[1] في البحر : ومقتضى الدليل وجوب الطمأنينة في الأربعة ووجوب نفس الرفع من الركوع والجلوس بين السجدتين للمواظبة على ذلك كله وللأمر في حديث المسيء صلاته، وفي فتاوى قاضي خان في فصل ما يوجب السهو قال: المصلي إذا ركع ولم يرفع رأسه من الركوع حتى خر ساجدا ساهيا تجوز صلاته في قول أبي حنيفة ومحمد وعليه السهو اه وفي المحيط لو ترك تعديل الأركان أو القومة التي بين الركوع والسجود ساهيا لزمه سجود السهو اه فيكون حكم الجلسة بين السجدتين كذلك؛ لأن الكلام فيهما واحد والقول بوجوب الكل هو مختار المحقق ابن الهمام وتلميذه ابن أمير حاج حتى قال إنه الصواب والله الموفق للصواب . ( ج ۱ ص ۵۲۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۳۴۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب لاينبغي ان يعدل عن الدراية اذا وافقتها الرواية ، ومراقي الفلاح ص ۲۰۲ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

[2] في الهندية : وتعديل الأركان هو تسكين الجوارح حتى تطمئن مفاصله وأدناه قدر تسبيحة . ( ج ۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۲۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۴۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب قد يشار الى المثنى باسم الاشارة الموضوع للمفرد )

## ۴۳۳ - په لمانځه کي داولي ناستي حکم او اندازه

**الاستفتاء** : په لمانځه کي اوله ناسته څه حکم لري او اندازه يې څومره ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

په درې رکعاتي اوڅلور رکعاتي لمانځه کي پردوهم رکعت دالتحيات دويلو په اندازه ناسته واجب ده[۱].

## ۴۳۴ - په اوله ،دوهمه ناسته کي التحيات ويل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي په اوله اودوهمه ناسته کي التحيات ويل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

دالتحيات ويل په دواړو ناستو کي واجب دي[۲].

---

[۱] في الهندية : وتجب القعدة الأولى قدر التشهد إذا رفع رأسه من السجدة الثانية في الركعة الثانية في ذوات الأربع والثلاث . ( ج ۱ ص ۷۱ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثاني في واجبات الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۲۰۲ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : والتشهدان ويسجد للسهو بترك بعضه ككله وكذا في كل قعدة في الاصح . ( ج ۱ ص ۳۴۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب لاينبغي ان يعدل عن الدراية اذا وافقتها رواية ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۱۲۷ كتاب الصلاة الباب الثاني عشر في سجود السهو ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۳۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

## ۴۳۵ - په سجده کي دواړي پښې پورته کول

**الاستفتاء** : که یو څوک په سجده کي دواړي پښې پورته کړي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

په دغه مسئله کي اختلاف دی خوپه ردالمحتارکي یې ددغه مختلفو قولونو ترنقل کولو وروسته داخبره راجح بللې ده چي دپښو ایښوول فرض نه دي واجب دي نوهرکله چي دپښو ایښوول واجب سول نودواجباتودعام قانون تقاضاداده چي په سهواپورته کولوسره یې سجدة السهولازمیږي اوکه سجدة السهوپاته سي اویاداول څخه دغه عمل په قصدسره وکړي نوددغه لمانځه راګرځول پرواجب دي[1].

## ۴۳۶ - په لمانځه کي دسلام لفظ ویل

**الاستفتاء** : په لمانځه کي د سلام لفظ ویل څه حکم لري ؟

---

[1] في ردالمحتار : والحاصل أن المشهور في كتب المذهب اعتماد الفرضية والأرجح من حيث الدليل والقواعد عدم الفرضية، ولذا قال في العناية والدرر: إنه الحق. ثم الأوجه حمل عدم الفرضية على الوجوب . ( ج ۱ ص ۳۶۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ولها واجبات) لاتفسد بتركها وتعاد وجوبا في العمد والسهو إن لم يسجدله ... وكذا كل صلاة اديت مع كراهة التحريم تجب اعادتها . ( ج ۱ ص ۳۳۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب واجبات الصلاة ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۱۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۰۰ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

د سلام لفظ ویل واجب دی[1].

---

[1] في الهداية : ثم اصابة لفظة السلام واجبة . ( ج ١ ص ١٠٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في الكنز على هامش البحر ج ١ ص ٥١٢ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، ومراقي الفلاح ص ٢٠٣ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان واجب الصلاة )

## الفصل الثاني في سنن الصلاة ومستحباتها

## دوهم فصل دلمانځه دسنتو اومستحباتوپه بيان کي دی

### ۴۳۷ - دلمانځه دپاره لنگوټه تړل

**الاستفتاء**: دلمانځه دپاره لنگوټه تړل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دلمانځه دپاره لنگوټه تړل مستحب کار دی[۱].

### ۴۳۸ - دتکبير تحريمه په وخت کي لاسونه دلستوڼوڅخه راايستل

**الاستفتاء**: دتکبير تحريمه دويلوپه وخت کي لاسونه دلستوڼوڅخه را ايستل څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

چي عذرنه وي دنارينه دپاره دامستحب ده چي دتکبير تحريمه دويلوپه وخت کي لاسونه دلستوڼوڅخه راوباسي.

اوښځه به په دغه وخت کي لاسونه دلستوڼو څخه نه راباسي[۲].

---

[۱] في خلاصة الفتاوى : والمستحب ان يصلي الرجل في ثلاثة اثواب قميص ، وازار، وعمامة . ( ج ۱ ص ۷۳ كتاب الصلاة الفصل السادس في سترالعورة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۵۹ كتاب الصلاة الباب الثالث في شروط الصلاة الفصل الأول في الطهارة وستر العورة ، والبحر ج ۱ ص ۴۶۸ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة )

[۲] في مجمع الانهر : ( وإخراج كفيه من كميه عند التكبير ) ؛ لأنه أقرب إلى التواضع وأبعد من التشبه بالجبابرة وأمكن من نشر الأصابع إلا لضرورة البرد ونحوه . ( ج ۱ ص ۱۳۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في تبيين الحقائق مع الشلبي ج ۱ ص ۲۸۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة

## ۴۳۹- لاسونه دتکبیر تحریمه سره یوځای که تر تکبیر دمخه پورته کړي

**الاستفتاء** : دتکبیر تحریمه دپاره چي لاسونه پورته کوي دغه به تر تکبیر دمخه پورته کوي اوکه به دتکبیر دویلو سره یوځای ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په دغه مسئله کي دواړي طریقې صحیح دي خو په دې کي اختلاف دی چي کومه طریقه افضل ده ، بعض فقهاء کرامو یوه طریقه ښه بللې ده ، او بعض فقهاء کرامو بله طریقه ښه بللې ده،خو په ردالمحتار کي یې ددغه دواړو قولونو ترنقل کولو وروسته دغه طریقه ښه بللې ده چي تر تکبیر دمخه لاسونه پورته کړي اودتکبیر سره یې راکښته کړي[1].

---

، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ص ٣٥٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة آداب الصلاة ) وفي مجمع الانهر:واما النساء فتجعل يديها في كميها.( ج ١ ص ١٣٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٣٧٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٢٠٩ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار :ورفع يديه قبل التكبير وقيل معه وفي ردالمحتار :(قوله قبل التكبير وقيل معه)الأول نسبه في المجمع إلى أبي حنيفة ومحمد.وفي غاية البيان إلى عامة علمائنا. وفي المبسوط إلى أكثر مشايخنا وصححه في الهداية. والثاني اختاره في الخانية والخلاصة والتحفة والبدائع والمحيط، بأن يبدأ بالرفع عند بداءته التكبير ويختم به عند ختمه، وعزاه البقالي إلى أصحابنا جميعا ورجحه في الحلية. وثمة قول ثالث وهو أنه بعد التكبير، والكل مروي عنه عليه الصلاة والسلام ، وما في الهداية أولى كما في البحر والنهر، ولذا اعتمده الشارح فافهم . ( ج ١ ص ٣٥٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة الى انتهائها مطلب في حديث الاذان جزم )

**۴۴٠ - دتکبیر تحریمه په وخت کي دلاسونو دپورته کولو سنت طریقه**

**الاستفتاء :** دتکبیر تحریمه په وخت کي دلاسونو دپورته کولو سنت طریقه ځرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا :**

دنارینه دپاره سنت طریقه داده چي لاسونه په داسي طریقه سره پورته کړي چي دبتهوګوتو سرونه دغوږو سره برابر کړي او ورغوي وقبلې شریفي ته مخامخ کړي اوګوتي خپل پرعادي حالت باندي پریږدي یعني نه به یې سره منښلوي اونه به یې ډیري سره لیري کوي. اودښځي دپاره سنت طریقه داده چي لاسونه تراوږو پوري پورته کړي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ( ورفع يديه ) قبل التكبير، وقيل معه ( ماسا بإبهاميه شحمتي أذنيه ) هو المراد بالمحاذاة لأنها لا تتيقن إلا بذلك، ويستقبل بكفيه القبلة . ( ج ١ ص ٣٥٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في حديث الاذان جزم ، كذا في التاتارخانية ج ٢ ص ٤٩ الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ١٦٩٣ ) والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٢٠٧ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

وفي مراقي الفلاح : وكيفيته أن لا يضم كل الضم ولا يفرج كل التفريج بل يتركها على حالها منشورة . (ص ٢٠٧ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها ، كذا في التاتارخانية ج ٢ ص ٤٩ الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ١٦٩٣ ) وفتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ١ ص ٨٥ كتاب الصلاة باب افتتاح الصلاة )

وفي الهندية : والمرأة ترفع حذاء منكبيها هو الصحيح . ( ج ١ ص ٧٣ كتاب الصلاة الباب الرابع فى صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٣٧٣

## ۴۴۱ - دنارينه دپاره دبتهوگوتوسرونه دغوږودنرميوسره مښلول

**الاستفتاء** : دنارينه دپاره دتکبير تحريمه په وخت کي دبتهوگوتو سرونه دغوږو سره يوازي برابرول غواړي اوکه دغوږو دنرميوسره لگول غواړي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

دتکبير تحريمه په وخت کي به دبتهوگوتو سرونه دغوږو دنرميو سره ولگوي ددې دپاره چي دايقيني سي چي گوتي دغوږو سره برابري دي[1].

## ۴۴۲-امام به ترټول اقامت وروسته تکبير وايي که به دقدقامت الصلاة سره

**الاستفتاء** : امام به څه وخت تکبيرتحريمه وايي ترټول اقامت وروسته اوکه د ( قدقامت الصلاة ) سره ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

مستحب خبره داده چي ترټول اقامت وروسته تکبيرتحريمه ووايي[2].

---

كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۰۹ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (ورفع يديه) قبل التكبير، وقيل معه (ماسا بإبهاميه شحمتي أذنيه) هو المراد بالمحاذاة لأنها لا تتيقن إلا بذلك، ويستقبل بكفيه القبلة . ( ج ۱ ص ۳۵۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في حديث الاذان جزم ، كذا في التاتارخانية ج ۲ ص ۴۹ الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ۱۶۹۳ ) وفتاوى قاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۸۵ كتاب الصلاة باب افتتاح الصلاة )

[2] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وشروع الإمام في الصلاة مذ قيل قد قامت الصلاة ولو أخر حتى أتمها لا بأس به إجماعا، وهو قول الثاني والثلاثة؛ وهو أعدل المذاهب كما في شرح

## ۴۴۳ - دامام تکبیر تحریمه پټ ویل

**الاستفتاء** : كه يو امام په لمانځه كي تكبير تحريمه په زوره نه وو ايي پټ يې وو ايي دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

دغه عمل د سنت خلاف دى سنت دادى چي په زوره يې وو ايي[1].

## ۴۴۴ - په ولاړه کي دپښوترمابين دليري والى اندازه

**الاستفتاء** : په لمانځه كي دولاړي په وخت كي د پښو ترمابين څومره ليري والي په كاردى ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

په ولاړه كي د پښو ترمابين د څلورو ګوتو په اندازه ليري والي په كاردى[2].

---

المجمع لمصنفه وفي القهستاني معزيا للخلاصة أنه الأصح . ( ج ١ ص ٣٥٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة آداب الصلاة ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٢٢٥ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل من آدابها .

وفي ردالمحتار : (قوله وهو) أي التأخير المفهوم من قوله أخر (قوله إنه الأصح) لأن فيه محافظة على فضيلة متابعة المؤذن وإعانة له على الشروع مع الإمام .

[1] في الهندية : (سننها) رفع اليدين للتحريمة، ونشر أصابعه، وجهر الإمام بالتكبير .( ج ١ ص ٧٢ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ،كذا في مراقي الفلاح ص ٢١٢ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج١ ص ٣٥١ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في التبليغ خلف الامام)

[2] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله ويسن تفريج القدمين في القيام قدر أربع أصابع" نص عليه في كتاب الأثر عن الإمام ولم يحك فيه خلافا . ( ص ٢١٢ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة

**۴۴۵ -په ولاړه کي راسته لاس پرچپه ايښوول دولاړي که دقرائت سنت دی**

**الاستفتاء** : په لمانځه کي په ولاړه کي راسته لاس پرچپه لاس ايښوول دولاړي سنت دي او که دقرائت سنت دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

په لمانځه کي راسته لاس پرچپه لاس باندي ايښوول دولاړي سنت دي[1].

**۴۴۶- په ولاړه کي دراسته لاس پرچپه لاس دايښودلو طريقه**

**الاستفتاء** : په ولاړه کي به راسته لاس پرچپه لاس باندي په څه طريقه ايږدي؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دنارينه دپاره سنت طريقه داده چي ترنامه لاندي به دراسته لاس ورغوی دچپه لاس پر ورغوي باندي کښيږدي اودمابين درې ګوتي به دچپه لاس پرليندۍ باندي هواري کښيږدي اوبټه ګوته اوخچۍ ګوته به دچپه لاس پر مړوند

---

وارکانها فصل في بيان سننها ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ١ ص ٥٥ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها (الركوع والسجود) ، وردالمحتار ج ١ ص ٣٢٨ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مبحث القيام )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ووضع الرجل يمينه على يساره تحت سرته آخذا رسغها بخنصره وإبهامه هو المختار، وتضع المرأة والخنثى الكف على الكف تحت ثديها كما فرغ من التكبير بلا إرسال في الأصح وهو سنة قيام . ( ج ١ ص ٣٥٩ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في بيان تأليف الصلاة إلى انتهائها مطلب في حكم القراءة بالفارسية او التوراة والانجيل ، كذا في الهندية ج ١ ص ٧٣ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ، والهداية ج ١ ص ٩٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

باندي راوګرځوي.

او دښځي دپاره سنت طريقه داده چي پرځيګرباندي به دراسته لاس ورغوی دچپه لاس پرورغوي باندي کښيږدي اوګوتي به تړولي سره ومښلوي دناريته په شان به بټه اوخچی ګوته پرمړوند باندي نه راګرځوي[1].

## ۴۴۷ - تراقتداء وروسته دمقتدي سبحانک اللهم ويل

**الاستفتاء** : مقتدي چي په امام پسي اقتداء وکړي نوسبحانک اللّهم به وايي اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

که په اول رکعت کي په امام پسي اقتداء وکړي نوکه په خفيه لمانځه کي وي وايي به يې اوکه جهري لمونځ وي نوکه امام سبحانک اللهم ويلې وي اوقرائت يې شروع کړی وي نونه به يې وايي اوکه امام قرائت نه وي شروع کړی نو وايي به يې.

---

[1] في الهندية : ( ووضع يده اليمنى على اليسرى تحت السرة) كما فرغ من التكبير ... وذلك بأن يضع باطن كفه اليمنى على ظاهر كفه اليسرى ويأخذ الرسغ بالخنصر والإبهام ويرسل الباقي على الذراع . ( ج ١ ص ٧٣ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ، كذا في مراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ٢٠٨ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها، ودرر الحكام شرح غرر الاحكام ج ١ ص ٦٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي حاشية الشرنبلالي على درر الحكام شرح غرر الأحكام : والمرأة تضع يديها على صدرها ولا تقبض بل تضع كفها الأيمن على ظهر كفها الأيسر . ( ج ١ ص ٦٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة)

اوکه دلمانځه په مابين کي اقتداء پسي وکړي نوکه جهري لمونځ وي اوامام قرائت شروع وي نوترنيت وروسته متصل به يې نه وايي هرکله چي دامام ترسلام وروسته ولاړسي وبه يې وايي اوکه دامام قرائت نه وي شروع اويا خفيه لمونځ وي نوترنيت وروسته به يې هم ووايي اوهرکله چي دامام ترسلام وروسته ولاړسي دوهم واربه يې بياووايي.

اوکه امام پررکوع وي اومقتدي نيت وتړي نوکه درکوع پرتېرېدلونه ببرېدی وبه يې وايي اوکه درکوع پرتېرېدلوببرېدی نه به يې وايي.

اوکه امام پرسجده وي نوکه يوازي داولي سجدې پرتېرېدلوببرېدی وبه يې وايي اوکه ددوهمي سجدې پرتېرېدلوببرېدی نه به يې وايي.

اوکه امام پراوله يااخيره ناسته باندي ناست وي نوبيابه يې نه وايي[1].

---

[1] في ردالمحتار : ولو ادرک الامام بعد ما اشتغل بالقراءة قال ابن الفضل لايثني وقال غيره يثني وينبغي التفصيل ان كان الامام يجهر لايثني وان كان يسر يثني . ( ج ۱ ص ۳٦۱ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في بيان المتواتر والشاذ ، كذا في خلاصة الفتاوى ج ۱ ص ۱٦٥ والهندية ج ۱ ص ۹۱ كتاب الصلاة الباب الخامس في الامامة الفصل السابع في المسبوق واللاحق )

وفي شرح المنية : والمسبوق يأتي بالثناء اذا ادرک الامام حالة المخافتة ثم اذاقام الى قضاء ماسبق يأتي به ايضا . ( ص ۳۰۴ ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۴۳ كتاب الصلاة باب الاذان )

وفي الدر المختار على هامش ردالمحتار : (والمسبوق من سبقه الإمام بها أو ببعضها وهو منفرد) حتى يثني .

وفي ردالمحتار : (قوله حتى يثني إلخ) تفريع على قوله منفرد فيما يقضيه بعد فراغ إمامه فيأتي بالثناء . ( ج ۱ ص ۴۴۱ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب الاخذ بالصحيح اولى من الاصح )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولو أدركه راكعا أو ساجدا، إن أكبر رأيه أنه يدركه أتى به .

= راتلونکی مخ

## ۴۴۸ - ترالحمدلله دمخه بسم الله ويل سنت که واجب دي

**الاستفتاء :** په هر رکعت کي ترالحمد لله مخکي بسم الله ويل سنت دي او که واجب دي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا :**

اصلی راجح قول په مذهب کي دادی چي دبسم الله ويل سنت دي خويو بل قول داسي هم سته چي دفرض لمانځه په اول او دوهم رکعت کي او دنفل لمانځه په ټولورکعتونوکي دبسم الله ويل واجب دي نوپه دغه وجه سره العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالی فرمايي که ديوچاڅخه په دغه رکعتونوکي په سهو سره بسم الله پاته سي احتياط دادی چي سجدة السهووکړي[1].

---

وفي ردالمحتار (قوله أو ساجدا) أي السجدة الأولى كما في المنية وأشار بالتقييد براكعا أو ساجدا إلى أنه لو أدركه في إحدى القعدتين فالأولى أن لا يثني لتحصيل فضيلة زيادة المشاركة في القعود وكذا لو أدركه في السجدة الثانية . ( ج ۱ ص ۳۶۱ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في بيان المتواتر والشاذ ، كذا في شرح المنية ص ۳۰۵ كتاب الصلاة صفة الصلاة ، والبحر ج ۱ ص ۵۴۳ كتاب الصلاة باب الاذان )

[1] في البحر : وكله مخالف لظاهر المذهب المذكور في المتون والشروح والفتاوى من أنها سنة لا واجب فلا يجب بتركها شيء . ( ج ۲ ص ۱۷۴ كتاب الصلاة باب سجود السهو ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب لفظة الفتوى آكد وابلغ من لفظة المختار )

وفي مراقي الفلاح : و تسن التسمية أول كل ركعة قبل الفاتحة لأنه صلى الله عليه وسلم كان يفتتح صلاته ببسم الله الرحمن الرحيم والقول بوجوبها ضعيف . = راتلونکی مخ

## ۴۴۹ - په اول رکعت کي بسم الله ويل کيږي که په هر رکعت کي

**الاستفتاء** : په لمانځه کي يو ازي په اول رکعت کي تر الحمد لله مخکي بسم الله ويل کيږي او که په هر رکعت کي ويل کيږي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

بسم الله په هر رکعت کي ويل کيږي[1].

## ۴۵۰ - در کوع سنت طريقه

**الاستفتاء** : د رکوع سنت طريقه څرنګه ده ؟

---

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : والقول بوجوبها ضعيف" جزم الزيلعي في سجود السهو بوجوبها وقدم القول بسجود السهو فيها وصححه العلامة المقدسي شارح النظم وفي معراج الدراية عن المعلي عن الإمام وجوبها وهو قولهما وفي رواية الحسن أنها لا تجب إلا عند إفتتاح الصلاة والصحيح أنها تجب في كل ركعة حتى لو سها عنها قبل الفاتحة يلزمه السهو وعليه ابن وهبان اه ملخصا من الشرح أقول مستعينا بالله تعالى سجود السهو بتركها هو الأحوط خروجا من هذا الخلاف . ( ص ۲۱۰ كتاب الصلاة كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

وفي شرح المنية :ومراده في كل ركعة تجب فيها القراءة.( ص ۳۰۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

[1] في مجمع الانهر : ويسمي سرا إلا عند الشافعي جهرا فيما يجهر بالقراءة أول كل ركعة عندهما وعند الإمام في رواية أخرى عنه في الركعة الأولى فقط والأول أحوط وعليه الفتوى ( ج ۱ ص ۱۴۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل (۱) ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۷۴ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها وردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۲ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب لفظة الفتوى آكد وابلغ من لفظة المختار )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دنارينه دپاره سنت طريقه داده چي لاسونه به پرځنګنوباندي کښيږدي اوګوتي به سره وغوړوي ځنګنونه به په ټينګ کړي اوپښي به سمي سيده کړي ځنګنونه به نه کږوي او ملابه سمه هواره کړي سربه داوږو سره برابرکړي.

اودښځي دپاره سنت طريقه داده چي دومره لږ کښته سي چي لاسونه يې ځنګنو ته ورسيږي اولاسونه به پرځنګنوباندي داسي کښيږدي چي ګوتي به سره ومښلوي دنارينه په شان به ګوتي نه سره غوړوي ځنګنونه به نه په ټينګوي اوځنګنونه به يوڅه کاږه کړي[1].

---

[1] في دررالحكام شرح غرر الاحكام : (ويعتمد بيديه على ركبتيه مفرجا أصابعه) لا يندب التفريج إلا في هذه الحالة (باسطا ظهره) حتى لو صب الماء على ظهره لاستقر (لا رافعا رأسه ولا منكسا .

وفي حاشية الشرنبلالي : (قوله ويعتمد بيديه على ركبتيه) أقول ويكون ناصبا ساقيه، وإحناؤهما شبه القوس كما يفعل بعض الناس مكروه . ( ج ١ ص ٧٠ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٦٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة قبيل مطلب في اطالة الركوع للجائي ، ومراقي الفلاح ص ٢١٥ كتاب الصلاة كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : ولا تفرج أصابعها في الركوع وتنحني في الركوع قليلا بحيث تبلغ حد الركوع فلا تزيد على ذلك لأنه أستر لها . ( ص ٢٠٩ كتاب الصلاة كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٣٧٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

## ۴۵۱ - په رکوع کي سبحان ربي الکریم ویل

**الاستفتاء** : په رکوع کي د سبحان ربي العظیم پرځای سبحان ربي الکریم ویل څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا**:

کوم څوک چي سبحان ربي العظیم سم صحیح ویلای سي هغه به دغه تسبیح وایي ځکه اصلي سنت تسبیح دغه ده.

او کوم څوک چي دغه سبحان ربي العظیم سم صحیح نه سي ویلای بلکه سبحان ربي العزیم وایي په ډکه زاء سره لکه عام خلګ چي اکثر دغسي دي دغه خلګ به دغه غلط لفظ نه وایي بلکه سبحان ربي الکریم به وایي ځکه په ردالمحتار کي فرمایي چي په دغه غلط لفظ سره لمونځ فاسدیږي[1].

## ۴۵۲ - دامام دپاره ترسمع الله لمن حمده وروسته ربنا لک الحمد ویل

**الاستفتاء** : امام به ترسمع الله لمن حمده وروسته ربنالک الحمد وایي او که نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا**:

زموږ په مذهب کي دامام صاحب پرقول باندي اصلي حکم دادی چي امام به ربنالک الحمد نه وایي خو بعض فقهاء رحمهم الله تعالی فرمایي چي امام دي ربنالک الحمد ووایي.

---

[1] في رد المحتار : السنة في تسبيح الركوع سبحان ربي العظيم إلا إن كان لا يحسن الظاء فيبدل به الكريم لئلا يجري على لسانه العزيم فتفسد به الصلاة كذا في شرح درر البحار ، فليحفظ فإن العامة عنه غافلون حيث يأتون بدل الظاء بزاي مفخمة . ( ج ۱ ص ۳۶۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة قبيل مطلب في إطالة الركوع للجائي )

نوکه دهغه چاپه باره کي په دغه قول فتوی ورکول سي چي لمونځ ډېر په تلوار کوي تر رکوع وروسته قومه نه کوي نو دغه به څه مشکل ونه لري.

او ددغه څخه ماسوا چي عمل او فتوی په هغه اول اصلي حکم سره وسي[1].

## ۴۵۳ - منفرد به سمع الله لمن حمده ربنالک الحمد دواړه وايي که يو

**الاستفتاء**: منفرد ( يوازي لمونځ کونکی ) چي درکوع څخه راپورته سي نوسمع الله لمن حمده او ربنا لک الحمد به دواړه وايي او که به يو وايي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا**:

سمع الله لمن حمده اوربناولک الحمددواړه به وايي[2].

## ۴۵۴ - مقتدي به سمع الله لمن حمده ربناولک الحمد دواړه وايي که يو

**الاستفتاء**: مقتدي چي درکوع څخه راپورته کيږي نوسمع الله لمن حمده او ربنا ولک الحمد به دواړه وايي او که به يو وايي ؟

---

[1] في البدائع : فإن كان إماما يقول سمع الله لمن حمده ولا يقول ربنا لك الحمد في قول أبي حنيفة، وقال أبو يوسف ومحمد والشافعي: يجمع بين التسميع والتحميد . ( ج ١ ص ٤٨٩ كتاب الصلاة سنن الانتقال ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٥٢ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، وتبيين الحقائق ج ١ ص ٣٠٠ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

[2] في الهندية : وإن كان منفردا الأصح أنه يأتي بهما . ( ج ١ ص ٧٤ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ، كذا في مجمع الانهر ج ١ ص ١٤٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٣٦٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مقتدي به يوازي ربنالک والحمد وايي سمع الله لمن حمده به نه وايي[1].

## ۴۵۵- دمقتدي د ربناولک الحمد دويلو وخت

**الاستفتاء** : دجماعت په لمانځه کي به مقتدي ربناولک الحمد څه وخت وايي يعني درکوع څخه دراپورته کېدلو په وخت کي دامام دسمع الله لمن حمده سره يوځای به يې وايي اوکه به يې هغه وخت وايي چي امام سمع الله لمن حمده خلاص کړي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

مقتدي به ربنا لک الحمد درکوع څخه دراپورته کېدلو په وخت کي دامام دسمع الله لمن حمده سره يوځای وايي[2].

---

[1] في الهندية : وإن كان مقتديا يأتي بالتحميد ولا يأتي بالتسميع بلا خلاف . (ج ۱ ص ۷۴ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الثالث في سنن الصلاة وآدابها وكيفيتها ، كذا في مجمع الانهر ج ۱ ص ۱۴۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ ص ۳۶۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

[2] في البدائع : بيان ذلك أن الذكر يقارن الانتقال فإذا قال الإمام مقارنا للانتقال سمع الله لمن حمده يقول المقتدي مقارنا له: ربنا لك الحمد . ج ۱ ص ۴۹۰ كتاب الصلاة فصل في سنن الصلاة رفع اليدين في الصلاة ، كذا في المبسوط للسرخسي ج ۱ ص ۱۰۶ كتاب الصلاة كيفية الدخول في الصلاة ، والعناية على هامش فتح القدير ج ۱ ص ۲۶۰ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

## ۴۵۶ - د ربنا ولک الحمد لفظ دويلو طريقې

**الاستفتاء** : ربناولک الحمدپه واو سره ويل کيږي اوکه ربنالک الحمد بېله واو څخه ويل کيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه تسبيح په څلوروطريقوسره ويل کيږي اودغه ټولي صحيح دي خوپه افضليت کي فرق سره لري :

اول: ترټولو افضل (اللهم ربناولک الحمد ) دی.

په دوهمه مرتبه کي افضل ( اللهم ربنالک الحمد ) دی.

په دريمه مرتبه کي افضل ( ربناولک الحمد ) دی.

په څلورمه مرتبه کي افضل ( ربنالک الحمد ) دی[1].

## ۴۵۷ - دسجدې سنت طريقه

**الاستفتاء** : د سجدې سنت طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دنارينه دپاره سنت طريقه داده چي په سجده کي به نس دورنوڅخه پورته کړي اوکه خلګوته ضرر نه رسېدی لاسونه به دبغلوڅخه ليري کړي اودلاسونو

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وأفضله: اللهم ربنا ولك الحمد، ثم حذف الواو، ثم حذف اللهم فقط .

وفي ردالمحتار : (قوله ثم حذف اللهم) أي مع إثبات الواو، وبقي رابعة وهي حذفهما والأربعة في الأفضلية على هذا الترتيب كما أفاده بالعطف بثم . ( ج ١ ص ٣٦٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

ګوتي به سره ومښلوي اومخ به ددواړو ورغوو په مابين کي کښيږدي اودپښو دګوتو سرونه به دقبلې شريفي طرف ته مخامخ کړي.

اودښځي دپاره سنت طريقه داده چي نس به دځنګنوسره ومښلوي اولاسونه به دبغلو سره ومښلوي اودلاس ليندۍ (دمړوند څخه ترڅنګلي پوري ) به پرمځکه باندي ولګوي[1].

## ۴۵۸ - دښځه دپاره په سجده کي دپښو ايښوولو طريقه

**الاستفتاء** : ښځه به په سجده کي دنارينه په شان پښې دروي اوکه به يې پرېباسي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامداومصليا:**

دفقهاء کرامو په کلام کی داعبارت ذکردی ( انها لاتنتصب اصابع القدمين ) اومولاناعبدالحي رحمه الله تعالی په مجموع الفتاوی کي ددغه عبارت مقصود دسجدې حالت بللی دی ، نوبناء پردغه قول باندي دامعلومه سول چي ښځه به

---

[1] في ملتقى الأبحر على هامش مجمع الانهر : ثم يكبر ويسجد فيضع ركبتيه ثم يديه ثم وجهه بين كفيه ضاما أصابع يديه محاذية أذنيه ويبدي ضبعيه ويجافي بطنه عن فخذيه ويوجه أصابع رجليه نحو القبلة والمرأة تنخفض وتلزق بطنها بفخذيها .

وفي ردالمحتار : وتفترش ذراعيها . ( ج ۱ ص ۳۷۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

وفي مجمع الانهر : (ضبعيه) بفتح الضاد المعجمة وسكون الباء هو العضد وقيل وسطه وباطنه أي يجافي مرفقيه عن جنبيه إلا إذا كان المصلي في الصف، فإنه لايبدي عضديه كي لا يؤذي أحدا .( ج ۱ ص ۱۴۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل(۱)، ومثله في درر الحكام شرح غرر الاحكام)

دسجدې په حالت کي پښې نه دروي[۱].

## ۴۵۹ - ددوو سجدو دمابين په ناسته كي(رَبّ اغفرلي )ويل

**الاستفتاء**: ددوو سجدو دمابين په ناسته کي سنت ذکرسته او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

زموږ په مذهب کي اصلي مشهورقول دادی چي په دغه ناسته کي سنت ذکر نسته ، خو په ردالمحتارکي فرمايي چي مستحب داده چي په دغه ناسته کي دمغفرة دعاء يعني ( اللهمّ اغفرلي ، يا ، رَبّ اغفرلي ) وويل سي اودغه خبره صاحب دمنهاج السنن هم تائيدکړې ده ، اوشاه انورشاه كشميري رحمه الله تعالی هم دترمذي شريف په شرح العرف الشذي کي دغه خبره ښه بللې ده ځکه چي اکثرخلګ دغه ناسته نه کوي اويايې په ډېرتلوار سره کوي اوسره ددې چي دغه ناسته ديوه تسبيح په اندازه باندي واجب ده نوکه دغه دعاء وويل سي نوددغه واجب لحاظ به هم پکښې وسي[۲].

---

[۱] في ردالمحتار : انها لاتنصب اصابع القدمين .( ج ۱ص ۳۷۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي ، كذا في البحر ج ۲ ص ۵۶۱ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي مجموع الفتاى :ازين جهت فقهاء دركتب خود فروع كثيره براى نسوان ذكر كرده اند كه درآن شركت مردان نيست من جمله آن اين هم است كه درسجده نصب قدمين مثل مردان نه سازند در بحر الرائق مينويسند لاتنصب القدمين . ( ج ۱ ص ۷۷ )

[۲] في رد المحتار : ( قوله وليس بينهما ذكر مسنون ) قال أبو يوسف: سألت الإمام أيقول الرجل إذا رفع رأسه من الركوع والسجود اللهم اغفر لي؟ قال: يقول ربنا لك الحمد وسكت، ولقد أحسن في الجواب إذ لم ينه عن الاستغفار نهر وغيره . أقول: بل فيه إشارة إلى أنه غير مكروه إذ لو كان مكروها

## ۴۶۰ - د لمانځه دناستي سنت طريقه

**الاستفتاء** : په لمانځه کي دناستى سنت طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

دنارينه دپاره په لمانځه کي دناستي سنت طريقه داده چي چپه پښه به هواره کړي اوپردغه پښه به کښيني اوراسته پښه به جګه ودروي اودګوتوسرونه به يې قبلې شريفي ته مخامخ کړي اولاسونه به پرځنګنوباندي په داسي طريقه سره کښيږدي چي ګوتي لږ سره خلاصي کړي اودګوتوسرونه يې ځنګنوته ورسيږي خوځنګنونه به په ګوتوسره نه ټينګوي لکه درکوع په حالت کي.

اودښځي دپاره سنت طريقه داده چي دواړي پښي به راسته طرف ته وباسي اولاسونه به پرځنګنوباندي کښيږدي اودلاسونوګوتي به سره ومښلوي[1].

---

لنهى عنه كما ينهى عن القراءة في الركوع والسجود وعدم كونه مسنونا لا ينافي الجواز كالتسمية بين الفاتحة والسورة ، بل ينبغي أن يندب الدعاء بالمغفرة بين السجدتين خروجا من خلاف الإمام أحمد لإبطاله الصلاة بتركه عامدا ولم أر من صرح بذلك عندنا، لكن صرحوا باستحباب مراعاه الخلاف، والله أعلم . ( ج ١ ص ٣٧٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي كذا في منهاج السنن ج ٢ ص ٩٩ باب مايقول بين السجدتين )

وفي العرف الشذي علي هامش سنن الترمذي : وقال القاضي ثناء الله رحمه الله الپاني پتي باستحباب الدعاء خروجاً عن الخلاف ، ونعم ما قال القاضي المرحوم لاسيما في هذا العصر، فإن تحفظ الجلسة متعذر بدون تعيين الدعاء فيها . ( ج ١ ص ١٦٩ ابواب الصلاة باب مايقول بين السجدتين )

[1] في مراقي الفلاح : و" يسن "وضع اليدين على الفخذين" حال الجلسة "فيما بعد السجدتين" فيكون "كحالة التشهد" كما فعله النبي صلى الله عليه وسلم ولا يأخذ الركبة هو الأصح "و" يسن "افتراش" الرجل "رجله اليسرى ونصبه اليمنى" وتوجيه أصابعها نحو القبلة كما ورد عن ابن عمر رضي

**٤٦١ - د أشهد أن لا إله إلا الله په وخت کي په ګوته سره اشاره کول**

**الاستفتاء** : په ناسته کي د أشهد أن لا إله إلا الله په وخت کي په ګوته سره اشاره کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

راجح قول دادی چي دغه اشاره مستحب ده[1].

**٤٦٢ - سجدة سهو لازمه وي نو درود تر سجدې دمخه که وروسته ووايي**

**الاستفتاء** : که پريوچاباندي سجدة السهو لازمه وي نودغه شخص به ترسجدة السهو دمخه د التحيات سره درود اودعاء وايي اوکه وروسته ؟

---

الله تعالى عنه "و" يسن "تورك المرأة" بأن تجلس على أليتها وتضع الفخذ على الفخذ وتخرج رجلها من تحت وركها اليمنى لأنه أستر لها .

وفي الطحطاوي على مراقي الفلاح : قوله: "كما فعله النبي صلى الله عليه وسلم" بحيث تكون أطراف أصابعه على حرفي ركبتيه لا مباعدة عنهما . ( ص ٢١٧ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٧٥/٣٧٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

[1] في تبيين الحقائق : وقال في الفتاوى لا إشارة في الصلاة إلا عند الشهادة في التشهد وهو حسن . ( ج ١ ص ٣١٣ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل واذا اراد الدخول في الصلام كبر ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٧٥ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في اطالة الركوع للجائي )

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

ډېر احتیاط دادی چي درود اودعاء په دواړه ځایه کي ووایي[1].

## ۴۶۳- دمسبوق دپاره په اخیره ناسته کي درود ویل

**الاستفتاء**: مسبوق به په اخیره ناسته کي دالتحیات څخه وروسته درود وایي اوکه نه؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

په دغه مسئله کي څلور (۴) قولونه راغلي دي او هرقول دبعض فقهاؤ په نزد صحیح بلل سوی دی.

(۱) دادی چي داپکارده چي مسبوق التحیات کرار کرار وایي چي دامام ترسلام پوري ورسیږي او په البحرالرائق کي فرمایي چي مناسب داده چي په دغه قول سره فتوی ورکړل سي.

(۲) دادی چي ساکت (چپ) دي کښیني.

(۳) دادی چي درود اودعاء دي ووایي.

(۴) چي تشهد دي مکرر کړي خو په الهندیة کی فرمایي چي په دغه ځای

---

[1] في الهندية: ويأتي بالصلاة على النبي صلى الله عليه وسلم والدعاء في قعدة السهو هو الصحيح وقيل يأتي بهما في القعدة الأولى، كذا في التبيين. والأحوط أن يصلي في القعدتين. (ج ۱ ص ۱۲۵ كتاب الصلاة الباب الثاني عشر في سجود السهو، كذا في قاضيخان على هامش الهندية ج ۱ ص ۱۲۱ كتاب الصلاة باب الحدث في الصلاة وما يكره فيها وما لايكره فصل فيما يوجب السهو وما لايوجب السهو، والدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ۱ص ۵۴۶ كتاب الصلاة باب سجود السهو)

كي دتشهد څخه دغه كلمه ( اشهد ان لا اله الا الله ) مراد ده [١].

## ۴۶۴ - په لمانځه كي دالسلام عليكم پرځاى سلام عليكم ويل

**الاستفتاء** : كه يولمونځ كونكى دالسلام عليكم ورحمة الله پرځاى باندي سلام عليكم ورحمة الله ووايي څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

دغه عمل دسنت مخالف او مكروه بلل كيږي [٢].

---

[١] في البحر : وأطلق المصنف التشهد والصلاة فشمل المسبوق ولا خلاف أنه في التشهد كغيره وأما في الصلاة والدعاء فاختلفوا على أربعة أقوال اختار ابن شجاع تكرار التشهد وأبو بكر الرازي السكوت وصحح قاضي خان في فتاويه أنه يترسل في التشهد حتى يفرغ منه عند سلام الإمام، وصحح صاحب المبسوط أنه يأتي بالصلاة والدعاء متابعة للإمام لأن المصلي لا يشتغل بالدعاء في خلال الصلاة لما فيه من تأخير الأركان وهذا المعنى لايوجد هنا لأنه لايمكنه أن يقوم قبل سلام الإمام وينبغي الإفتاء بما في الفتاوى كما لا يخفى . ( ج ١ ص ٥٧٥ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي ردالمحتار : وباقي الاقوال مصحح ايضا . ( ج ١ ص ٣٧٧ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب مهم في عقد الاصابع عند التشهد )

[٢] في الجوهرة النيرة : وإن قال السلام ولم يقل عليكم لم يصر آتيا بالسنة وإن قال سلام عليكم أو عليكم السلام لم يكن آتيا بها ويكره ذلك . ( ج ١ ص ٧٢ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، كذا في ردالمحتار ج ١ ص ٣٨٩ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في عدد الانبياء والرسل عليهم الصلاة والسلام ، ومراقي الفلاح ص ٢٢٢ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

## ۴۶۵ - دامام دپاره دسلام ګرځولو سنت طريقه

**الاستفتاء**: دامام دپاره دسلام ګرځولو سنت طريقه څرنګه ده ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

سنت طريقه داده چي اول سلام په مناسب اواز سره ووايي اودوهم سلام تراول سلام په کښته اواز سره ووايي[1].

## ۴۶۶-ترلمانځه وروسته سبحان الله الحمدلله الله اکبر تر(۳۳) واره ډېر ويل

**الاستفتاء** : ترلمانځه وروسته چي درودېرش ( ۳۳ ) واره سبحان الله او درودېرش ( ۳۳ )واره الحمد لله او درودېرش ( ۳۳ ) واره الله اکبر ويل کيږي که يو څوک دغه اذکار تردغه اندازې ډېروايي ايا په دغه سره ثواب کميږي او که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

که په دغه اذکارو کي يوڅوک زيادت وکړي نوثواب يې کميږي نه بلکه ډېريږي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وسن جعل الثاني أخفض من الأول . ( ج ۱ ص ۳۸۹ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في وقت ادراک فضيلة الافتتاح ، كذا في البحر ج ۱ ص ۵۸۰ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۵۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي ردالمحتار : (قوله أخفض من الأول) أفاد أنه يخفض صوته بالأول أيضا أي عن الزائد على قدر الحاجة في الإعلام فهو خفض نسبي، وإلا فهو في الحقيقة جهر، فالمراد أنه يجهر بهما إلا أنه يجهر بالثاني دون الأول، وقيل إنه يخفض الثاني: أي لا يجهر به أصلا. والأصح الأول .

## ۴۶۷- تر لمانځه وروسته دتسبيحاتو پرګوتو ،تسپو دويلو طريقه

**الاستفتاء** : دلمانځه وروسته تسبيحات پركوم لاس ويل كيږي اوبل داچي دګوتو پرسروباندي ويل كيږي اوكه دګوتو پربندوباندي ويل كيږي اوبل داچي كه پرلاس باندي ونه ويل سي پرتسپوباندي وويل سي دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

---

[1] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : وورد إحدى عشرة من كل وورد عشرا وورد ستا وورد مرة واحدة وورد سبعين وورد مائة فقد اختلفت الروايات في تعيين هذه الأعداد وكل ذلك لا يكون إلا عن حكمة وإن خفيت علينا فيجب علينا أن نمتثل ذلك قال الحافظ الزين العراقي وكل ذلك حسن وما زاد فهو أحب إلى الله تعالى وجمع البغوي بأنه يحتمل صدور ذلك في أوقات متعددة وأن يكون ذلك على سبيل التخيير أو يفترق بافتراق الأحوال كما ذكره البدر العيني في شرح البخاري والمنلا علي في شرح المشكاة وفي الإتيان بالثلاث والثلاثين إتيان بما هو دون ذلك قال البدر العيني فسقط ما قيل ان هذه الأعداد الواردة عقب الصلوات من الأذكار إذا كان لها عدد مخصوص مع ثواب مخصوص فزاد الآتي بها على عددها عمدا لا يحصل له ذلك الثواب الوارد في الإتيان بالعدد الناقص فلعل لتلك الأعداد حكمة وخاصية تفوت بمجاوزة تلك الأعداد وتعديها وليس هذا إلا تهافتا والصواب ما قلنا لأن هذه الأعداد ليست من الحدود التي نهي عن تعديها ومجاوزة أعدادها بل مما يتنافس فيه المتنافسون ويرغب فيه الراغبون والطاعة لا حصر فيها . ( ص ٢٥٥ كتاب الصلاة باب الامامة فصل في صفة الاذكار الواردة بعد صلاة الفرض ، كذا في عمدة القاري على صحيح البخاري ج ۶ ۱۳۱ كتاب الصلاة ابواب صفة الصلاة باب الذكر بعد الصلاة ، والمرقات ج ٣ ص ۴۲ كتاب الصلاة باب الذكر بعد الصلاة )

دغه تسبيحات پرراسته لاس باندي ويل کيږي اودګوتوسرونه اوبندونه فرق نه لري پردواړوباندي ويل کيږي اوپرتسپو باندي هم ويل کيږي خو پرګوتو ويل يې افضل دي[1].

## ۴۶۸ - په دعاء کي لاسونه چپه اړول

**الاستفتاء** : په دعاء کي لاسونه چپه اړول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

---

[1] في السنن الكبرى للبيهقي : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُ التَّسْبِيحَ بِيَمِينِهِ " . ( ج ٢ ص ٢٦٧ كتاب الصلوة بَابُ التَّرْغِيبِ فِي مُكْثِ الْمُصَلِّي فِي مُصَلَّاهُ لِإِطَالَةِ ذِكْرِ اللهِ تَعَالَى فِي نَفْسِهِ، وَكَذَلِكَ الْإِمَامُ إِذَا انْحَرَفَ رقم الحديث ٣٠٢٧ ) = راتلونكى مخ

وفي سنن ابي داؤد كتاب الصلوة باب التسبيح بالحصى : عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ « رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُ التَّسْبِيحَ » قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ: بِيَمِينِهِ . ( ج ١ ص ٢١٠ )

وفي المشكوة : وَعَنْ يُسَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ قَالَتْ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ « عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيحِ وَالتَّهْلِيلِ وَالتَّقْدِيسِ، وَاعْقِدْنَ بِالْأَنَامِلِ فَإِنَّهُنَّ مَسْئُولَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسَيْنَ الرَّحْمَةَ » . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ . ( ج ١ ص ٢٠٢ كتاب اسماء الله تعالى باب ثواب التسبيح والتحميد والتهليل والتكبير الفصل الثاني )

وفي المرقات : (بالأنامل) أي بعقدها أو برءوسها ... والظاهر أن يراد بها الأصابع من باب إطلاق البعض وإرادة الكل عكس ما ورد في قوله تعالى: {يجعلون أصابعهم في آذانهم}وفيه جواز عد الأذكار ومأخذ سبحة الأبرار، وقد كان لأبي هريرة خيط فيه عقد كثيرة يسبح بها، وزعم أنها بدعة غير صحيح لوجود أصلها في السنة ولقوله صلى الله عليه وسلم أصحابي كالنجوم بأيهم اقتديتم اهتديتم " وإنما قيد العقد بالأنامل دلالة على الأفضل . ( ج ٥ ص ٢٢٦ كتاب اسماء الله تعالى باب ثواب التسبيح والتحميد والتهليل والتكبير الفصل الثاني )

سنت طريقه داده چي په كومه دعاء كي چي بنده دالله جل جلاله څخه دنفع اوفائدې ديوشي خواست كوي په هغه كي دي لاسونه چپه نه اړوي.

اوپه كومه دعاء كي چي بنده دالله جل جلاله څخه ديومشكل او آفت څخه دخلاصون خواست كوي په هغه دعاء كي دي لاسونه چپه واړوي[1].

## ۴۶۹ - دسهار ،ماځيګر لمانځه دكولوو روسته امام څه وكړي

**الاستفتاء** : تركوم لمانځه وروسته چي سنت نه وي لكه دسهار اوماځيګر تردغه لمانځه وروسته به امام څه كوي ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

په دغه وخت كي به امام پرخپل هيئت قبلې ته مخامخ نه كښېني ځكه دغه ناسته مكروه ده نويابه ولاړسي يابه راسته ياچپه طرف ته مخ واړوي يابه خلګوته مخ راواړوي خوپه دې شرط چي ده ته مخامخ يولمونځ كونكى پرلمانځه نه وي ولاړ اوكه لمونځ كونكى ده ته مخامخ پرلمانځه ولاړوي بيابه دغه لمونځ كونكي

---

[1] في الطحطاوي على مراقي الفلاح : ثم السنة في كل دعاء لسؤال شيء وتحصيله أن يجعل بطون كفيه نحو السماء ولرفع بلاء كالقحط يجعل بطونهما إلى الأرض وذلك معنى قوله تعالى: {ويدعوننا رغبا ورهبا} كذا في شرح البدر العيني على الصحيح . ( ص ۴۵۳ كتاب الصلاة باب الاستسقاء ، كذا في البحر ج ۲ ص ۷۷ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۳۷۵ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة قبيل مطلب مهم في عقد الاصابع عند التشهد )

ته مخامخ نه كښېني او د مذهب ظاهر الرواية دادى چي كه يوڅوک دشا په صف كي پرلمانځه ولاړوي هم به امام دغه لمونځ كونكي ته مخامخ نه كښېني[1].

---

[1] في فتح القدير : وفي الصلاة التي لايتطوع بعدها يكره المكث في مكانه قاعدا مستقبلا ثم هو بالخيار إن شاء ذهب وإن شاء جلس في محرابه إلى طلوع الشمس وهو أفضل، ويستقبل القوم بوجهه إذا لم يكن بحذائه مسبوق، فإن كان ينحرف يمنة أو يسرة والصيف والشتاء سواء هذا هو الصحيح، هذا حال الإمام . ( ج ١ ص ٣٨٥ كتاب الصلاة باب النوافل ، كذا في البدائع ج ١ ص ٣٩٣ كتاب الصلاة فصل في بيان مايستحب للامام ان يفعله عقيب الفراغ من الصلاة ، وردالمحتار ج ١ ص ٣٩٢ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب فيمالوزاد على العدد الوارد في التسبيح عقب الصلاة)

وفي ردالمحتار : وإن شاء الإمام استقبل الناس بوجهه إذا لم يكن بحذائه رجل يصلي، ثم قال: ولم يفصل أي محمد بين ما إذا كان المصلي في الصف الأول أو الأخير، وهذا هو ظاهر المذهب لأنه إذا كان وجهه مقابل وجه الإمام في حالة قيامه يكره ولو بينهما صفوف.( ج ١ ص ٤٧٦ كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها مطلب إذا تردد الحكم بين سنة وبدعة كان ترك السنة أولى،كذا في البحر ج ٢ ص ٢٨ كتاب الصلاة باب ما يفسد الصلاة وما يكره فيها , والمحيط البرهاني ج ١ ص ٤٩٤ كتاب الصلاة الفصل التاسع عشر في المرور بين يدي المصلي وفي دفع المصلي المارّ، واتخاذ السترة ومسائلها )

# الفصل الثالث في القراءة

## دريم فصل دقرائت په بيان كي دى

### ۴۷۰ - دسنت قرائت اندازه دجماعت اويوازي لمانځه دواړو دپاره

**الاستفتاء** : سنت قرائت چي دسهارپه لمانځه كي طوال المفصل دي اودماپښين په لمانځه كي هم طوال دي داكثرپرقول اوياواوساط دي پربل قول اودماځيگر اوماختن په لمانځه كي اوساط المفصل دي اودماښام په لمانځه كي قصار المفصل دي دغه ترتيب يوازي دجماعت دلمانځه دپاره دى اوكه ديوازي لمانځه دپاره هم دى ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

دغه ترتيب ددواړو دپاره دى كه يوازي لمونځ كوي اوكه په جماعت سره لمونځ كوي[1].

### ۴۷۱ - داول ركعت قرائت ددوهم ركعت پر قرائت باندي اوږدول

**الاستفتاء** : كه يوڅوك په لمانځه كي داول ركعت قرائت ددوهم ركعت پرقرائت باندي اوږد كړي دغه څه حكم لري ؟

---

[1] في الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار : ويسن في الحضر لإمام ومنفرد ذكره الحلبي والناس عنه غافلون طوال المفصل آه . ( ج ١ ص ٣٩٨ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب السنة تكون سنة عين وسنة كفاية ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٩٤ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والدرالمنتقى على مجمع الانهر ج ١ ص ١٥٩ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل (٢) )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دامام دپاره دسهار په لمانځه کي په اتفاق سره دامستحب ده چي اول رکعت پردوهم باندي اوږدکړي.

اوديوازي لمونځ کونکي دپاره دامستحب ده چي دواړه رکعاته په برابر قرائت سره وکړي.

اوپه نورولمونځونوکي دامام صاحب اوامام ابويوسف صاحب پرقول باندي افضل داده چي ټول رکعتونه په برابر قرائت سره وکړي.

خوکه اول رکعت پردوهم باندي اوږد کړي نودغه که په دې نيت باندي وي چي خلگ به لمونځ ورسره ونيسي اودجماعت پرشريکو خلگوباندي نه تکليف کېدی نودغه نه دی مکروه اوکه داسي نه وي نوبيامکروه تنزيهي دی.

او امام محمدصاحب فرمايي چي زماداډېره خوښه ده چي په ټولولمونځو کي اول رکعت پردوهم رکعت باندي اوږدکړي[1].

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وتطال أولى الفجر على ثانيتها بقدر الثلث، وقيل النصف ندبا؛ فلو فحش لا بأس به فقط وقال محمد ولي الكل حتى التراويح . ( ج ١ ص ٤٠٠ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب السنة تكون سنة عين وسنة كفاية ، كذا في البحر ج ١ ص ٥٩٦ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة ، والهندية ج ١ ص ٧٨ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الرابع في القراءة )

وفي ردالمحتار : (قوله وتطال إلخ) أي يطيلها الإمام وهي مسنونة إجماعا إعانة على إدراك الركعة الأولى لأن وقت الفجر وقت نوم وغفلة وقد علم من التقييد بالإمام ومن التعليل أن المنفرد يسوي بين الركعتين في الجميع اتفاقا . كذا في شرح المنية ص ٣١٣ كتاب الصلاة صفة الصلاة )=راتلونکی مخ

**۴۷۲- په فرض لمانځه کي ددوهم رکعت قرائت اوږدول پر اول رکعت**

**الاستفتاء** : که په فرض لمانځه کي ددوهم رکعت قرائت داول رکعت پرقرائت باندي اوږد سي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

دغه طريقه په ټولو لمونځونوکي مکروه تنزيهي ده مګرکه په کوم خاص لمانځه کي په نص باندي معين سورتونه ثابت سوي وي نودغه که څه هم دوهم رکعت پراول باندي اوږدوي مکروه نه بلل کيږي[1].

---

وفي البحر : وفي المحيط معزيا إلى الفتاوى الإمام إذا طول القراءة في الركعة الأولى لكي يدركها الناس لا بأس إذا كان تطويلا لا يثقل على القوم اه فأفاد أن التطويل في سائر الصلوات إن كان لقصد الخير فليس بمكروه وإلا ففيه بأس، وهو بمعنى كراهة التنزيه . ( ج ۱ ص ۵۹۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

[1] في البحر : وقيد بالأولى؛ لأن إطالة الثانية على الأولى تكره إجماعا ... ويشكل على هذا الحكم ما ثبت في الصحيحين من قراءته صلى الله عليه وسلم في الجمعة والعيدين في الأولى بسبح اسم ربك الأعلى، وفي الثانية بهل أتاك حديث الغاشية مع أن الثانية أطول من الأولى بأكثر من ثلاث آيات فإن الأولى تسع عشرة آية والثانية ست وعشرون آية، وقد يجاب: بأن هذه الكراهة في غير ما وردت به السنة وأما ما ورد عنه عليه الصلاة والسلام في شيء من الصلوات فلا أو الكراهة تنزيهية وفعله عليه الصلاة والسلام تعليما للجواز لا يوصف بها والأول أولى؛ لأنهم صرحوا باستنان قراءة هاتين السورتين في الجمعة والعيدين.(ج ۱ص ۵۹۷ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة،كذا في دررالحكام شرح غرر الاحكام مع حاشية الشرنبلالي ج ۱ ص ۸۳ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل في الامامة،و الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۱۴ كتاب الصلاة باب شروط الصلاة واركانها فصل في بيان سننها )

## ۴۷۳ - دوهم رکعت چي پر اول رکعت څومره اوږدسي مکروه دی

**الاستفتاء** : دوهم رکعت چي پراول رکعت باندي څومره اوږدسي مکروه بلل کيږي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصليا:**

عموماًدفقهي په کتابونوکي فرمايي چي که داول او دوهم رکعت دقرائت آيتونه په اوږدوالي اولنډوالي کي سره نژدې وي نوکه ددوهم رکعت قرائت داول رکعت پرقرائت باندي درې آياته اوږدسي نومکروه بلل کيږي اويو يادوه آياته مکروه نه بلل کيږي.

اوکه داول او دوهم رکعت دقرائت آيتونه په اوږدوالي اولنډوالي کي سره نژدې نه وي نوبياکه ددوهم رکعت دقرائت حروف داول رکعت دقرائت تر حروفو ددرې آياته په اندازه ډېرسي نومکروه بلل کيږي که څه هم ددوهم رکعت آياتونه داول رکعت ترآياتو په درې آياته نه وي ډېر.

خوپه شرح المنية کي فرمايي چي په اصل کي ددوهم رکعت پراول رکعت باندي دومره اندازه اوږدوالی مکروه بلل کيږي چي اوږدوالی ښه پوره ښکاره معلوميږي.

نو دغه درې آياته اندازه اوږدوالي چي مکروه بلل کيږي دغه حکم په لنډو سورتو کي دی.

او اوږده سورتونه چي دي په هغوکي ددرې آياته اندازه اوږدوالی مکروه نه بلل کيږي بلکه دومره اوږدالی مکروه بلل کيږي چي دغه اوږدوالی ښه ښکاره معلوم سي.

او په دغه شرح المنية کي دغه قول حسن بلل سوی دی[1].

---

[1] في شرح المنية : وعلم منه أن ثلاث آيات إنما تكره في السور القصار لظهور الطول فيها بذلك القدر ظهورا بينا وهو حسن إلا أنه ربما يتوهم منه أنه متى كانت الزيادة بما دون النصف لا تكره وليس كذلك بل الذي ينبغي أن الزيادة إذا كانت ظاهرة ظهورا تاما تكره وإلا فلا للزوم الحرج في التحرز عن الخفية ولورود مثل هذا في الحديث . ( ص ٣١٣ كتاب الصلاة صفة الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٤٠١ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب السنة تكون سنة عين وسنة كفاية ، والطحطاوي على مراقي الفلاح ص ٢٨٦ كتاب الصلاة باب مايفسد الصلاة فصل في المكروهات )

وفي الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وإطالة الثانية على الأولى يكره تنزيها إجماعا إن بثلاث آيات إن تقاربت طولا وقصرا، وإلا اعتبر الحروف والكلمات .

وفي ردالمحتار : (قوله إن تقاربت إلخ) ذكر هذا في الكافي في المسألة التي قبل هذه، واعتبره في شرح المنية في هذه المسألة أيضا كما يأتي في عبارته والحاصل أن سنية إطالة الأولى على الثانية وكراهية العكس إنما تعتبر من حيث عدد الآيات إن تقاربت الآيات طولا وقصرا فإن تفاوتت تعتبر من حيث الكلمات، فإذا قرأ في الأولى من الفجر عشرين آية طويلة وفي الثانية منها عشرين أية قصيرة تبلغ كلماتها قدر نصف كلمات الأولى فقد حصل السنة، ولو عكس يكره، وإنما ذكر الحروف للإشارة إلى أن المعتبر مقابلة كل كلمة بمثلها في عدد الحروف، فالمعتبر عدد الحروف لا الكلمات فلو اقتصر الشارح على الحروف أو عطفها على الكلمات كما فعل في الكافي لكان أولى . ( ج ١ ص ٤٠١ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب السنة تكون سنة عين وسنة كفاية ، كذا في شرح المنية ص ٣١٤ كتاب الصلاة صفة الصلاة ، والهندية ج ١ ص ٧٨ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الرابع في القراءة )

# باب الامامة

## الفصل الاول في الجماعة

## اول فصل دجماعت په بيان کي دی

### ۴۷۴ - جماعت واجب که سنت دی

**الاستفتاء** : دلمانځه جماعت واجب دی او که سنت دی ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا** :

راجح قول دادی چي جماعت واجب دی[۱].

### ۴۷۵ - دعذر په وجه په کور کي يوازي خپلي ښځي ته جماعت ورکول

**الاستفتاء** : که يوڅوک ديوشرعي عذرپه وجه باندي دجماعت لمونځ پرېږدي نو دغه شخص په کورکي خپلي ښځي ته جماعت ورکولای سي او که نه.

او که يې کولای سي نوښځه به دده شاته دریږي او که پربغل ؟

---

[۱] في البحر : وأما صفتها فما ذكره بقوله (الجماعة سنة مؤكدة) أي قوية تشبه الواجب في القوة والراجح عند أهل المذهب الوجوب ونقله في البدائع عن عامة مشايخنا، وذكر هو وغيره أن القائل منهم أنها سنة مؤكدة ليس مخالفا في الحقيقة بل في العبارة؛ لأن السنة المؤكدة والواجب سواء خصوصا ما كان من شعائر الإسلام . ( ج ۱ ص ۶۰۲ كتاب الصلاة باب الامامة ، كذا في الهندية ج ۱ ص ۸۲ كتاب الصلاة الباب الخامس في الامامة الفصل الاول في الجماعة ، والدرالمختار مع ردالمحتار ج ۱ ص ۴۰۹ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب في تكرار الجماعة في المسجد )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دعذر په وخت كي دغه جماعت مستحب دى ، اودغه ښځه به شاته دريږي پربغل به نه دريږي[1].

## ۴۷۶- دقرآن كريم دپخولودپاره نفل په جماعت سره كول

**الاستفتاء** : كه يوحافظ دقرآن كريم دپخولودپاره نفل لمونځ په جماعت سره وركوي دغه څه حكم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

فقهاء رحمهم الله تعالى فرمايي چي نفل لمونځ په جماعت سره چي دتداعي پرطريقه باندي نه وي روادى اوكه دتداعى پرطريقه باندي وي بيانه دى روا مكروه تحريمي دى نوپه مذكوره صورت كي كه يويادوه نفره اقتداء پسي وكړي پروانلري اوكه دري نفره وي په دغه كي اختلاف دى خوپه شرح المنية دابن امير حاج كي دغه قول راجح بلل سوى دى چي ددرو نفرواقتداء نه ده مكروه ، اوكه تردغه ډيروي بياپه اتفاق سره مكروه دى اوكه داسي وي چي اول واريويادوه

---

(۱) في الجوهرة النيرة : ولو نام أو سها أو شغل عن الجماعة فالمستحب أن يجمع أهله في منزله فيصلي بهم . ( ج ۱ ص ۷۶ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة )

وفي البدائع : واذاكان مع الامام امرأة اقامها خلفه لان محاذاتها مفسدة . ( ج ۱ ص ۳۹۲ كتاب الصلاة افضل مكان المأموم ، كذا في ردالمحتار ج ۱ ص ۴۲۲ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب في جواز الايثار بالقرب )

نفره اقتداء پسي وکړي لکن وروسته نورخلګ راسي اقتداء پسي وکړي نوبيا بايديوازي دورسته خلګوا اقتداء مکروه وبلل سي[1].

## ۴۷۷ - د يوازي ښځو په جماعت سره لمونځ کول

**الاستفتاء** : که په يوځای کي يوازي ښځي په جماعت سره لمونځ وکړي امام هم ښځه وي اونورترشاهم ټولي ښځي وي دغه څه حکم لري ؟

---

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ولا يصلي الوتر ولا التطوع بجماعة خارج رمضان أي يكره ذلك لو على سبيل التداعي بأن يقتدي أربعة بواحد كما في الدرر ولا خلاف في صحة الاقتداء إذ لا مانع .

وفي ردالمحتار (قوله أربعة بواحد) أما اقتداء واحد بواحد أو اثنين بواحد فلا يكره وثلاثة بواحد فيه خلاف . ( ج ١ ص ٥٢۴ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مطلب في كراهة الاقتداء في النفل على سبيل التداعي وفي صلاة الرغائب ، كذا في مراقي الفلاح ص ٣١٣ كتاب الصلاة باب الوتر ، والمحيط البرهاني ج ٢ ص ١٨ كتاب الصلاة الفصل الثالث عشر في التراويح والوتر نوع آخر في المتفرقات )

وفي ردالمحتار : بقي لو اقتدى به واحد أو اثنان ثم جاءت جماعة اقتدوا به قال الرحمتي ينبغي أن تكون الكراهة على المتأخرين . ( ج ١ ص ٥٢۴ كتاب الصلاة باب الوتر والنوافل مطلب في كراهة الاقتداء في النفل على سبيل التداعي وفي صلاة الرغائب )

وفي الطحطاوي على الدرالمختار : (قوله ولايصلي) اى لايجوز ان يصلي بجماعة وان صح وقد افاده الشرح بقوله اى يكره . ( ج ١ ص ٢٩٧ كتاب الصلاة اخر باب الوتر والنوافل )

وفي شرح المنية لابن اميرحاج : قلت والذي ينبغي الاتفاق على نفي الكراهة في الثلاثة آه . ( ج ٢ ص ٥١٢ تذييل للشارح ينطوي على فصول مهمة الفصل الاول في الجماعة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه جماعت که په فرضي لمانځه کي وي اوکه په غيرفرضي لمانځه کي وي په اکثرفقهي کتابوکي مکروه تحريمي بلل سوی دی[۱].

## ۴۷۸ - که يوازي ښځي دجنازې لمونځ په جماعت سره وکړي

**الاستفتاء** : که يوازي ښځي دجنازې لمونځ په جماعت سره وکړي هم امام ښځه وي هم شاته ښځي وي دغه جماعت دنور جماعت په شان مکروه دی که نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

دغه دجنازې دلمانځه جماعت نه دی مکروه[۲].

## ۴۷۹ - دمقتدي دتکبير تحريمه دفضيلت نيولو وخت

**الاستفتاء** : مقتدي چي څه وخت په امام پسي اقتداء وکړي نودتکبير تحريمه دفضيلت نيونکی بلل کيږي ؟

---

[۱] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : (و) يكره تحريما (جماعة النساء) ولو في التراويح . ( ج ۱ ص ۴۱۸ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب إذا صلى الشافعي قبل الحنفي هل الأفضل الصلاة مع الشافعي أم لا ، كذا في الطحطاوي على مراقي الفلاح ص ۲۴۶ كتاب الصلاة باب الامامة فصل في بيان الاحق بالامامة ، والبحر ج ۱ ص ۶۱۴ كتاب الصلاة باب الامامة ، ومجمع الانهر ج ۱ ص ۱۶۴ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة فصل (۳) )

[۲] في البحر :واستثنى الشارحون جماعتهن في صلاة الجنازة فإنها لا تكره . ( ج ۱ ص ۶۱۴ كتاب الصلاة باب الامامة ، كذا في فتح القدير ج ۱ ص ۳۰۶ كتاب الصلاة باب الامامة ، والعناية على هامش فتح القدير ج ۱ ص ۳۰۶ كتاب الصلاة باب الامامة )

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

ښه خبره داده چي مقتدي دامام سره یوځای شروع وکړي ځکه په دغه سره په اتفاق دعلماؤ مقتدي دتکبیرتحریمه دفضیلت نیونکی بلل کیږي.

اوکه څه وځنډیږي نو په دغه کي مختلف قولونه سته خو صحیح دادی چي که اول رکعت ونیسي نو ددغه فضیلت نیونکی بلل کیږي اوکه اول رکعت ورڅخه تېرسي نو بیا دغه فضیلت نیونکی نه بلل کیږي[1].

## ۴۸۰ - دنارینه امام یوازي ښځوته دجماعت لمونځ ورکول

**الاستفتاء** : که یونارینه امام یوازي ښځوته لمونځ ورکوي دغه جماعت مکروه دی اوکه نه ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا:**

که په کورکي وي نوکه ددغه ښځوسره نه یونارینه موجودوي اونه ددغه امام یوه محرمه ښځه موجوده وي لکه خور یامور یاداسي نور اونه یې خپل کوروالا موجوده وي په دغه حالت کي دغه جماعت ورکول مکروه دي.

اوکه ددغه ښځوسره نارینه وي یاددغه امام یوه محرمه ښځه وي یایې کور والا وي اویادغه جماعت په مسجدکي وي نو په دغه حالاتو کي بیا دغه جماعت

---

[1] في الهندية : أما فضيلة تكبيرة الافتتاح فتكلموا في وقت إدراكها والصحيح أن من أدرك الركعة الأولى فقد أدرك فضيلة تكبيرة الافتتاح . ( ج ١ ص ٦٩ كتاب الصلاة الباب الرابع في صفة الصلاة الفصل الاول في فرائض الصلاة ، كذا في الدرالمختار مع ردالمحتار ج ١ ص ٣٨٨ كتاب الصلاة باب صفة الصلاة مطلب في وقت ادراک فضيلة الافتتاح ، والتاتارخانية ج ٢ ص ٥٤ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة ( ١٧١٦ )

مکروه نه دی[۱].

## ۴۸۱-دجماعت وروسته معلومه سي چي دامام څخه دلمانځه رکن یاشرط پاته سوی وو

**الاستفتاء** : که یوامام خلګوته لمونځ ورکړي وروسته معلومه سي چي ددغه امام څخه دلمانځه یورکن یاشرط پاته سوی وو لکه اودس يې نه درلودی یايې پرجامه یابدن باندي دومره مرداري موجود وو چي لمونځ نه ورسره صحیح کیږي نودغه امام به څه کوي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه امام به خپل لمونځ راوګرځوي ، اوپه مقتدیانو کي چي څوک ورته معلوم وي که ټول وي که یوڅه وي هغوته به خبرورکړي په هره طریقه چي کېدلای سي ، اوکوم مقتدیان چي نه وي ورته معلوم دهغوخبرتیانه ده پرلازمه[۲].

---

[۱] في البحر : وكذلك يكره أن يؤم النساء في بيت وليس معهن رجل ولا محرم منه مثل زوجته وأمته وأخته، فإن كانت واحدة منهن فلا يكره وكذلك إذا أمهن في المسجد لا يكره وإطلاق المحرم على من ذكر تغليب وإلا فليس هو محرما لزوجته وأمته . ( ج ١ ص ٦١٦ كتاب الصلاة باب الامامة ، كذا في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ج ١ ص ٤١٩ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب هل الاساءة دون الكراهة او افحش منها ، وخلاصة الفتاوى ج ١ ص ١٥٤ كتاب الصلاة الفصل الخامس عشر في الامامة والاقتداء (مايتصل بصحة الاقتداء )

[۲] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : وإذا ظهر حدث إمامه وكذا كل مفسد في رأي مقتد بطلت فيلزم إعادتها لتضمنها صلاة المؤتم صحة وفسادا كما يلزم الإمام إخبار القوم إذا أمهم وهو محدث أو جنب أو فاقد شرط أو ركن ... بالقدر الممكن بلسانه أو بكتاب أو رسول على الأصح لو معينين وإلا لا يلزمه . ( ج ١ ص ٤٣٧ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب المواضع التي تفسد فيها

## ۴۸۲ - په فاسق انسان پسي لمونځ کول

**الاستفتاء** : په فاسق انسان پسي لمونځ کول څه حکم لري مثلا هغه رېره خريي يا يې تريوې قبضې کمه وي ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا و مصليا**:

اول خودي دغه فاسق انسان د دغه فسق څخه منع کړي که هغه نه منع کېدی نو بيا که بل غيرفاسق امام نسي پيدا کولای نو صاحب د البحرالرائق فرمايي چي په دغه فاسق انسان پسي لمونځ کول هيڅ پروانه لري بلکه تريوازي لمانځه کولو دا ښه خبره ده چي په دغه فاسق انسان پسي لمونځ وکړي ، او که غيرفاسق امام پيدا کولای سي که څه هم په بل مسجد کي وي نو بيا په دغه فاسق انسان پسي لمونځ کول مکروه دي په هغه بل امام پسي دي لمونځ وکړي[1].

---

صلاة الامام دون المؤتم ، كذا في البحر ج ۱ ص ۶۴۰ كتاب الصلاة باب الامامة ، ومراقي الفلاح مع الطحطاوي ص ۲۴۰ كتاب الصلاة باب الامامة )

وفي ردالمحتار : (قوله لو معينين) أي معلومين. وقال ح: وإن تعين بعضهم لزمه إخباره (قوله وإلا) أي وإن لم يكونوا معينين كلهم أو بعضهم لا يلزمه .

[1] في البحر : لو صلى خلف فاسق أو مبتدع ينال فضل الجماعة لكن لا ينال كما ينال خلف تقي ورع ... وذكر الشارح وغيره أن الفاسق إذا تعذر منعه يصلي الجمعة خلفه، وفي غيرها ينتقل إلى مسجد آخر وعلل له في المعراج بأن في غير الجمعة يجد إماما غيره فقال في فتح القدير وعلى هذا فيكره الاقتداء به في الجمعة إذا تعددت إقامتها في المصر على قول محمد وهو المفتى به؛ لأنه بسبيل من التحول حينئذ ... فالحاصل أنه يكره لهؤلاء التقدم ويكره الاقتداء بهم كراهة تنزيه، فإن أمكن الصلاة خلف غيرهم فهو أفضل وإلا فالاقتداء أولى من الانفراد وينبغي أن يكون محل كراهة

## ۴۸۳ - دلاري په مسجد کي دوهم جماعت کول

**الاستفتاء** : دلاري په مسجد کي تراول جماعت وروسته دوهم جماعت کول څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغه دوهم جماعت بېله مکروه والي څخه صحيح بلکه افضل دی[1].

## ۴۸۴ -په هغه مسجد کي دوهم جماعت کول چي معلوم امام نه لري

**الاستفتاء** : که يوڅوک په داسي مسجد کي دوهم جماعت کوي چي هغه معلوم امام اومؤذن ونه لري دغه څه حکم لري ؟

**الفتوى بعون الله تعالى حامدا ومصليا**:

دغه دوهم جماعت بېله مکروه والي څخه صحيح دی او افضل دادی چي په بېل اذان او اقامت سره دغه دوهم جماعت وکړي[2].

---

الاقتداء بهم عند وجود غيرهم وإلا فلا كراهة كما لا يخفى . ( ج ۱ ص ۶۱۰ كتاب الصلاة باب الامامة )

[1] في الدرالمختار على هامش ردالمحتار : ويكره تكرار الجماعة بأذان وإقامة في مسجد محلة لا في مسجد طريق . ( ج ۱ ص ۴۰۸ كتاب الصلاة الصلاة باب الامامة مطلب في تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في البزازية على هامش الهندية ج ۴ ص ۵۶ كتاب الصلاة نوع فيما يكره وما لايكره ، والهندية ج ۱ ص ۸۳ كتاب الصلاة الباب الخامس في الامامة اخر الفصل الاول في الجماعة )

[2] في الهندية : مسجد ليس له مؤذن وإمام معلوم يصلي فيه الناس فوجا فوجا بجماعة فالأفضل أن يصلي كل فريق بأذان وإقامة على حدة . ( ج ۱ ص ۵۵ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، كذا في البحر ج ۱ ص ۶۰۵ كتاب الصلاة باب الامامة ، وردالمحتار ج ۱ ص ۴۰۸ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب في تكرار الجماعة في المسجد )

## ۴۸۵-دکلي مسجدکي دنوروخلکود جماعت وروسته دکلي والا جماعت

**الاستفتاء** : که دکلي په مسجدکي دکلي دخلګوڅخه ماسوانورخلک اول جماعت وکړي اوبیادکلي خلک دوهم جماعت کوي دغه دوهم جماعت مکروه دی اوکه نه ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه دوهم جماعت نه دی مکروه[1].

## ۴۸۶-دکلي خلک بېله اذانه جماعت وکړي بیانور خلک جماعت کوي

**الاستفتاء** : که دکلي یوڅه خلګوپه مسجدکي بېله اذانه اویا په پټ اذان سره اول جماعت کړی وي اوبیا نورخلک دوهم جماعت کوي دغه څه حکم لري ؟

**الفتوی بعون الله تعالی حامدا ومصلیا:**

دغه دوهم جماعت بېله مکروه والي څخه صحیح دی[2].

---

[1] في ردالمحتار : يكره تكرار الجماعة في مسجد محلة بأذان وإقامة، إلا إذا صلى بهما فيه أولا غير أهله . ( ج ۱ ص ۴۰۸ كتاب الصلاة باب الامامة مطلب في تكرار الجماعة في المسجد ، كذا في التاتارخانية ج ۲ ص ۱۵۵ كتاب الصلاة الفصل الثاني في فرائض الصلاة وواجباتها وسننها وآدابها المسئلة (۲۰۱۲) والبدائع ج ۱ ص ۳۷۸ كتاب الصلاة تكرار الجماعة )

[2] في الهندية : جماعة من أهل المسجد أذنوا في المسجد على وجه المخافتة بحيث لم يسمع غيرهم ثم حضر قوم من أهل المسجد ولم يعلموا ما صنع الفريق الأول فأذنوا على وجه الجهر ثم علموا ما صنع الفريق الأول فلهم أن يصلوا بالجماعة على وجهها ولا عبرة للجماعة الأولى . ( ج ۱ ص ۵۴ كتاب الصلاة الباب الثاني في الاذان الفصل الأول في صفة الأذان وأحوال المؤذن ، كذا في

